# د نړۍ د ابرځواکونو بهرنۍ سیاست

( له سرې جګړې وروسته)

ډاکتر زلمی زابلی

د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو ماستر

کال : ۱۳۹۷

بسم الله الرحمن الرحيم

## د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم: **د نړۍ د ابرځواکونو بهرنۍ سیاست**
(له سړې جګړې وروسته)
لیکوال: **ډاکټر زلمی زابلی**
چاپ وار: **لومړی**
تیراژ: **۱۰۰۰ ټوکه**
چاپ کال: **۱۳۹۷**
چاپ ځای: **وایګل**
**ISBN: ۹۷۸-۹۹۳۶-۱-۰۲۶۷-۵**

# تقریظ

"د نړۍ د ابرځواکونو بهرنی سیاست (د سړې جګړې وروسته)"

پورتني عنوان لاندې یو کتاب چې د بناغلي ډاکټر زلمي زابلي له خوا لیکل شوی او د څوارلسو څپرکو څخه جوړ شوی دی.

ډاکټر زابلي د پورته عنوان د غوره توضیح کولو لپاره لومړي څپرکي کې په عمومي توګه پر سیاست څېړنه کړې او دوهم څپرکي کې یې بهرني او داخلي سیاستونه تشریح کړي دي. دریم څپرکی پر جوړښت د قدرت او عناصرو ته رڼا اچوي او څلورم څپرکي کې سوړه جګړه څېړل شوې ده. پنځم څپرکي کې د دولتونو ملي ګټې توضیح کړې. وروسته پاتې څپرکو کې د ابرځواکونو خارجي سیاستونه تر مطالعې او ارزونې لاندې راغلي او وروستي (څوارلسم څپرکی) د اسلامي نړۍ پر بهرني سیاست رڼا اچوي.

د پورته اثر په لیکلو، ترتیب او تکمیل کې محترم زابلي ډېر زحمت ګاللی، د یو ډېر ښه آثار او کتابونو څخه یې کلکه استفاده شوې چې د سیاسي علومو د مینه والو لپاره د لا ډېرو څېړنو په موخه کې زمینه برابروي.

ګران هېواد، افغانستان، کې چې داسې آثارو ته ډېره ضرورت لیدل کېږي د همدې کتاب لیکل او چاپ ته ښه ارزښت لري او ملي خدمت ګڼل کېدای شي.

بناغلي ډاکټر زلمي زابلي تکمیل وار شوي پورته دنده ترسره کړې او د ده ته د لوی خدای (ج) څخه د لا زیاتو لیکنو او ښو توفیق غواړم.

په درناوی

پوهاند دوکتور ودیر صافي

د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځۍ استاد

۱۳۹۷/۵/۲۴

## تقریظ

اثری را که تحت عنوان (سیاست خارجی ابر قدرت های جهان بعد از جنگ سرد) محترم داکتر زلمی زابلی برشته تحریر در آورده اند آنرا مطالعه نمودم.

اثر مذکور در طی چهارده فصل که هر فصل آن به مباحث مختلف دسته بندی گردیده است از نظر شکل و متن و محتوا در خورستایش است تمام معیارهای اثر نویسی را نویسنده محترم رعایت نموده اند.

از سوی دیگر نویسنده محترم موضوعات را به شکل بسیار سلیس و روان تحریر نموده اند که برای مطالعه کننده بخوبی قابل درک و فهم می باشد که این موضوع دلالت به توانایی نویسنده محترم مینماید.

همچنان در اثر مذکور از منابع و ماخذ معتبر علمی و جدید استفاده گردیده است که به غنامندی اثر مذکور می افزاید.

بناءً با در نظر داست نکات فوق الذکر اثر مذکور را یک اثر قابل استفاده بهتر برای دست اندرکاران عرصه سیاست دانسته و در عرصه سیاست خارجی کشور عزیز ما افغانستان موثر بوده، واقع خواهد شد و استفاده خوبی خواهد گردید.

در اخیر برای نویسنده محترم از خداوند متعال موفقیت های بیشتر علمی را خواهانم.

باالحترام

پوهاند عبدالاقرار واصل

استاد و ریس پوهنځی حقوق وعلوم سیاسی

پوهنتون کابل



۱۳۹۷/۶/۱۲

## تقریظ

د شلمې پیړۍ وروستی لسیزه د نړۍ په سیاسي تاریخ کې یوه مهمه برخه جوړوي ،هغه په دې مانا چې د پخواني شوروی اتحاد له سقوط سره سم سوسیالیستي بلاک چې، د دوهمې نړیوالې جګړې ۴۵ــــ ۱۹۳۹ څخه وروسته یې ظهور کړې وو او د هغه له راتګ سره نړۍ په کپتالیستي او سوسیالیتي بلاکونو ویشل شوې وه ،له منځه لاړ او هغه سیاسي جوړښت چې دوه اصلي زبر ځواکونه، د امریکې متحده ایالات او شوروي اتحاد له منځه لاړ.

په دې توګه امریکا د نړۍ د یواځیني زبر ځواک په توګه په نړۍ کې خپل بیرغ اوچت کړ، خو په لنډه موده کې سره له دې چې په پوځي او اقتصادي لحاظ د امریکې متحده ایالاتو خپل قیادت وساته خو تر څنګ یې نورو د دوهمې او دریيمې نړۍ هیوادونو ځینو سر اوچت کړ او په نړیوال سیاست کې ور ګډ شول.

اوس کله د نړۍ د اتو صنعتي هېوادونو او کله هم د نړۍ د اوو صنعتي هېوادونو تر نامه لاندې د نړۍ په برخلیک حاکمان دي او په نړیواله کچه د سیاسي، پوځي او اقتصادي لوبو اصلي برخوال ګڼل کیږي .

په دغه اثر کې چې د ښاغلي ډاګټر زلمي زابلي په هڅو لیکل شوی، ترممکنه حده د دغو لوبوکوونکو رول ته پاملرنه شوې او د سړې جګړې څخه وروسته دوره په کې انځور شوې او د دغو زبرځواکونو ونډه او لوبه په کې په ښه توګه ترسیم کړای شوې ده.

زه په داسې حال کې چې،ښاغلي ډاګټر زلمي زابلي ته د دغو هڅو له کبله مبارکي وایم، درنو لوستونکو ته د دغه اثر د مطالعې سپارښتنه کوم او زابلي صاحب ته د لوی الله ج له دربار څخه د لا هڅو او بریاوو هیله کوم .

په درنښت

پوهاند دکتور نصرالله ستانګزی

دکابل پوهنتون د حقوقو اوسیاسي علومو د پوهنځی استاد

۱۳۹۷-۵-۳۰

کابل، افغانستان



# لړلیک



## لومړی څپرکی



## دوهم څپرکی



## درېیم څپرکی

## څلورم څپرکی



## پنځم څپرکی

## شپږم څپرکی

## اووم څپرکی



## اتم څپرکی

## نهم څپرکی



## لسم څپرکی

## دوولسم څپرکی



## دیارلسم څپرکی



## څوارلسم څپرکی

**مقدمه**

په اوسني وخت کې د ټولنې په مادي او معنوي ژوند کې سیاست داسې اخښل شوی، چې په هر اړخ کې یې د سیاست څرک محسوس کېږي.
هغه وخت چې د لومړي ځل لپاره په شپاړسمه پېړۍ کې دولتونه تشکیل شول،هر دولت د خپل ملت، د بهرني سیاست،ملي ګټو او ملي اهدافو په مفهوم پوی شول.
خو د بهرني سیاست پدیده د شلمې پېړۍ په پیل ګې د علمي پلټنو موضوع وګرځېدله،چې د اروپا او امریکا د علمي مرکزونو د پاملرنې وړ یو مفهوم ترې څرګند شو.
د دولتونو د رژیمونو د بېلابېلو ډولونو سره لکه استبدادي،مطلقه،مشروطه،جمهوري او د ډیموکراسۍ پر بنیاد ولاړ دولتونه،ټول د بهرني سیاست د مفهوم په ارزښت پوی شوي دي.
د نړۍ ابر ځواکونو د نړیوال لومړي او دوهم جنګ څخه وروسته په بین المللي نظام کې دوه قطبي سیستم رامنځته کړ.
خو د ایډیالوژۍ او اقتصادي سیستم پر بنسټ یې د مارکسیزم لیننسم د فلسفې په اساس او د کمونیزم د نظام اړوند سیستم،چې متمرکز اقتصادي نظام یې درلود.
او همدا رنګه د ټولنیزې ډیموکراسۍ او لیبرالیزم پر بنسټ د ازاد بازار اقتصاد، خصوصي سکتور او ټاکنیز نظام ،په دواړو ایډیالوژیکو او اقتصادي سیستمونو کې توپیر شتون درلود،چې د همدغه توپیر په بنیاد د شوروي اتحاد کمونیستي سیستم له منځه لاړ.
د غربي هېوادونو چې په سرکې یې د امریکا متحده ایالات شتون لري، ادعا کوي چې د لومړي او دوهم نړیوال جنګ راهیسې امریکا د نړۍ مشري او رهبري کړې ده او په ټولو بحراني حالاتو کې یې نړۍ ژغورلې ده.
ځکه نو اوس امریکا د نړۍ د ابر ځواک په حیث باید دا حق ولري چې، په ټوله نړۍ باندې خپل حاکمیت ومني.
امریکا د خپل بهرني سیاست په هکله څو لومړیتوبونه او نظریات لري، چې یو یې د پراختیا غوښتنې یا (Enlargement) مفکوره ده.
امریکا د یادې مفکورې د عملي کولو په منظور د خپل پخواني بهرني سیاست د یو شمېراصولو او دکتورینو په نظر کې نیولو سره رامنځته کړې ده.
امریکا ځان ته دا حق ورکوي چې؛ د نړۍ په هر ګوټ کې د خپلو ملي موخو،ملي ګټو او ارزښتونو د تحقق لپاره نظامي او غیر نظامي مداخله وکړي .

چې یاده مداخله په یوازې ډول او یا په ډله ییز شکل د ملل متحد تر نوم لاندې د ناټو په مرسته کېدلی شي ترسره کړي، خو یادې کړنې د ملل متحد د منشور د اصولو خلاف عمل دی.
دوهمه نظریه د نړیوال نوي نظم مفکوره ده، چې د شوروي اتحاد تر سقوط وروسته امریکا د نړۍ د نوي نظم د راوستلو په پلمه یې دا حق ځان ته ورکړی، چې له ساړه جنګ څخه وروسته د ټولې نړۍ لومړنی ابر ځواک دی.
امریکا د نړۍ دا نظم ، سیستم او یو قطبي نظام خپل نوښت بولي او د نړۍ د ټولو هېوادونه څخه غواړي چې د امریکا د ګټو او موخو موافق عمل وکړي.
ځکه امریکا په نړۍ کې تر ټولو ځواکمن نظامي،اقتصادي،ایډیالوژیک،ټولنیز او سیاسي ځواک لري.
درېیمه نظریه چې د امریکا له خوا مطرح شوې ده، د تاریخ د پای نظریه ده(End of history) .
هغه په دې مفهوم ده چې؛ د امریکا سیاسیون په دې عقیده دي چې وروسته له دې بله نظریه او نظام د لیبرالیزم او د غربي ډیموکراسۍ په وړاندې جوړېدلای نه شي.
نو همدغه سیاسي نظام دی چې، د تاریخ وروستی پړاو یې طی کړی دی او بل سیاسي نظام راتلونکی نه دی چې په حقیقت کې دا تش په نامه یو نظر دی،ځکه په نړۍ کې نور سیستمونه هم شتون لري چې د موجودیت فلسفه یې د امریکا تر لیبرالیزم څو زره کاله مخکې لرغونتوب لري.
د بېلګې په ډول د اسلام مقدس دین.

د پورته ټولو ملحوظاتو په نظر کې نیولو سره د سپټمبر د یولسمې د پېښې وروسته امریکا د هېوادونو اشغال ته پلمه جوړه او د افغانستان له مرکزیت څخه یې د منځني ختیځ،فارس خلیج او د منځنۍ اسیا هېوادونو په کورنیو چارو کې لاسوهنه پیل کړه.

لوستونکي به په اوسني کتاب کې د امریکا،انګلیستان،چین،روسیې ،فرانسې، جاپان،جرمني او د اسرائیلو د بهرنیو سیاستونو په هکله معلومات تر لاسه کړي.

د کتاب د لیکلو اساسي موخه،د غربي هېوادونو دوه مخې سیاستونه دي چې د ساړه جنګ د پای ته رسېدلو وروسته یې د نورې نړۍ په وړاندې پیل کړي دي.

د همدغو سیاستونو په ترڅ کې امریکا پلان لري چې د لیبرالیزم، ډیموکراسۍ او د بشر د حقوقو تر نامه لاندې نوره نړۍ تر استعمار لاندې راولي.

دا په داسې حال کې ده چې په امریکا کې لږ تر لږه د بشر د حقوقو دنظارت یو نهاد هم شتون نه لري،دا ځکه چې د امریکا د حکومت له خوا په ملي او بین المللي سطحه دبشر د حقوقو ناظرینو ته د فعالیت اجازه نه ورکول کیږي.

یاد کتاب په یوه مقدمه او درویشت څپرکو کې چمتو شوی دی،په لومړي څپرکي کې د شرقي ، غربي عالمانو په نظر د سیاست تعریف، د کورني او بهرني سیاست په مورد معلومات،ملي اقتدار،ملي ګټې ، ملي اهداف او د ملي اقتدار نور عناصر تشریح شوي دي.

په نورو څپرکو کې د امریکا،انګلیس،چین،فرانسې،روسیې،جاپان،جرمني او د اسرائیلو هېواد بهرنی سیاست د ساړه جنګ څخه وروسته او همدا رنګه د نړۍ په سیاسي ساحه کې د سترو قدرتونو اړیکې او د بهرني سیاست بدلونونه څېړل شوي دي.

د دغه کتاب په لیکلو کې به خامخا نیمګړتیاوې شتون ولري، چې د محترمو لوستونکو څخه هیله کو، څو د کتاب د نیمګړتیاو په ګوته کولو او د سالمو وړاندیزونو په شریکول کې راسره همکاري وکړي ترڅو وکولای شو،په راتلونکي کې له سمونو او زیاتونو وروسته دغه کتاب د یو بشپړ او ګټور اثر په حیث ټولنې ته وړاندې شي.

د یاد اثر په لیکلو کې تر ډېره بریده دا هڅه شوې ده چې د نړۍ د مشهورو، معتبرو او اکاډمیکو اخځلیکونو څخه استفاده وشي.
نوموړی اثر مو د کابل پوهنتون د حقوقو اوسیاسي علومو د پوهنځي د رییس او مربوطه ډیپارټمنټ تر بیا کتنې،اصلاح او لازمو لارښوونو وروسته د چاپ په ګاڼه سمبال کړ چې د اړوندو استادانو د ارزښت لرونکو تقریظونو سره تاسو ته وړاندې شو، چې د هر معظم استاد د لارښوونې څخه هم یوه نړۍ مننه کوم.
د کتاب په ایډیټ،ډیزاین او د کمپیوټر په چارو کې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د باختر اژانس خبریال او د پښتو ژبې د رسنیو د برخې ایډیټور محترم نعمت الله وصال په همکارۍ چاپ ته چمتو شوی دی چې له زیار څخه یې د زړه له کومې منندوی یم.

ډاکټر زلمی (زابلی)

د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو ماسټر

# لومړی څپرکی

## انسان يو سياسي حيوان دی!(ارسطو)

### اول:سیاست څه ته وايي؟

سیاست یوه عربي کلمه ده چې؛ د ساس او سیوس له کلمو څخه اخېستل شوې ده، چې لغوي معنی یې د آس رام کول او اهلي کولو دي.[1]

د ساس کلمه د حیله گر،ځېرک او رند په مفهوم هم راغلې ده.

د سیاست کلمه په فارسي ادبیاتو کې د اداره کولو او چاره کولو په معنی راغلې ده.[2]

په انگلیسي ژبه کې سیاست ته (Politics) وایي،چې اصلا د (Polis) له کلمې څخه اخېستل شوې ده،چې د پولس لغوي معنی دولت ـ ښار ده.

د دولت ـ ښار اصطلاح په پخواني یونان کې یو مستقل ښار ته کارول کېده،چې په هغه وخت کې د یونان هېواد د څو دولت ـ ښارونو څخه جوړ و،چې هر دولت ښار۔ یو ځانگړی حکومتي نظام درلود، د دې جملې څخه د آتن دولت ـ ښار وو، چې تر ټولو د ډېر نفوس درلودونکی ښار وو.

د همدې کبله سیاست د پولس د چارو مربوط وو، یعنې هغه چارې چې په پولس پورې اړه ولري.[3]

د نوي عصر په بنسټ ویل کېږي چې؛ سیاست هغه څه دي چې په دولت پورې مربوط وي.

حمید عنایت د ارسطو د (سیاست) د اثر په مقدمه کې داسې کښلي دي چې؛

( د ښار مفهوم د یوناني کلمې (polis) سره څرگند توپیر لري،ښار د خلکو د اوسیدلو ځای دی، چې په یوناني کې ورته (Asty)وایي.[4]

[1] عبدالحی،محمد مجید،تعریف سیاست،اثر افتاب، تهران،۱۳۸۸،ص اول،باز بینی شده در ۲۵ مارچ ۲۰۱۸،

[2] قرضاوی،یوسف،باید ونباید های دین وسیاست،ترجمه،عبدالعزیز سلیمی،نشر احسان،تهران،۱۳۹۴،ص،۵.

[3] هیوود،اندرو،سیاست،ترچمه عبدالرحمن عالم،نشر نی،تهران،۱۳۹۳،ص،۱۰ـ۱۱.

[4] ارسطو،سیاست،ترجمه،حمید عنایت،موسسه انتشارات امیر کبیر،تهران،۱۳۸٦

Polis په لومړنیو وختونو کې کلا وه چې؛ په (Asty) کې به جوړېدله ،خو وروسته یې مفهوم بدلون وموند او د یوې منظمې سیاسي ټولنې په معنی وکارول شوه.

فرانسوي ټولنپوه موریس دو ورژه په خپل کتاب (اصول عمل سیاست) کې د سیاست تعریف داسې رانقل کړی دی.

۱ـ په ۱۸۷۰ م کال کې د لیترا (Littre) په فرهنګ کې د سیاست تعریف داسې شوی دی؛

سیاست پر هېوادونو باندې د حکومت کولو علم دی.

۲ـ په ۱۹۶۲ م کال کې د روبر (Robert) په فرهنګ کې بیا د سیاست تعریف داسې راغلی دی؛

پر انساني ټولنو باندې د فن (هنر) او عمل، حکومت کول دي.

د دواړو تعریفونو په منځ کې یوه پېړۍ وخت تېر شوی دی، چې په دواړو تعریفونو کې د سیاست اصلي موضوع حکومت یاد شوی دی.

د لېترا په تعریف کې سیاست ته علم ویل شوی دی،خو د روبر په تعریف کې بیا سیاست ته د هنر او دعمل اشاره شوې ده.[5]

د سیاست څخه د نن عصر منل شوی مفهوم ، د سیاست د علم څخه ډېر لوړ دی،نن ورځ د سیاست کلمه د ټولنې او حکومت ټولو روانو چارو ته اقتصادي سیاسي مفهوم لري،اطلاق کېږي.

د رابرت دال په خبره ،په اوس وخت کې سیاست د بشر د ژوند یو غیر قابل انکار حقیقت دی.[6]

**دوهم:ایا سیاست علم دئ؟**[7]

علم د منظمې پوهې او پوهاوي مجموعې ته وایي،ثابت امر نه دی د تکامل او پرمختګ په حال کې دی، اوسنی علم باید د تلپاتې پېژندنې او پوهاوي د لوړولو لپاره یوه وسیله اوسي.

---

[5] دو ورژه،موریس،اصول عمل سیاست،ترجمه داکتر سید ابو الفضل قاضی،موسسه انتشارات امیر کبیر،تهران،۱۳۹۵،ص ، ۱۷.

[6] عالم،عبدالرحمن،بنیاد های علم سیاست،نشر نی،تهران،۱۳۹۰،ص،۲۴.

[7] ابو الحمد،عبدالحمید،مبامی سیاست،چاپخانه حیدری،تهران،۱۳۸۴،ص ۳۴ـ۳۷

د پورتني تعریف د منلو سره چې؛ د علم لپاره یاد شو سیاست هم علم دی.

انګلیسي سیاست پوهان زیات وخت د سیاست د علم پرځای د سیاسي مطالعاتو او زده کړو اصطلاح کاروي.

دا چې د سیاسي پلټنو موخه په ټولنه کې د هغو قوانینو کشف دی چې؛ د قدرت د اړیکو سره کار ولري، همدغو اړیکوته سمت او لوری ورکول د همدغو اړیکو پېژندل دي.

د سیاست لغوي معنی چې عربي ریښه لري د ساس او سیوس څخه اخېستل شوې کلمه ده، چې د آس رام کولو او اهلي کولو ته وایي او مفهوم یې کړنلاره یا هغه مسیر او خط سیر دی چې انسان یې په مخ کې لري.

په انګلیسي کې politics یا کړنلاره،د عمل د طریقې څرنګوالی،اساسي اصول، قواعد او د لارښود اصولو په معنی راغلې ده، په خاصه اصطلاح د بهیر او د هېوادونو د حکومتونو لپاره تصمیم نیول دي.

انسانان په هر شېبه کې په یو ډول د سیاست سره سر او کا لري،سیاست یو غیر قابل انکار حقیقت دی چې د انسان په ژوند کې وجود لري.[۸]

د لومړی ځل لپاره د سیاست د علم اصطلاح په ۱۸۹۰ م کال کې د کولمبیا په یوه پوهنتون کې وکارول شوه.

په یاد پوهنتون کې د سیاسي علومو پوهنځی تاسیس شو، چې د اقتصاد ، ټولنپوهنې،تاریخ،شمېریا امار،عمومي حقوق ،حکومت او د سیاسي علومو رشتې یې درلودلې.

د نړۍ سیاست پوهان په ۱۹۴۸ م کال کې د یونیسکو په کنفرانس کې راټول شول او د سیاسي علومو پر ځای یې د سیاست د علم اصطلاح وټاکله.[۹]

[۸] رابرت،دال،تجزیه وتحلیل سیاست،ترجمه،حسین ظفر یان،نشر مترجم،تهران،۱۳٦۴،ص،۱.

[۹] Unesco contemporary political science and survey of methods research and teaching unesco ۱۹۵۰_p ٤.

د سیاست د علم پخواني پوهان لکه ارسطو ،یلنگ ،هنری سجویک او پل ژانټ د سیاست اصطلاح نسبت د سیاست علم ته خوښوي.[۱۰]

پل ژانت چې یو فرانسوي سیاست پوه دی،سیاست یې داسې تعریف کړی دی ، سیاست د ټولنیزو علومو یوه برخه ده ، چې د دولت د بنسټونو او د حکومت د اصولو څخه بحث او بررسي کوي.

هنري سجویک د سیاست علم په لاندې ډول تعریف کړی دی؛

د سیاست علم هغه ټولنې بررسي کوي چې حکومت ولري.

د هنري سجویک تعریف د سیاست  د علم قلمرو ترحکومت نور هم پراخوي.

د سیاست د علم یو عالم کاتلین، په دې عقیده دی چې؛ سیاست د یوې انساني سازمان شوې ټولنې بررسي ده او تر هر څه له مخې د ټولنې د ژوند سیاسي اړخونه مطالعه کوي.

Bertrand de jouvenal نظر لري چې؛ سیاست هغه سیاسي اړیکې بررسي کوي چې د

انسانانو د یوځای کېدلو په سبب پیدا شوي دي.[۱۱]

د سیاست د علم د ثقل مرکز قدرت دی.

د سیاست د ډگر یو مشهور فرانسوي  عالم نولي (Nnoli) د سیاست څو تعریفونه په لاندې ډول رانقل کړي دي؛

۱ـ سیاست د امکاناتو څخه د گټې اخېستنې هنر دی، د سیاسي فعالانو لپاره هر وخت دا ممکنه نه ده، چې خپلو ټولو موخو ته به رسیږي،بلکې د خپل قدرت په اندازه باید خپل اهداف وټاکئ.[۱۲]

۲ـ گایتا موسکا(Gmosca)او آستین راني بیا په دې آند دي چې؛ سیاست په خلکو حکومت کول دي.

[۱۰] عالم،عبدالرحمن،همغه اثر،ص،۲۵.

[۱۱] Bertrand de jouvenal the pure theory of politics {camb_ university} ۱۳٦۳,p,۸۲.

[۱۲] عالم،عبدالرحمن،همغه اثر،ص،۲۹.

هغه خلک چې حکومت کوي او هغه خلک چې حکومت ورباندې تحمیل کېږي یا د فرمانروا او فرمانبردار په منځ کې په اړیکو باندې بحث کوي،نوموړې اړیکې د سیاسي ژوند مرکز دی.

۳ـ سیاست د قدرت لپاره مبارزه ده، چې د غرب د سیاست پوهانو په نظر د منلو وړ تعریف دی.

۴ـ هارولد لاسکي بیا د سیاست تعریف په دې ډول کړی دی،(په دې مفهوم پوهیدل چې څوک یې گټې؟څه شئ گټې؟څه وخت یې گټې؟ او په څه ډول او ولې یې گټې؟)

۵ـ سیاست د ارزښتونو امرانه ویشل دي؛

بالاخره نولی د سیاست تعریف داسې کړی دی،(ټول هغه فعالیتونه چې په مستقیم یا غیر مستقیم ډول د قدرت د لاسته راوړلو ، د قدرت د تحکیم او د دولت له قدرت څخه د گټې اخیستنې سره یو ځای دي.)

یعنې سیاست د قدرت د کسب، ساتنې، پووالی او د اعمال څخه بحث کوي.

خو د سیاست یو جامع او بشپړ تعریف بیا داسې راغلی دی؛ د هغو اړیکو سوله ییز یا غیر سوله ییز رهبري کول دي چې د گروپونو،گوندونو،نهادونو او د حکومتي چارو په منځ کې ،په یوه هېواد کې موجود دي .

که چېرې د یادو اړیکو رهبري کول په داخل د یوه هېواد کې وي،عبارت له کورني سیاست څخه دي او که چېرې د اړیکو رهبري کول د دولتونو په سطحه د هېواد په بهر کې موجود وي، بیا د هېواد بهرنی سیاست ورته ویل کېږي.

په دې حساب د یوه شخص،یوه گوند،یوه نهاد او یا د حکومت سیاست جوړوي.

د پورته تعریفونو څخه د سیاست د علم تعریف د اسې استنباط کېږي؛

د ټولنيزې پوهې يوه برخه ده چې، دنده يې د هغو اصولو او قواعدو پېژندل دي چې په سياسي اړيکو حاکم دي،چې د ټولنيزو قوتونو په منځ کې د يوه هېواد په داخل کې او د دولتونو ترمنځ په بين المللي ډگر کې شتون لري.[۱۳]

د پوليټيکس لغوي معنی (Politics) کړنلاره، د عمل شېوه،خط مشی،اساسي اصول او قواعد راغلي دي.

په عامه اصطلاح سياست د هر ډول گروپ لپاره د تصميم نيول دي، لکه حکومتونه ، هېوادونه ، سازماني نهادونه،پوهنتونونه،ديني نهادونه او نور..

په خاصه اصطلاح کې سياست د حکومتونو او هېوادونو لپاره د تصميم نيول دي.

په فارسي فرهنگ کې د سياست کلمه په رعيت باندې حکم کول،د مملکت د چارو اداره کول،حکومت کول،رياست کول او د عدالت او قضاوت پر بنياد رياست کولو ته وايي.

سياسي تفکر د يونان څخه ټول غرب او نړۍ ته نشر شوی دی، خو د سياست علم د يوې ښوونېزې رشتې په حيث يوازې يوه پېړه تاريخچه لري چې د نوې ډيموکراسۍ او د نيشنليزم د راتگ سره سياست په هېوادونو کې عام شو.

**د سياسي علومو له نظره د سياست تعريف داسې کېږي؛**

د سياست علم د هېواد د چارو د تدبېر څخه عبارت دی چې؛ د ملت د ژوند د چارو په مصلحت او گټه وي،هدف بايد معلوم وي، ارزښتونه او د ارزښتونو خلاف بايد معلوم شي، د سياست هنر يو شمېر ځانگړتياوې لري لکه؛ د سياسي قدرت لاسته راړول، د نوموړي قدرت ساتل،ډېرول،ځواکمن کول او د قدرت د لاسته راوړلو لپاره مبارزې ته وايي.

عمومي سياست هغه اصول دي چې؛ د صلاحيت لرونکو سرچينو له لوري په هېواد کې وضع شوي وي او د يو لارښود په عنوان په ټولنه کې کړنې او فعاليتونه رهبري کوي.

[۱۳] هيوود،اندرو،سياست،ترجمه عبدالرحمن عالم،نشر نی،تهران،۱۳۹۳،ص،۱۰-۱۷.

**د غربي فیلسوفانو په نظر سیاست او حکومت څه ته وایئ؟**

۱ـ سقراط حکومت په پنځه ډوله وېشلي دی:(د عادل فرمان روا یا حاکم حکومت،د مستبد سلطان حکومت،د نجیبو خلکو حکومت،د پانگوالو حکومت او د عامو خلکو حکومت شامل دي چې سقراط د دې جملې څخه بیا د عادل فرمان روا حکومت غوره کړی دی چې تقوا لرونکی او فرهنگ لروونکی اوسي.

۲ـ افلاطون په خپل اثر(جمهوریت ) کې حکومت په پنځه ډوله ویشلی دی؛( د فیلسوفانو حکومت،دنظامیانوحکومت،دپانگوالو حکومت،د عامو خلکو حکومت او استبدادي حکومت.)[۱٤]

افلاطون عقیده لري چې؛ زمامدار یا حاکم باید فیلسوف وي او غوره حکومت هغه دی چې زمامدار یې حاکم اوسي.

۳ـ ارسطو چې د افلاطون شاگرد دی، په دې عقیده دی چې سیاست د اعتدال او مساوات د ایجاد څخه عبارت دی.

دی وایي؛ د انسان په ذات او فطرت کې دولت اخښلی دی،دولت د انسان د اړتیاو د برابرولو لپاره دی چې؛ لومړنۍ اړتیا یې د کورنۍ جوړښت دی،.

کورنۍ ازادي او استقلال اړین گڼي،قانون او عدالت د دولت په چوکاټ کې د ټولنې د خلکو د پیوند سبب گرځي.

دا چې؛ سیاست علم ، هنر او که د حکمرانۍ عمل دی،په دې اړه د نظر د خاوندانو په منځ کې تر اوسه ډېر اختلافونه شتون لري.[۱۵]

[۱٤] افلاطون،جمهوریت،ترجمه،فواد روحانی،شرکت انتشارات علمی وفرهنگی،تهران،۱۳۸٦

[۱۵] دو ورژه،موریس،اصول عمل سیاست،ترجمه داکتر سید ابو الفضل قاضی،بیناد حقوق میزان،تهران،۱۳۹۵،ص ،۱۱ـ۱۲.

یو شمېر معاصر څېړونکي او پلټوونکي نظر لرې چې؛ سیاسي پدیدې د نورو علومو په څېر نه شو کولای بررسی او وڅېړو ځو ټاکلې پایله ترې واخېستل شي، یعنې په تجربه کولو سره په هر ډول شرایطو کې ورته نتیجه نه ورکوي،پایله یې د وړاندوینې وړتیا نه لري.[۱۶]

۴ـ ماکیاولی(د ۱۴۶۹ ـ ۱۵۲۷ )په دې عقیده دی چې؛ په سیاست کې باید اخلاق او دین مداخله ونلري،دی له الهي قانون څخه منکر دی، د ژوند مرام او هدف یوازې ارامي یا هوساینه او مادي ښیګڼې بولي.

د ماکیاولی په نظر په حکومت کې اصل (قدرت) دی او یو شمېر وسیلې یې د قدرت لپاره یادې کړې دي،جمهوري حکومت ته یې په سلطنت باندې لومړیتوب ورکړی دی.

نیو کولو ماکیاولی هیڅ ډول اخلاق،بشر دوستي،اصول،ژمنې،وفا، د حکومت د دوام په وړاندې د درنښت وړ نه بولي.[۱۷]

په حقیقت کې سیاست په یوناني مفهوم (په ښار باندې د حکومت کولو د علم په معنی راغلی دی) چې؛ دا نظر Sili مطرح کړی او سیاست یې د ښارونو علم یاد کړی دی.

په اوسني عصر کې د سیاست مفهوم د حکومت او ټولنې د چارو او مسائلو چې اقتصادي او سیاسي ارزښت او ماهیت ولري علمي مفهوم دی.[۱۸]

علم د منظمې پوهې او پوهاوي مجموعې ته وایي،ثابت امر نه دی د تکامل او پرمختګ په حال کې دی، اوسنی علم باید د تلپاتې پېژندنې او پوهاوي د لوړولو لپاره یوه وسیله اوسي.

د پورتني تعریف د منلو سره چې؛ د علم لپاره یاد شو سیاست هم علم دی.

انګلیسي سیاست پوهان زیات وخت د سیاست د علم پرځای د سیاسي مطالعاتو او زده کړو اصطلاح کاروي.

---

[۱۶] ارسطو،سیاست،ترجمه،حمید عنایت،موسسه انتشارات امیر کبیر،تهران،۱۳۸۶

[۱۷]ماکیاولی،نیوکولای،شهزاده،ترجمه،داریوش عاشوري،دفتر نشر اگاه،تهران،۱۳۸۹،ص،۵۸.

[۱۸] ابو الحمد،عبدالحمید،مبانی سیاست،چاپخانه حیدری،تهران،۱۳۸۴،ص ۳۴ـ۳۷

دا چې د سیاسي پلټنو موخه په ټولنه کې د هغو قوانینو کشف دی چې؛ د قدرت د اړیکو سره کار ولري، همدغو اړیکوته سمت او لوری ورکول د همدغو اړیکو پېژندل دي.

**د سیاست د علم په اړه دوه انتقادونه نېول شوي دي.**

۱ـعلم باید د محاسبې او اندازه کولو وړتیا ولري او په ارقامو او اعدادو سره د علم د احکامو فرضیه وښودل شي چې؛ دا ډول نظریه د امریکا د پلټوونکو په منځ کې ډېر پلویان لري.

دوی هڅه کوي چې ټولې سیاسي پدیدې په ارقامو او اعدادو سره وښیي، خو د نورو علومو په نسبت ریاضي تر ټولو کره علم دی چې؛ په همدې سبب د ریاضي د علم څخه په ټولنپوهنه،د وګړو پېژندنه او اقتصاد کې د ګټې وړ ده.

۲ـعلم باید د دې قدرت ولري چې؛ راتلوونکي وړاندوینه وکړي خو په سیاست کې د راتلوونکي وړاندوینه ډېر ستونزمن کار دی.

بله مسئله چې د سیاست د علم سره اړه لري، هغه د سیاست دعلمي لاسته راوړنو اړیکه له عمل سره ده، یا داسې ویلای شو چې د علم ګټه څه شی دی؟ او د علمي پلټنو څخه څه ګټه اخېستلای شو؟

په ځواب کې ویلای شو چې؛ د علمي پلټنو هدف او مرام د عامه پوهاوي او اګاهی د وړتیا د کچې لوړوالی دی.

په هره اندازه چې عمومي اطلاعات علمي اړخ پیدا کړي په همغه تناسب د خرافاتو سره مبارزه کولای شو او مسائل د اسرار امېزه اړخ څخه راوځي او انسان د طبیعت په راز د علم له نظره پوهېږي.

په لومړی ځل د سیاست د علم اصطلاح په ۱۸۹۰ میلادي کال کې په کولمبیا کې دود شوه چې؛ د سیاسي علومو پوهنځی یې پرانېست ، د اقتصاد ، ټولنپوهنه ، تاریخ ، د اعدادو پېژندنه،عمومي حقوق،حکومت او د سیاسي علومو رشتې یې درلودلې.

د نړۍ پوهانو دیونیسکو په کنفرانس کې په ۱۹۴۸م کال د دسمبر په پنځمه نېټه د سیاست د علم اصطلاح د سیاسي علومو پر ځای ونوموله.[۱۹]

[۱۹] UNESCO contemporary political science and social science (London, oxford university, press,۱۹۶۹)

د دولت اصطلاح مخکې له پنځلسمې میلادي پیړۍ استعمال نه درلود چې دولت د سیاسي سازمان وروستی شکل دی.

دغه اصطلاح د سیاست د علم سره سر او کار لري او یواځینی سیاسي واحد دی چې د بشر هوساینه تامینوي.

**د غربي عالمانوپه نظر د سیاست تعریف:**

۱: سجویک: سیاست هغه علم دی چې هغه جامعه او ټولنه بررسي کوی چې حکومت ولري،یاد تعریف د سیاست د علم لمن تر دولت هم پراخوي.[۲۰]

۲ـ کاتلین وایي: سیاست د منظمې انساني ټولنې بررسی ده، چې تر هر څه لومړی د انساني ټولنې سیاسي اړخونه مطالعه کوي.[۲۱]

۴ـ لاسول وایي: د سیاست علم د یوه تجربوي نظام په حیث، د قدرت د شکل نیولو او جوړښت د څرنکوالي او په هغه قدرت کې د شریکېدلو مطالعه ده.

۵ـ یو شمېر پلټوونکي، متفکران او د نظر خاوندان لکه لاسول،چارلیز مریم ، ویبر ، روسل ، واټ کین، او مور جینتیا، معتقد دي چې د سیاسیت اساسي مفهوم (قدرت) دی چې، د سیاست د علم ټولې برخې سره نښلوي.[۲۲]

د سیاست د ټاکلو او ترسره کولو مهم عنصر (قدرت) دی چې؛ د نوموړي قدرت د پېژندلو لپاره وظیفه او دنده د سیاست د علم ده، یعنې قدرت د سیاست هسته او د ثقل مرکز تشکیلوي چې په ژوند کې ټول کړکیچونه په قدرت پورې تړلي دي.

یو شمېر څېړونکي او پلټوونکي د سیاسي زده کړو لپاره د سیاست منصوب کول وعلم ته رد کړي دي یعنې سیاست د یو علم په حیث نه قبلوي چې له دې جملې څخه یو ټولنپوه(اوگوست کنټ) داسې استدلال راوړی دی.

---

[۲۰] Henry Sidgwick, the elements of politics(london,C Allen and Unwin,۱۹٦٧)

[۲۱] G E C Catlin, systematic politics(Toronto VNIC press,۱۹٦۲,p ۳٦

[۲۲] Bert rand de Jouvenel, the pure theory of politics(Cambridge university press,۱۹٦۳.p ۸۲)

۱ـ سیاسي پلټوونکي د سیاسي مطالعاتو په هکله د یوه واحدې کړنلارې سره توافق نه لري.

۲ـ په سیاست کې اصول او پایلې په عمومي ډول منل شوي نه دي.

۳ـ تحول او پرمختګ دوامداره او استمرار نه لري.

۴ـ د وړاندوېنې لپاره کوم مواد نه لري.

۵ـ سیاسي پدیدې کړکیچنې،څو رنګه او غیر منظمې دي چې علمي طریقه او تحقیق، د سیاسي پدیدو د بررسۍ او څېړنې څخه عاجز دی.

٦ـ هغه لاملونه چې په سیاسي پدیدو باندې اغیز لري، غیر معین نه دي.

۷ـ د سیاسي پدیدو په هکله وړاندوېینه او استنتاج تقریبا ناممکنه ده.[۲۳]

**نورو اسلامي سیاست پوهانو سیاست په لاندې ډول تعریف کړی دی:**

۱ـ سیاست په بېلابېلو ساحاتو کې د هېواد اداره کول یعنې مدیریت دی.

**۲ـ د سیاست قلمرو څه دئ؟**

د سیاست مفهوم مغلق او پیچلی دی، ځکه لومړی د سیاست قلمرو نامعین دی دوهم څنګه کولای شو چې سیاسی او غیر سیاسي چارې سره بېلې کړو؟ درېیم د سیاست مشکل په دې مفهوم کې نغښتی دی چې لوستي او بې سواده،عام او خاص،پوه او ناپوه،د سیاست څخه بېل او ځانګړی مفهوم په خپل ذهن کې لري د بېلګې په ډول ؛د دولت سیاست غلط دی، د هېواد سیاست سالم دی، سیاست درواغ دي،سیاست یعنې عوامو خلکو ته چل او فریب ورکول دي او د اسې نور.[۲٤]

د سیاست کلمه څو ګونې معناوې لري، د بېلګې په ډول حکم کول،ریاست کول،اداره کول،مصلحت کول،تدبیر کول،عدالت،قضاوت،د جزا تنبه کول،شکنجه،عذاب،حفاظت او ازادي

[۲۳] عالم،عبدالرحمن،همغه اثر،ص ۳۵،۳٦

[۲٤] جعفری لنګرودي،،داکتر محمد جعفر،ترمینولوژی حقوق،ص ۳۷۱

ده،خو (سعدي) هم سياست د هېواد اداره کول بللي دي، داسې يې ذکر کړي دي؛مال پرته له سوداګرۍ څخه،علم پرته له بحث څخه او يو هېواد پرته له سياست څخه دوام نه شي کولای.[۲۵]

۳ـ ابو نصر فارابي: سياست داسې تعريف کړی دی؛ د فرمان ورکوونکی،د فرمان منوونکی او د ښه حکومت د خدماتو د وړاندې کولو ترمنځ اړيکې ته سياست وايي، د نوموړي په نظر د خدماتو حاصل ته سياست وايي.

۴ـ احمد بن عمر بن نظامي عروض سمرقندي، چې د (چهار مقاله عروض) يې هم ليکلې ده د فارسي ژبې د نثر د شاهکار له جملې حسابيږي، مولف د څلورو ګروپونو خلکو کار چې په دربار کې اوسيږي او هغه څلور ډلې عبارت دي له منشي،شاعر،ستوری پېژندوونکی يا(منجم) او طبيب دي چې د ليکوونکي په نظر **د پاچا دربار د قدرت او سياست مرکز دی.**

۵ـ ابو حامد غزالي: په خپل مشهور کتاب (احياالعلوم الدين) چې د نوموړي کتاب د ليکلو تاريخ ۴۸۷ـ۴۹۵ هجری قمري پورې اړکل شوی دی، د دين،ژوند او سياست په هکله په څلور پنځوسمه پاڼه کې يې داسې راغلي دي ( د خلکو د مقاصدو مجموعه په دين او دنيا کې ده او د دين نظام مربوط دی د دنيا په نظام،دنيا د اخرت مزرعه ده او هغه حالت دی چې و حضرت باری تعالی ته يې رسوي او د دنيا کارونه منظم کوي چې د انسانانو د اعمالو په مټ سره منظم کېږي چې د خلکو اعمال د درېيو قسمونو څخه بهر نه دي په اول قسم کې غزالي څلور صنعته(کرنه،اوبدل،بنايي او سياست) راوړي دي چې ټولنيز ژوند په همدغو څلورو کارونو تړلی دی چې د غزالي په نظر سياست د ټولو فنونو او اشتغال په سر کې راځي.[۲۶]

٦ـ عبدالرحمن کواکبی: د سياست د علم صاحب نظر دی، سياست يې داسې تعريف کړی دی:( د حکمت په مقتضا د ګډو کارونو ترسره کول دي چې؛ لومړنی مبحث يې د استبداد بحث دی ،يعنې د عقلاني روش اداره کول دي چې د حکمت له رويه وي، د سياست څخه عبارت دی.

دا چې د کواکبي په عصر کې استبداد ډېر وو او شخصا يې رنج او درد ترې وړی دی، نو ځکه يې د سياست د علم هدف د استبداد څخه د خلاصون د لارې موندل ښودلی دي.

---

[۲۵] ابو الحمد،عبدالحميد،مبانی سياست،چاپخانه حيدری، تهران،۱۳۸۴ج اول،ص ٦-٧

[۲٦] ابو حامد غزالی(احياالعلوم الدين) ترجمه،مويد الدين محمد خوارزمی،به کوشش حسين،خد يو جم،انتشارات بنياد فرهنګ ايران،۱۳۵۱،در هشت جلد ص ۱۴ـ۱۵

يا د استبداد سره د مبارزې لاره ده چې؛ دا استبداد کېدلای شي د دين استبداد،د علم سره استبداد،د مال سره استبداد،د اخلاقو سره استبداد، د تربيې سره استبداد، د پرمختګ سره استبداد ياد کړو.[۲۷]

II. د بهرنيو پلټوونکو او څېړونکو له نظره د سياست تعريف: د يو شمېر مشهورو پلټوونکو له نظره د سياست تعريف:

۱ هارولډ ـ ژ ـ لاسکی:[۲۸]

نوموړی عالم د سياست د علم استاد وو، په اصل کې انګليس دی د کارګر د حزب د رهبرانو د جملې څخه وو په خپل اثر(مقدمه بر سياست) کې پرته له دې چې سياست تعريف کړي مستقيما يې د سياست موضوع تشريح کړې ده چې ( د هېواد او دولت د رسمي نهادونو ارزونه يا بررسي يې د سياست موضوع ياده کړې ده، خو په اوس وخت کې پلټوونکي يواځې د دولت قلمرو د سياست په موضوع کې نه شاملوي بلکې ساحه يې پراخه بولي.

۲ـ سی ـ ايچ ـ داد: د انګليس د سياست د علم څېړونکی وو چې؛ د خپل اثر(رشد سياسي) په مقدمه کې يې د سياست څخه تعريف نه دی کړی يعنې نوموړي مولف سياست ته د تعريف په ورکولو موافق نه دی.

۳ـ ملک آيور په خپل کتاب (جامعه او حکومت ) کې د سياست په هکله د نوموړي کتاب په ۲۹ پاڼه کې داسې کښلي دي چې( د سياسي حکومت مقصد عبارت دی له متمرکزو تشکيلاتو چې په يوه کوچنۍ يا لويه ټولنه کې نظم تامينوي.[۲۹]

د ملک آيور په عقيده د امريکا ډېر خلک د نوموړي د سياست د تعريف سره موافق دي چې په لاندې ډول دی:

( سياست هغه علم دی چې موږ ته دا رازده کوي چې کوم کس وړونکی دئ؟څه شی يې کټلئ؟چېرې يې ګټلئ؟څرنګه يې ګټلئ؟ولئ يې ګټلئ؟

---

[۲۷] کواکبی،سيد عبدالرحمن،طبيعت استبداد،ترجمه عبدالحسين ميرزای قاجار،نقد وتصحيح محمد جواد صاحبی،مرکز انتشارات دفتر تبليغاتی اسلامی حوزه علميه قم،۱۳٦۳،ص ۲۰۹

[۲۸] لاسکی، ژ،هارولد،مقدمه بر سياست،ترجمه منوچهر صفا،شرکت سهامی کتابهای جي بی،۱۳۴۷

[۲۹] ملک آيور،ر. م،جامعه وحکومت،ترجمه ابراهيم علي کنی،ترجمه ونشر کتاب بنګاه،۱۳۴۴

که چېرې سیاست یوازې مبارزه او جنگ وبولو دا تعریف تر یو حده سم او کامل دی ،خو یو شمېر سیاست پوهان بیا جنگ او جګړه د سیاست د موخو له جملې څخه حسابوي او د ټولنې او خلکو ارامي بل هدف دی چې د مبارزې د کامیابۍ څخه وروسته په لاس راځي.

۴ـ ( دسیاست د علم سره اشنایي ) د درې تنو امریکایي استادانو هغه لیکلی اثر دی چې سیاست یې داسې تعریف کړی دی.

د سیاست علم کولای شو د ټولنیزو علومو یوه رشته وبولو چې د سازمانود تیورۍ،حکومت او د حکومت په اعمالو پورې مربوطه ده.[۳۰]

۵ـ اېرینګ پیچر: د المان د فرانګفورت د سیاسی علومو استاد و، ده په خپل اثر کې ( د سیاست علم ) چې د پوهنتون یو تدرسي کتاب دی د سیاست تعریف نه دی کړی او یوازې یې د سیاست له دندې څخه یادونه کړې ده او په شپږ ویشتمه پاڼه کې یې داسې لیکلي دي:

د سیاست د علم دنده یوازې داسې خلاصه کېږي چې په انتقادي ډول او د سیاست د چوکاټ څخه بهر او همدا رنګه د سیاسي فعالیتونو د اشتغال په وخت کې د سنتي عقایدو په تحلیل او تجزیه،ارزیابۍ،د سیاسی نهادونو او د مسوولو سیاستمدارانو د کړنلارې په شکل رڼا اچوي.[۳۱]

۶ـژان ویلیام لاپیر: د فرانسې په پوهنتون کې دسیاسي ټولنپوهنې استاد دی چې؛ په خپل اثر (سیاسی قدرت ) کې یې داسې کښلي دي( سیاسي قدرت عبارت دی له یو ډول ټولنیز قدرت چې د یو ګروپ مقوله ده چې د مدني ټولنې په نوم یادیږي.[۳۲]

۷ـموریس دوورژه:د سیاست د علم استاد دی په خپل علمي اثر ( د سیاست د علم اصول ) کې یې د سیاست د علم اصلي قلمرو (قدرت ) ښکاره کوي او د مولف له نظره قدرت دوه اړخونه لري.[۳۳]

۸ـ رمون ارون: یو فرانسوي ټولنپوه دی چې سیاست یې داسې تعریف کړی دی؛سیاست د ټولنې د نامتوازنو پېښو په باره کې تصمیم نیونې ته وایي د بېلګې په ډول د اقتصاد پوه تصمیم د تولید، ویش او لګښت په هلکه یوه اقتصادي تصمیم نیونه ده خو که داسې تصمیم نیونه وي چې ایا مدرسه جوړه کړو که اټوم بم؟بیا داسې تصمیم نیول سیاسي تصمیم نیونه ده.

[۳۰] رودی،کارلټون،کلایمر واندرسن،توتون جیمز وکریستول،کارل کوسیمی،اشنای با سیاست،ترجمه وناشر بهرام ملکوتی،تهران ۱۳۴۸،ص ۳۰

[۳۱] فیچر،اپرینګ،علم سیاست،ترجمه،محمود کتابی،انتشارات دانشگاه پهلوی،۱۳۵۵

[۳۲] لاپیر،ژان ویلیام،قدرت سیاسي،ترجمه،بزرګ نادر زاد،تهران،انتشارات کتاب زمان،۱۳٦۲،ص ۵۹

[۳۳] دو ورژه،مورس،اصول علم سیاست،ترجمه،ابو الفضل قاضی،تهران،فرانکلین،شرکت سهامی کتابهای جی بی، ۱۴۹،ص ۸

# دوهم څپرکی

## کورنی سیاست او بهرنی سیاست

**لومړی: کورنی سیاست څه ته وایئ؟**

کورنی سیاست په داخل د هېواد کې، د وګړو یا اشخاصو،ګروپونو،ګوندونو او نورو نهادونو په منځ کې، د اړیکو سوله ییزه یا غیر سوله ییزه رهبري کولو ته وایي .[٣٤]

په لنډ ډول کورنی سیاست عبارت دی له هغو اصولو او قواعدو څخه چې د ټولنیزو قوتونو په سیاسي اړیکو باندې په یو مملکت کې حاکم وي.[٣٥]

او یا هم په بل عبارت، کورنی سیاست عبارت دی د حکومت د کړنلارو، د قدرت اعمال او استعمال، چې د حکومت او سیاسي نهادونو د ټولو چارو د اختیاراتو په قلمرو کې قرار لري.[٣٦]

سیاسي چارې په دې ترتیب عبارت دي، د دولت د جوړښت او تشکیلات،په هېواد کې د چارو سمون،د طبقاتو لارښوونه او رهبري،د سیاسي قدرت په سر لانجې او کړکیچونه چې د بانفوذه ګوندونوپه منځ کې راپیدا کېږي، نو ځکه کورني سیا ست ته د دولت کړنلارې او تصمیم نیول په کورني قلمرو کې ویل کېږي، چې بېلابېل اړخونه لري لکه اقتصادي سیاسي،نظامي،امنیتي،اجتماعي او فرهنګي چارې.[٣٧]

**دوهم بهرنی سیاست:**عبارت له هغه طرحه شوې پالیسی او کړنلارې څخه دی، چې د یوه هېواد د بهرني سیاست د تصمېم نیوونکو له خوا د ځانګړو اهدافو د تحقق په منظور د نورو هېوادونو او نړیوالو سازمانونو په وړاندې طرحه شوي دي.[٣٨]

---

[٣٤]علم،عبدالرحمن،بنیاد های علم سیاست،تهران،نشر نی،۱۳۷۵،ص ۳۰

[٣٥] علم،عبدالرحمن،همغه اثر،ص ۳۱.

[٣٦] طلوعی،محمود،فرهنگ جامعه سیاسی،تهران،۱۳۷۷،ص ۵۷۸.

[٣٧]عاشوری،داریوش،دانش نامه سیاسی،نشرات مروارید،تهران،۱۳۸۳،ص،ص۲۱۲ـ۲۱۳.

[٣٨] حقیقت،سید صادق،مبانی اصول واهداف سیاست خارجی دولت اسلامی،قم،پژوهش گاه علوم وفرهنگ اسلامی،۱۳۸۵،ص ۲۰

په بل تعریف کې داسې راغلي دي چې؛ بهرنی سیاست د هغو تصمیمونو له تدوین،اجرا، عملي کول،ارزیابي او څېړنه، ده چې د یوه هېواد له نظره بهرنی اړخ لري.[۳۹]

د بهرني سیاست مقوله د ټولنیزو علومو په منځ کې یو د پیچلو او کړکیچنو مقولو له جملې څخه ده چې لسگونه یا آن سلگونه ټولنیز،فرهنگي،سیاسي،تاریخي او تکتیکي عوامل لري چې په سیاسي نهادونو او نړیوالو نظامونو پورې اړوند دي.[٤٠]

د بهرني سیاست په تدوین،تنظیم او رهبري کې بېلابېل عوامل او متغیرونه دخالت لري چې له دې جملې څخه ملي خصلت او خصوصیات ، سیاسي ، ټولنیز ، ایډیالوژیک،فرهنگي تشکلات،جغرافیایي موقعیت،گوابنونه،د سیاست مدارانو د فکر او نظر ځرنگوالی، نوموړي متغیرات او عوامل رول لري.[٤١]

هابس: بهرنی سیاست داسې تعریف کړی دی چې؛(د نورو ملتونو سره د جنگ یا سولې حق،یعنې دغه قضاوت چې څه وخت د قهري ځواک څخه گټه واخېستل شي دا مطلقا د حاکمیت حق دی.[٤٢]

د فرانسې د اساسي قانون په پنځه وېشتمه ماده کې تسجیل دي چې؛( د جمهور رېیس وظیفه او مسوولیت د اساسي قانون ساتنه، د استقلال او ازادۍ حراست،ارضي تمامیت او د قراردادونو لاسلیک دی.

ډېر غربي هېوادونه چې سیاسي نظام یې د دیمکراسۍ پر بنسټ ولاړدی، باور لري چې بهرنی سیاست جوړونه، باید د یو څو محدودو اشخاصو په صلاحیت کې وي،د هر ډول کورني سیاسي کړکیچونو څخه محفوظ وساتل شي، آن د دولت په بدلون سره باید بهرنی سیاست تغیر ونه کړي او خپل تداوم ولري.[٤٣]

---

[۳۹] کاظمی،علی اصغر،روابط بین المللی در تیوری وعمل،تهران،قومس،۱۳۷۲،ص ۴۲

[٤٠] سریع القلم،محمود،عقل وتوسعه یافته گی،تهران،نشر سفیر،۱۳۷۲،ص ۲۰٦.

[٤١] کاظمی،علی اصغر،روابط بیل المللی در تیوری ودر عمل،ص ۴۴ .

[٤٢] باربر،جیمزاو سمت،مایکل،ماهیت سیاستگذاری خارجی دردنیای وابسطگی متقابل کشورها ,ترجمه داکتر سید حسین سیف زاده،نشر قومس،تهران،۱۳۸۸،ص،۱٦ـ۱۷

[٤٣] باربر،جیمز، سمت،مایکل،ماهیت سیاست گذاری خارجی در دنیا وابستگی متقابل کشورها،ترجمه،داکتر سید حسین سیف زاده،تهران،۱۳۸۸،ص،۱۸ـ۱۹.

بهرني او کورنی سیاست دوه مهم توپیرونه سره لري چې یو یې د حوزې او قلمرو له نظره دی چې په کورني سیاست کې د دولت داخلي کړنلاره په بېلابېلو اړخونو کې شامله ده، خو په بهرنی سیاست کې د دولت کړنلاره په بهرني قلمرو او د دولتونو سره اړیکې شاملې دي.

دوهم توپیر یې دادی چې، کورنی سیاست د دولت اړیکې د ګروپونو،ګوندونو،نهادونو او علمي،فرهنګي،تاریخي،سیاسي،اقتصادي جوړښتونو سره دي،خو په بهرنی سیاست کې د دولت اړیکې د نورو دولتونو او بین المللی سازمانونو سره شاملې دي.

کورنی او بهرنی سیاست د یوې سیکې دوه مخه دي، دواړه کړنلارې یو له بل سره ډېرې ټینګې اړیکې لري،بهرنی سیاست د کورني سیاست دوام دی ،ترڅو پورې چې کورنی سیاست منظم تدوین شوی نه وي، بریالی نه دی.

ترڅو پورې چې د ملت د شرایطو،حالاتو او وضعیت،فرهنګ،کلتور،دیني او مذهبي عقاید،تاریخ، جغرافیایي موقعیت،اقتصادي،نظامي او سیاسي توان، سره برابره طرحهتصویب او عملي شوي نه وي، هیڅکله هم بهرنی سیاست بریالی کېدای نه شي.

ملي ګټې ، ملي هدفونه یا موخې ، خنډونه ، فرهنګ ، کلتور ، دود او رواج ، دیني عقاید ، تاریخ ، جغرافیایي موقعیت،ملي شتمۍ او سرچینې،نفوس او ګواښونه باید په کورنی سیاست کې په ځرګند ډول په نظر کې نیول شوي وي ترڅو یو کورنی کامیابه سیاست ولرو.(لیکوال)

د هر بهرني سیاست د کامیابۍ په وړاندې کورنی سیاست کولای شي چې خنډونه، محدودیت او د ملي ګټو پر ضد عمل رامځته کړي.[٤٤]

نو ځکه د بهرني سیاست د کامیابۍ لپاره د کورني نظم او د قانون حاکمیت ته اړتیا لیدل کېږي او په نړیواله کچه یو خاص نظم ته اړتیا لري.[٤٥]

ټول دولتونه د قرار دادونو د انعقاد او د سیاسي اړیکو په شتون کې، خپلې ملي ګټې او د ټولنې ارزښتونه په نظر کې نیسي.

[٤٤] قوام،سید عبدالعلي،اصول سیاست خارجی وسیاست بین الملل،تهران،۱۳۷۵،ص ۱۰۴.

[٤٥] دائرت المعارف دموکراسي،ص ۹۳۱.

بهرنی سیاست د کورني سیاست په رڼا کې تدوین کیږي،بهرنی سیاست د هېواد د ملي موخو د تعقیب په مفهوم دی.

په یو نړیوال چاپیریال کې چې د بین المللي سازمانونو، هېوادونو او دولتونو په ارتباط وي، بهرنی سیاست په نړۍ کې د دریځ لاربنوود دی،بهرنی سیاست د هر هېواد د شرایطو،حالاتو،وخت او زمان سره بدلون مومي.

ډېر غربي هېوادونه معتقد دي چې؛ باید بهرنی سیاست د کورنیو اختلافونو څخه په امن کې پاتې وي، آن تر دې چې د دولتونو د بدلون په صورت کې باید بهرنی سیاست خپل تداوم او استمرار ولري او هیڅ ډول بدلون په کې وارد نه شي.[٤٦]

د بهرني سیاست سره مخالفت کول،د ټولنې د ملي ګټو په ضد یوه توطه بلل کیږي، په ټولو هېوادونو کې بهرنی سیاست د اجرایي قوې په صلاحیت کې ده.

کوښښ کیږي چې، د بهرني سیاست صلاحیت د څو محدودو اشخاصو په لاس کې ورکړل شي.

د بهرني سیاست طرحه او پلي کول،باید د ټرلو دراوزو شاته وي چې؛ دا موضوع د هر هېواد په امنیت پورې تړلې ده.

ملي دولتونه په اوسني شکل د وستفالې د قرارداد د انعقاد راوروسته، په ۱٦۴۸ م کال کې په لومړي ځل شکل نیولی دی چې، د پروتستانت او کاتولیک عیسویانو ترمنځ جګړه وه چې دېرش کاله یې دوام وکړ، مستقل هېوادونه تشکیل شول، بین الملل حقوقو ته پاملرنه وشوه.

د قدرت موازنه او د ټولیز امنیت د نظام ځواکمنتیا ظهور وکړ، یاده پروسه د فرانسې تر انقلاب پورې(۱۷۸۹)م کال وروسته بشپړه شوه یعنې د ناپیلیون بیناپارت د یرغلونو سره په اروپایي هېوادونو کې ملي روحیه ځواکمنه شوه، ملي اردو یې تشکیل کړه چې، مخکې یې د معاش په مقابل په هر هېواد کې اجیره اردو جوړه کړې وه.

د وطن پرستۍ روحیې یې په جنګ کې شتون نه درلود خو وروسته د عسکري نظام د سرتېرو د جذب اصل رامنځته شو.

---

[٤٦] عاشوری داریوش،فرهنګ سیاسي،تهران،انتشارات مروارید،چاپ هشتم،۱۳۵۴.

(د ویستفالي پیمان په ۱٦۴۸ م کال د مونستر په ښار کې،د دېرش کلن جنګ وروسته،د ټولو اروپایي هېوادونو په منځ کې لاسلیک شو خو برتانیې او پولینډ د لاسلیک څخه انکار وکړ،یاد پیمان د سولې پیمان وو چې د هېوادونو په منځ کې د څو اړخه تړونونو د لاسلیک سبب شو چې وروسته بیا د ویستفالي تړون د جامعه ملل او پایله کې د ملل متحد دسازمان د جوړېدو اصل لامل شو چې د ویستفالي د تړون اصول د ملل متحد د منشور په اصولو کې ځای خپل کړ،د بېلګې په ډول د هېوادونو په کورنیو چارو کې مداخله نه کول او بل اصل هر هېواد خپل حاکمیت او د مساوي حق درلودونکی دی چې یاد دوه اصول د ملل متحد د منشور په اصولو کې کارول شوي دي.)

د بهرني سیاست اساسي غوښتنې د ارضي تمامیت او د هېواد او ټولنې پایښت دی، د بهرني یرغل په وړاندې نظامي امنیت بل ارزښت دی چې د حد اقل غوښتنه ده.

اقتصادي اړتیاوې چې د کورنۍ څخه په بهرني سیاست کې انعکاس مومي، د ټولنې اقتصادي اړتیاوې یادولای شو.

د بدلون په حال کې ټکنالوژي ، د نفوسو ډېروالی،اقتصادي وده،نوي سازمانونه،د بدلون په حال کې ارزښتونه،باور،انتظار او د بدلون په حال کې سیاسي نظام دی چې په کلکه په اقتصادي اړتیا باندې اغیز لري.

**باید په یوه هېواد کې دبهرني سیاست تصمیم نېوونکي متخصیصین لاندې عوامل په نظر کې ونیسي:**

۱ـ د نفوسو زیاتوالی چې د کښت لپاره ځمکې ته اړتیا لري او غذایي زېرمو ته اړتیا لېدل کېږي.

۲ـ د صنعتي خامو موادو اړتیا، د پانګوالې سرچینې، چې د اقتصادي ودې لپاره اړینه ده.

۳ـبهرنی بازار او مارکېټ چې د خپلو تولیداتو او صادراتو لپاره اړتیا ورته احساس کېږي.

۴ـ د وارداتي توکیو لپاره د مارکېټ پیدا کول.

۵ـ د پیسو د ارزښت ساتنه.

٦ـ د مواصلاتي لارو او کرښو ساتنه.

۷ـ د خصوصي پانګوالي څخه ملاتړ.

۸ـ د فرهنګ په نظر کې نیول.

۹ـ دیني او مذهبي اعتقادات په نظر کې نیول.

۱۰ـ د مقابلو هېوادونو اړتیاوې،عرف،فرهنګ،تاریخ اوجغرافیایي موقعیت په نظر کې نیول.

**دریېیم: د هېوادونو د بهرني سیاست موخې یا اهداف:**

ټول هېوادونه په بهرني سیاست کې خپلې ټاکلې موخې تعقیبوی،هر هېواد د خپل قدرت او توان په اندازه خپلې موخې طرحه او تعقیبوي، د ټولو هېوادونو ګډې موخې په بهرني سیاست کې عبارت دي له؛د ارضي تمامیت ساتنه،د ازادۍ او استقلال ساتنه،د ملي امنیت تامین،ملي هوساینه،د ملي حثیت ساتل او د قدرت د لاسته راوړلو څخه عبارت دي.

د یادو موخو په لاسته راوړلو کې لومړی د هېواد په داخل کې د عامو خلکو ملاتړ، په دوهمه برخه کې د لازم قدرت درلودل دي، چې د موخو په لاسته راوړلو کې اړین رول لري او د خپلو موخو په لاسته راوړنه کې د نورو هېوادونو متقاعد کول شامل دي .

د بهرني سیاست د لارښود ځراغ همغه ملي ګټې دي چې؛ پرته له دې چې ملي ګټې په بهرني سیاست کې په څرګند ډول مطرح شوي نه وي هغه بهرنی سیاست به خامخا د ماتې سره مخامخ کیږي.

**هغه اساسي موخې چې د بهرني سیاست بنسټ تشکیلوي په لاندې ډول دي:**

۱ـ د ملي یوالي ساتنه،د هېوادونو ترټولو مهم بهرنی سیاست د ارضي تمامیت ساتنه ده او نورې موخې د ارضي تمامیت په محور راڅرخي.

**په عمومي ډول دوه کړنلارې د ارضي تمامیت د ساتنې لپاره شتون لري.**

الف: د اوسني وضعیت د ساتنې سیاست.

ب: د اوسني وضعيت د بدلون او بيا کتنې سياست.[٤٧]

هغه هېواد چې د ارضي تماميت ساتنه يې په اوسني چارجوب کې غواړي، کوښښ کوي چې د هېواد سرحدات يې په خپل حالت پاتې شي او کوم بل هېواد تعرض او تېری پرې ونه کړي ترڅو سرحدونواو پولو ته يې زيان ونه رسيږي.دوهمه تګلاره ،يو هېواد کوښښ کوي چې اوسنۍ جغرافيايي پولې ته بدلون ورکړي څو وکولای شي چې د دوو لارو څخه د بيا کتنې سياست(د تجديد نظر سياست) تعقيب کړي، چې يوه لاره يې د اجبار او دوهمه لاره يې د روغې جوړې لاره ده.

په لومړۍ لاره کې هېوادونه د چنو وهلو او خبرو اترو لاره خپلوي، ترڅو نورو هېوادونوته قناعت ورکړي چې خپلو پولو ته بدلون ورکړي، که چېرې دغه کړنلاره مثبته پايله ورنکړي قضيه د جنګ او منازعې لوري ته تقرب کوي، چې بېلګه يې د صدام حسين تګلاره وه چې په کويټ باندې يې يرغل وکړ او په پايله کې امريکايي او کويټي قوتونو بيا ځل په عراق يرغل وکړ.

ملي امنيت چې د هېوادونو د بهرني سياست يو ستر او مهم هدف دی،ملي امنيت نن ورځ د پخوا په پرتله بېل ماهيت لري د دوهم نړيوال جنګ څخه وروسته د ملي امنيت مفهوم په درې ګونو مفهمونو کې نغښتی دی.

١ـ سياسي چمتوالی.

٢ـ نظامي چمتوالی.

٣ـ اقتصادي چمتوالی.

د يو هېواد د سياسيي چمتوالي په برخه کې د بهرنيو هېوادونو سره امنيتي تړون منعقد کول،د نظر د اختلاف په شتون کې د هېوادونو ترمنځ خبرې اترې،د بين المللي نظام څخه د ټوليزې دفاع په منظور ګټه اخېستنه ياد ټول موارد د سياسي چمتوالي په هکله مهم عناصر دي.

---

[٤٧] قوام،سيد عبدالعلی،همغه اثر.ص

د اقتصادي چمتوالي په برخه کې د مهمو طبيعي او غذايي سرچينو درلودل،صنعتي مهارت اووړتيا درلودل، د توليدي مرکزونو د تاسيس لپاره لازم نهادونه ،د اقتصادي چمتوالي په جمله کې داخل دي.

او همدا رنګه د نظامي چمتوالي په هکله، د دفاع لپاره د ستراتيژيکو طرحو درلودل ،د نظامي باتجربه مسلکي قوت درلودل، د ټولنې او ملت د رواني حالت چمتوالي چې د اړتيا په وخت کې احساس کېږي، د نظامي چمتوالي په ډله کې راځي.

ملي هوساینه هم د بهرني سياست ستره موخه ده چې هېوادونه کوښښ کوي ټکنالوژيک او سوداګريزې اړيکې تامين او ټينګې کړي.

ملي هوساينه دوه ډوله عواملو ته اړتيا لري:

الف:ملي ثروت.

ب: ملي سرچينې.

د ملي ثروت په ډله کې جغرافيايي موقعيت،د نړۍ صنعتي مرکزونو ته لاس رسی،د نفوسو کيفيت او کميت شامل دي.

په ملي سرچينو کې د شته امکاناتو څخه ګټه اخېستنه چې د علم او فن په پرمختګ پورې اړه، لري شامل دي.

ملي حثيت په هغه اندازه چې يو وګړی په ټولنه کې د ځان د حثيت ساتنه کوي او اهميت لري، په نړيوال نظام کې د يو هېواد حثيت هم مهم ارزښت لري.

د هېوادونو د قدرت لاسته راوړلو په هکله تمايل:

مورګنتيا وايي ( د قدرت رسېدلو ته، د نړۍ يو واقعيت دی چې په زمان او مکان پورې اړه نه لري او دا يو تجربه شوی واقعيت دی.هر هېواد د خپل ملت د ملاتړ،قدرت په نظر کې نيولو سره خپل بهرنی سياست طرحه کوي.[۴۸]

[۴۸] قوام،سيد عبدالعلی،همغه اثر

نن په نړۍ کې د ډيپلوماتيکو اړيکو تامين ، استقرار ،د سياسي اړيکو پرېکول،د قراردادونو انعقاد،په نړيواله ټولنه کې غړيتوب او نور ټول د دولتونو صلاحيت دی چې د اړوند ملت په استازيتوب ذکر شوي اجراات وکړي.

که څه هم په سختۍ سره ويلای شو چې؛ هر دولت به د خپل ملت استازيتوب په رېښيني ډول سره وکولای شي، په دې ټکي بايد سترګې پټې نه شي چې برسېره د رسمي لوبه کوونکی نهاد چې عبارت له دولت څخه دی، په لسګونه سازمانونه،اتحاديې،شرکتونه او انجمن هم شتون لري چې د حکومت رسمي سياست ته پاملرنه نه کوي خو د سياسي واحدونو ملي ګروپونوته پاملرنه کوي ،چې له دې جملې څخه د انقلابي سازمانونو او ازادي بخښوونکو غورځنګونو يادونه کولای شو.[٤٩]

[٤٩] قوام،عبدالعلی،اصول سياست خارجی وسياست بين المللی،ص ۱۳ـ۱۵

# دریم څپرکی

## د دولت د قدرت د جوړښت مهم عناصر

په اصولو کې د یوه دولت د جوړښت عناصر عبارت دي له؛ خلک یا نفوس، خاوره یاجغرافیایي حدود ،حکومت او حاکمیت.

هغه عناصر چې د یوه دولت د قدرت په ډېروالي او لږوالي کې اغیز لري په لاندې ډول دي:

**اول ـ ایډیالوژي:**

په سیاسي ادبیاتو کې د ایډیالوژي لغوي معنی عقیده یا سیاسي نظر تعریف شوی ده.

خو یو شمېر نور پوهان یې د ژوند،ټولنې او حکومت په هکله د ارزښتونو او اندېښنو یوه ټولګه ګڼي.

ایډیالوژي له فکري اوعقیدتي نظام څخه عبارت ده ، چې په بهرنیو واقعیتونو د اعمال وړتیا ولري.

ایډیالوژي دواقعیتونو یو ترکیب دي، چې په ظاهره په یوه نظم کې قرار لري او په تفسیرونو ،ارمانونو اووړاندوېیني باندې مشتمله ده.ایډیالوژي کولاۍ شئ چې د ملي روحیې دقوت سبب وګرځي.

ایډیالوژي د فرهنګي،نژادي او توکمیزو اختلافاتو په شتون کې د یووالي او وحدت عامل کیدلای شئ.[50]ـ[51]

د لومړي ځل لپاره د ایډیالوژي اصطلاح د یوه فرانسوي عالم له خوا چې انتون دوتراس نومېده د روشن فکرۍ په عصر کې کارول شوې ده.

دایډیالوژي یو مهم رول او نقش د ملی اقتدار او قدرت په لوړوالي کې، د مشروعیت ورکولوڅخه عبارت دی، چې سیاسي نظام ته یې وربخښئ، ځکه مشروعیت د هغې اړیکې بیان کوونکی دی چې د رهبرانو او د ټولنې د وګړو په منځ کې شتون لري.

[50] گریگوری،الیوت،فرهنگ اندیشه انتقادی،ازروشنگری تا پسا مودرنیتی،ترجمه،پیام یزدان جو،چاپ نخست،تهران،۱۳۹۱.

[51] فرهنگستان زبان وادب فارسی،۱۳۹۱.

ایډیالوژي نوموړي اړیکه ټینګوي، ځکه هغه وخت ټولنه، د رهبر تصمیمونه عملي کوي چې ټولنه د رهبر په تصمیم باندي باور او عقیده ولري.

**دوهم: د سیاسي نظام د مشروعیت عوامل:**

۱- دټولنې ونډه اخیستنه

۲- د سیاسي نظام اقتدار او وړتیا په ټولنیز،فرهنګي او سیاسي ډګر کي.

**۳-** کلتور اوسنت ته د سیاسي اقتدار سره اړیکه ورکول

۴- د پرسونل په جذب او تجهیزکولو کي د سیاسي نظام قدرت.

۵- د تګلارو او سیاسیتونوسره د نظام د کړنو تطابق.

٦- د سیاسي قدرت په ویش کي د نظام وړتیا.

یو سیاسي نظام د خپل قدرت او د ټولنې د ارزښت سره اړیکه پیدا کوي، چې په واقعیت کې هغه عامل چې د ټولنې د ارزښتونو او د سیاسي قدرت په منځ کې اړیکه جوړوئ د مشروعیت په نوم یادېږي یا په لنډ ډول د ټولنې هراړخیز ملاتړ د دولت څخه د مشروعیت په نوم یادېږي، په دې ځای کې د بین المللی ایډیالوژۍ رول او نقش ته اشاره کوو:

الف- د نیشنلیزم رول(د فرانسې د انقلاب په راوستلو کې)

ب- بیلشوېزم(د روسیې د انقلاب په راوستلو کې یې ستر رول درلود)

ج- افتصادي لیبرالیزم(دغربي اروپا او شمالي امریکا د سیاسي نظام فلسفه)

د- هټلریزم یا د نازي حزب نیشنلیستي مفکوره(رسیسم او د اریایي نژاد رسالت چې ځانونه یې اریایي نژاده بلل)

ر- پرولتاریایي انټرنیشنلیزم(د شرق د بلاک مفکوره خصوصآ د شوروي اتحاد د کمونیزم ایډیالوژي چې عقیده لري یوه ټولنه د فیوډالي حالت څخه و پانګوالې مرحلې ته تحول کوي چې وروسته د سوسیالیستی او بالاخره د کمونیزم مرحلې ته د طبقاتي نظام د بدلون سبب ګرځئ.

## دریېیم:انساني اوټولنیز عوامل:

### ۱ـ د نفوسو شمېر او اندازه:

د نفوس شمېر د جګړې او یا سولې په حالت کې یو کلي عامل دی، چې سیاسي قدرت ته منصوب کیدلای شي، چې د لاندي وګړو شتون پکښې اړین دی، د بېلګې په ډول متخصص او مسلکي کسان ،د جنګي افرادو شمېر ، د نفوسو د ډیروالي میزان او فیصدي، د سیاسي نظام ونډه او قدرت د خدمتونو په وړاندې کولو کې دیادولو وړ دي چې د نظام په مشروعیت کې رول لري.[۵۲]

ښه بېلګه یې د چین هېواد دی، چې تقریباً یو عشاریه څلور ملیارده نفوس لری، د البانیا د هېواد په پرتله چې درې میلیونه نفوس لری.

په نړیوال ډګر کې بې له دې چې د دولت د جوړښت نورو عناصرو ته اشاره وشئ (جغرافیایي حدود،حکومت او حاکمیت) ښه مثبت رول لري ولئ که چیري یو دولت په اقتصادي، صنعتي او ټکنالوژیکي ډګرونو کې وروسته پاتې وي؟ د جمعیت اونفوس ډېروالی نه یوازې دا چې د قدرت په ډېروالي کې مرسته نه شي کولای بلکې په نړیواله ساحه کې یې اغیز لږ او اهمیت یې کمېږي.[۵۳]

### ۲- ملي ځانګړتیاوې

هغه دولت چې په بهرني سیاست کې په عمومي افکارو باندي ولاړ وی، لازمه ده چې داسي کړنلاره او سیاست غوره کړی چې؛ د عامو خلکو د قبول وړ وګرځئ.

که داسي و نه کړئ د مشروعیت د بحران سره مخامخ کېږي، له همدې امله نن سبا ټول هېوادونه د خپل ملي امنیت د ساتنې په خاطر د تعلیم اوتربیې اصل ته مخه کړې ده.

د یوه هېواد د خلکو عکس العمل د ازادۍ او استقلال په وړاندې، د ملي اقتدار په ارزونه کې په نظر کې ونیول شئ، یو شمېر ملتونه د استقلال د موضوع په وړاندي فوق العاده حساس دي

---

[۵۲] نقیب زاده احمد، در امد بر جامعه شناسی سیاسی،ناشر،سازمان مطالعات وتدوین قطب علوم انسانی دانشگاها،۱۳۸۹،ص،۱۵۴.

[۵۳] حسین،بشریه،مبانی علم سیاست نظری،تهران،۱۳۸٦،ص،۴۲.

د بېلګې په ډول د افغانستان ملت چې د تاریخ په اوږدو کې د خپلو اسلامي او فرهنګي ارزښتونو په نظر کې نیول سره خپلې ازادئ او استقلال ته لومړیتوب ورکړی دی.[٥٤]

ایت شریف دی چې ارشاد کړی دی(ای مسلمانانو د کافرانو په وړاندې ځانونه چمتو کړی،په داسې شکل چې وکولای شئ خپله اسلحه او جنګي الات، د سورلی اسونه او خوراکي توکي(اذوقه)د خپل ځان او د خدای د دښمنانو په وړاندې چمتو کړئ).[٥٥]

په بل ایت شریف کې د انفال په سورت کې داسې ارشاد شوی دی؛(یو د بل سره نزاع مه کوئ چې کمزروي کېږي او شان او شوکت او دبدبه مو د لاسه ورکوی.)[٥٦]

**۳- ملي روحیه:**

ایت شریف دی چې ارشاد کړی دی(ای مسلمانانو د کافرانو په وړاندې ځانونه چمتو کړی،په داسې شکل چې وکولای شئ خپله اسلحه او جنګي الات، د سورلی اسونه او خوراکي توکي(اذوقه)د خپل ځان او د خدای د دښمنانو په وړاندې چمتو کړئ).[٥٧]

په بل ایت شریف کې د انفال په سورت کې داسې ارشاد شوی دی؛(یو د بل سره نزاع مه کوئ چې کمزروي کېږي او شان او شوکت او دبدبه مو د لاسه ورکوی.)[٥٨]

د یوه هېواد د وګړو رواني حالت او د پیدایښت ځانګړتیاوې هم مهمې دي، چې د ملي روحیې تر نوم لاندې مطالعه کېږي.

ملي روحیه یو لنډ مهاله حالت دی، چې د سیاسي نظام او بهرني سیاست څخه د ټولنې د خلکو ملاتړ دی ، چې دا عامل د سیاسي ثبات او مشروعیت په هکله دولت ته ګټور ثابت کیدلای شئ.

[٥٤]نقیب زاده احمد، در امد بر جامعه شناسی سیاسی،ناشر،سازمان مطالعات وتدوین قطب علوم انسانی دانشگاها،۱۳۹۰،ص،۹.
[٥٥] سورت الانفال،ایت نمبر ٦٠.
[٥٦] سورت الانفال،ایت شمېره ۴٦.
[٥٧] سورت الانفال،ایت نمبر ٦٠.
[٥٨] سورت الانفال،ایت شمېره ۴٦.

**۴- ټولنیز یووالی:** [۵۹]

ملي یووالي یو مهم عنصر دی، چې د ملي قدرت په ارزونه کې حساب کیدلای شی،سیاسي، ټولنیز، ایډیالوژیک تفاهم او د نظر یووالی،د دولت په پیاوړتیا کې اساسي رول لري، تر څو دولت وکولای شئ چې خپلې ملي ګټې او موخې په لاس راوړي.

که چېرې اقلیتونه یا لږکي ګاونډیو هېوادونو ته تمایل او زړه ښه کړي، د ډېرو سیاسي مشکلاتو سبب ګرځئ، چې د دولت د کمزورتیا عوامل برابروي.

د بېلګې په ډول په لومړۍ نړېواله جګړه کې د اتریش امبراطوري چې د چک، صربستان،لهیستان او د رومانیې مربوط نژادونه یې په خپل قلمرو کې درلودل، چې هر توکم د ځان لپاره د ازاد هویت غوښتنه درلودله، چې د اتریش د امبراطورۍ د ماتې سبب شوه.

همدارنګه په فرانسه او ایټالیا کې د کمونیستي ګوندونو شتون په نوموړو هېوادونو کې د ډیموکراسۍ د سیستم د کمزورتیا عامل وګرځېده.

**څلورم سیاسي عوامل:**

په دې هکله کولای شو چې د سیاسي ثبات اندازه ،د رهبرۍ کیفیت،د حکومت او نظام شکل او د ملي باور څخه یادونه وکړو.

**الف- سیاسي ثبات:**

د سیاسي ثبات درجه باید د یو تړلي متغیر په حیث وپېژنو نه د یو ازاد او مستقل متغیرپه حیث، ځکه چې ډېر اقتصادي بحرانونه او کړکېچونه د یو مستقل متغیر په حیث سیاسي ثبات تر اغیز لاندې راوستلي شئ ،چې په پایله کې د ملي اقتدار د کمزورتیا سبب ګرځئ.

څرنګه چې د دولتونو ملي ګټې د یو لړ ټینګښت بخښوونکو عواملو تر اغیز لاندې د وخت په اوږدو کې صورت نیسي، دا انتظار باید ونه لرو چې د ګوندونو،اشخاصو او حتی حکومتونو په منځ ته راتللو سره ملي ګټې نه اغیزمنې کېږي، ځکه په ډېرو مواردو کې جغرافیایی موقعیت او

---

[۵۹] قوام، سید عبدالعلی همهغه اثر،ص ۷۵-۸۵

جیوپولیتیک شرایط،بهرني سیاست پوهان او پالیسي جوړونکي د یو شمېر محدودیتونو سره مخامخ کوي او هېره دې نه وي چې د حکومت په بدلون سره ممکنه ده چې؛ د بهرني سیاست د موخو لومړیتوبونه په یو وخت کې بدلون ومومي، د بېلګې په ډول یو ګروپ شخصیتونه په یوه دوره کې د اقتصادي او ټکنالوژیکي پرمختیا او ودې لپاره لومړیتوب ورکوي، خو د حکومت په بدلون سره نوي سیاست پوهان او پالیسي جوړونکي ممکنه ده نظامي او د ملي امنیت پرمختیا ته لومړیتوب ورکړي.

**ب- رهبري:**

رهبري او مشرتوب د بېلابېلو اړخونو دپاملرنې وړ دی لکه د ډیپلوماسۍ مدیریت، د اقتصاد مدیریت، نظامي او ایډیالوژیک مدیریت د بهرني سیاست د تنظیم کولو مدیریت، هغه رهبرانو او مدیرانو ته اړتیا لري چې، د بین المللي وضعیت او غوښتنو برابر او وړ درک ولري، ترڅو ملي ګټې او موخې تامین کړای شي.

د مادي او معنوي سرچینو څخه ګټه اخیستنه،د ملي ایډیالوژي څخه اغېزمنه ګټه اخیستنه د ټولنې د یووالي په هکله، او په بحراني او جنګي حالت کې د نظامي امکاناتو څخه اغیزناکه ګټه اخیستنه، ټول په رهبرۍ او مشرتوب پوري تړلي عوامل دي،چې د ملي قدرت د ډېروالي وسیله ګرځي.

د سیاسي قدرت د ارزونې له نظره، د المان دولت وروسته له ۱۸۷۱ م د بسمارک تر مشرۍ لاندې، د چرچیل تر رهبرۍ لاندې برتانیې په ۱۹۴۰ م کال کې، او فرانسه په ۱۹۵۸ م د ریېس جمهور دوګول تر مشرۍ لاندې، د اغېزمن سیاسي قدرت له اړخه د یادولو وړ دي.

**ج- د حکومت جوړښت او شکل:**

د حکومت جوړښت، د تصمیم نیونې طریقه، کړنلاره او تګلاره جوړول، د ستراتیژۍ په طرحه کې ډېر اغیز لري، څکه یو بیوروکراتیک پیچلی نظام د تصمیم نیولو او کړنو په هکله د سیاستمدارانو لپاره ډېر مشکلات او ستونزې جوړولای شئ.

که څه هم یو دولت د بالقوه اقتصادي او نظامي امکاناتو باندې بسیا وي،خو د نظام د بیوکراتیک پیچلتیا او کړکیچن سیستم له امله نوموړي دولت نه شي کولای په ښه ډول د فرصتونو څخه ګټه واخلئ.

د عمومي نظرونو اغېز یوازې په ډیموکراټیکه ټولنه منحصره نه ده، بلکې په ټوټالیټیر او مستبد نظام کې که بهرنی سیاست د عامه نظریاتو ملاتړ ولري، سیاسي رهبران په اغیزناکه او کامیابه شکل عمل کولای شي.

هغه عمده عوامل چې د ملي اقتدار د زیاتوالي سبب ګرځي عبارت دي له:

د حکومت سیاسي ثبات،د بهرني سیاست د مسولینو او اجراکوونکو وړتیا او مهارت،تدبیر،تحرک،دعمل ګړندیتوب،د رهبرۍ کیفیت، د وضعیت درک کول او په پای کې د ټولنې ملاتړ د طرحه شوي سیاست او پالیسۍ څخه.

**د- ملي باور او اعتبار:**

یو دولت چې د خپل جوړښت او کړنو انځور په بین المللي ټولنه کې له ځانه څرګندوي، په اقتصادي او سیاسي ډګر کې ډېر اغیزناک دی،چې د یو معقول دریځ څخه په ډیپلوماتیکو خبرو اترو کې وړتیا ولری.

د یوه دولت د اعتبار په ډېروالي کې ځیني عوامل رول لري، لکه، په جګړه کې بریا،د قوي متحدینو شتون،اقتصادي او صنعتي پرمختیا، د ازادو او مستقلو ستراتیژیو طرحه کول.

مثلاً د امریکا یرغل او مسلسله لاسوهنه،د دریېمي نړۍ د هېوادونو په کورنیو چارو کې له دوهم نړیوال جنګ وروسته، تر ډېره حده د امریکا نړیوال پرستیژ او موقف ته زیان رسولی دی.

همدارنګه د فرانسي او انګلیستان یرغل په مصر باندې، وروسته له دې چې د سویز کانال د مصر له خوا په ۱۹۵۶ م کې ملي اعلان شو په زیاته اندازه یې د یرغلګرو هېوادونو پرستیژ او موقف ته زیان واړاوه چې له امله یې د یادو یرغلګرو هېوادونو په ملي قدرت باندې منفی اغیز وکړ.

ډېر وخت وروسته نوموړي هېوادونه وتوانېدل چې د عربي هېوادونو سره اړیکې عادي حالت ته راولئ.

**پنځم:جغرافیایي عوامل:**

د خاورې پراخوالی،د هېواد شکل،طبیعي وضعیت،سرحدات او اقلیمي شرایط،هغه مهم عوامل دي، چې د هېوادونو د قدرت او اقتدار په هکله باید ارزیابي شي.

یو پراخ هېواد سربېره پر دې چې، یو زیات شمېر د ټولنې خلک په کښې میشت کیدلای شي، د جګړې په جریان کې د نظامي پرسونل د شاتګ فرصت برابرولای شئ او نوموړي جغرافیایي موقعیت ته د نه اشغال کیدونکي هېواد صفت ورکول کېږي.

روسیه په ۱۸۱۲م کال کې د ناپیلیون بناپارت د یرغل په وړاندې او هم روسیه په ۱۹۴۱ –۱۹۴۲م کال کې د نازي المان د یرغل په وړاندې وتوانېدله چې؛ خپل دښمنان له پښو وغورځوئ او ماتې ورکړي،ځکه چې روسي قواوو وکولای شول چې د ځمکې او اراضي د پراخوالي څخه استفاده وکړئ،په سل ګونه کیلومتره شاتګ وکړئ،چې د دښمن قواوې یې د تدارکاتو او تعقیب لپاره د ډېرو ستونزو سره مخامخ کړل.

په پخوانیو وختونو کې د ترانسپورتي وسایلو د نه شتون له له امله د خاورې پراخوالي یو معضله جوړه کړې وه، د بېلګې په ډول د روسیې بحري قواو په ۱۹۰۵ م کال د جاپان د یرغل لپاره اړ شول چې نیمه نړۍ د بالتیک د بحر د لارې دا اوږده فاصله طئ کړي خو دا ستونزه اوس شتون نه لري.

د هېواد جغرافیایي شکل د بېلګې په ډول دایروي یا مربع شکله اراضي چې د مدافعې لپاره ډېره هوساینه راوستلای شي، چې د مرکز څخه و اطراف ته د اړیکو اسانتیا ډېره احساس کېږي، مثلاً فرانسه او هسپانیه د طبیعي موقعیت له نظره مناسب ځای لري چې پاریس او مادرید د ښه مرکزي موقعیت څخه برخمن دي په داسي حال کې چې چکسولواکیا بیا برعکس دا ځانګړنه نه لري.

د یوه هېواد طبیعي وضعیت هم زیات اهمیت لری، دیوې خاوري غرنی حالت که څه هم ممکن د اړیکو له نظره خنډ وزېږوي خو د دفاع له اړخه بیا د یوه هېواد لپاره ګټور ثابت شوي

دی د بېلګې په ډول د روسیې خلک د ژمي دوې میاشتو ته د شوروي د دفاع زمریان وایي چې په دوهم نړیوال جنګ کې یې د نازي المان په سلګونو زره سرتېري د یخنۍ ،واورې په اثر تلف شول او همدا رنګه د ناپیلیون بناپارت د یرغل په وړاندې مسکو د خپل طبیعي ساړه اقلیم او ژمي په کومک د دښمن لښکرو ته سخته ماتې ورکړه دا په داسې حال کې وه چې د ناپیلیون لښکرو د زیاتې یخنۍ او واورې په شتون کې مقاومت نه درلود.

ځیني وخت د یوه هېواد د ځمکې ټیټوالی او لوړوالی د دفاعي حالت لپاره اسانتیا او یا هم خنډ کیدلای شي.

د سویس د هېواد د خاورې لوړوالی او ټیټ والي په منځنۍ پېړیو کې د ابسبورګ د خلکو په وړاندې خپل استقلال وساتي، ځکه چې د آلپ د غرونو شتون په نوموړو جګړو کې المانیان هیڅ وخت و نه توانېدل چې د سویس هېواد اشغال کړي.

همدارنګه د یوګوسلاویا غرنی موقعیت په دوهم نړیوال جنګ کې د دې سبب شو چې جرمني قواوې په پوره ډول یاد هېواد اشغال کړي.

طبیعي پولې هم باید په ملي اقتدار کې تر ارزونې لاندې ونیول شئ، د یوه هېواد لپاره ترټولوغوره سرحدات او پولې هغه دې چې د دفاع لپاره ګټورې وي،چې په دې برخه کې دغرونو،دریابونو یا سیندونو پولې د یادولو وړ دي.

د انګلیستان د هېواد جزیره شکله موقعیت او دا چې انګلیستان د بحرونو په وسیله محاط شوئ په ۹۰۰ م کال کې یاد هېواد د هیڅ ملک تر یرغل لاندې نه دی راغلئ(په استثنایي ډول په دوهم نړېوال جنګ کې چې د نازي،المان تر هوایي یرغل لاندې راغلئ).

همدارنګه جاپان د اوبو د سرحداتو د درلودلو له امله د غوره موقعیت څخه برخمن دی، که څه هم په ۱۹۴۵ م کال کې د امریکا له خوا د یاد هېواد دوه ښارونه چې هیروشیما او ناګاساکي دي، د فضا له خوا بمبار شول، د داسې موقعیت کمزورۍ نقطه ثابته کړه، چې د هستوي سلاح په وړاندې یې د خپل هېواد دفاع ونه کړه.

راتزل یو بل عالم دی، چې د جغرافیایي عواملو اغیز یې په ژوند او د دولتونو په پراخوالي کې مطالعه کړی دی،یاد عالم د دولتو پرمختګ د بدن د اورګانیزم سره پرتله کړ.[٦٠]
یوه سویډني عالم کیلن په انسانانو کې د چاپیریال فزیکي،رواني،ټولنیز او سیاسي اغېز مطالعه کړ.
د نوموړی عالم کتاب(قدرت های بزرگ)وروسته د ټولنې په منځ کې د انجیل حثیت غوره کړ.
کیلن په جرمني کې د Pan germanism په چوکاټ کې د المانیانو د ژوند او پرمختیا لپاره په ځینو سیمو کې لکه شرقي او مرکزي امریکا،کوچنۍ اسیا او د سکندیناوي هېوادونو باندې ټینګار کوي.
که څه هم نوموړو ځمکه پېژندونکو یو ډول جغرافیایي Determinism(جبري موقعیتونه)باندی معتقد و.خو د هغو قاره وېشتونکو توغندیو اختراع چې د یوه براعظم څخه بل براعظم تر هدف لاندې نیولای شئ،د دې توغندیو اختراع ، د سپوږمکۍ او اټومي سلاح جوړښت، د سیاسي جغرافیا په هکله پخوانۍ معادلې یې په اساسي ډول تغیر کړې.
د جغرافیایي سرحداتو مساحت ، شکل او پخواني مفهوم ته یې بدلون ورکړ.

اقلیمی وضعیت هم د ملي اقتدار په ډیروالي او لږوالي کې مهم رول لری.

ځکه چې سړې سیمې د انرژۍ تولید کوونکې دي،خو د تکنالوژۍ پرمختګ اوس د اقلیمي وضعیت بدلون تر خپل واک لاندې راوستی دی.[٦١]

وړاندوینه کېږي چې د اوزون د طبقې د نازکوالي له امله شاید د ځمکې د حرارت درجه ډېره لوړه شي چې د بېلابېلو زیان رسوونکو کازونو د تولید په وجه د ځمکې د اتوم سفیر د اوزون سطحه زیانمنه کړې ده چې د اقلیم د تودخې عامل یې برابر کړی دی چې د ګلخانه ګازاتو په نامه یادیږي په ملل متحد کې د یادو ګازاتو د نه تولید یو کنوانسیون هم شتون لري چې د صنعتي هېوادونو له خوا لاسلیک شوی دی،یوازې امریکا نوموړی کنوانسیون نه دی لاسلیک کړی.

---

[٦٠] روشن دل،جلیل،امنیت ملي ونظام بین المللی،تهران،۱۳۷۴،ص،۳۸.
[٦١] روشن دل،جلیل،همهغه اثر،کال۱۳۷۴،ص،۳۳

جغرافيايي عامل د يوه هېواد په بهرني سياست کې په يوه شکل خپل اغيز لري،که څه هم په دې وروستيو کې د ټکنالوژۍ د پرمختګ په وجه، د بهرني سياست په جوړولو کې د جغرافيايي عامل اغېز د نظر څخه نه شو غورځولی.[٦٢]

**شپږم:نظامي عوامل:**

لکه څرنګه چې نظامي قوت په ملي اقتدار کې يو اساسي عنصر دی، د نظامي قدرت په چوکاټ کې جنګي تجهېزات او اسلحه،د نظامي پرسونل مهارت،رهبري،نظامي بوديجه،نظامي اډې، نظامي فن او تکتيک،لوژيستيکي امکانات او د قوتونو تحرکات شامل دي.

دياد شويو عناصرو کره ارزونه چې د نظامي قدرت عناصر دي، په بهرني تګلارې جوړولو کې بايد په نظر کې ونيول شئ ،چې د ملي ګټو او موخو د لاسته راوړلو لپاره اساسي ونډه لري.

نظامي عامل بايد هيڅکله د يو مستقل متغير په ډول قبول نه شئ، ځکه چې نظامي قدرت د ځينو عواملو تراغيز لاندې دی،لکه ايډيالوژيک،اقتصادي،رواني،جيوپوليتيک او نورلاملونه.

د بېلګې په ډول امريکا چې هر ډول نظامي امکانات لري ،د ويتنام په وړاندې د خپل بهرني سياست موخو ته ونه رسېدل او ماته يې ومنله دا په دې معنی ده چې ديوه هېواد ملي اقتدار يوازې په نظامي وړتيا پورې اړه نه لري ځينې نور اساسي فکټورونه شتون لري چې يو هېواد ته ملي اقتدار وربخښي چې پورته ياد شول.

د يوه هېواد په قدرت کې نظامي سالمه رهبري ستره ونډه لري، لکه د دوهم نړېوال جنګ تجربې دا څرګنده کړه،هغه هېوادونه چې د مناسب مديريت او نظامي سالمی رهبرۍ څخه برخمن و، په نظامي ډګر کې يې ډېرې لاسته راوړنې درلودلې.

**اووم:اقتصادي عوامل:**

د يوه دولت ګډون په يوه اوږدمهاله جګړه کې د نوموړی دولت په اقتصادي توان پورې تړلې ده په دې اړه بايد ځينې متغيرونه په نظر کې ونيول شي لکه؛د يوه هېواد کلني ملي ناخالص

---

[٦٢] کاظمي،علی اصغر،پايان سياست وواپسين اسطوره،چاپ اول،انتشارات قومس،تهران،١٣٨١،ص،٢٦٣-٢٦٤.

تولیدات،د سړی سر کلني عواید،د صنعتي او کرنیزو تولیداتو کمیت او کیفیت،طبیعي زېرمو ته لاسرسي، په اقتصادي او سوداگریزو اړیکو کې د یوه دولت بل دولت ته اړتیا.

د شتمنو او فقیرو دولتونو ترمنځ د واټن زیاتوالی ددې لامل وگرځېد چې نادار هېوادونه د بډایو ملکونو د اقتصادي،فرهنگي او سیاسي نظامونو تر اغیز لاندې راتلل.

هغه مسائل دي چې دملي اقتدار په ارزونه کې باید په نظر کې ونیول شئ.

هردولت چې د زېرمو او امکاناتوځخه برخمن وي، د سولې او جنگ په دوران کې ډېر لږ د نورو هېوادونو تر اغېز لاندې راځي،لکه د انگلیستان دولت چې په دوهم نړېوال جنگ کې یې د غذایي موادو واردولو ته عاجله اړتیا درلوده.

یاد حالت ته د جرمني دولت متوجو شو او د غذایي موادو صادرول یې انگلیستان ته تر خپل نظر لاندې راوستل، تر څو دانگلیستان دولت تسلمېدلو ته اړ کړي.

د شوروي اتحاد د ویشل کېدو یو اساسی دلیل اقتصادي او تکنالوژیکې ستونزې وې،که څه هم نظامي قدرت یې ډېر درلود،خو د نظامي او اقتصادي پرمختگ ترمنځ یې هېڅ تناسب وجود نه درلود.[٦٣]

د ملي قدرت د جوړښت دعناصرو ترمنځ تناسب او تعادل باید د ملي اقتدار په ارزونه کې په نظر کې ونیول شئ، ځکه په یوه برخه کې زیاته پانگونه ممکنه ده د نورو برخو دکمزورتیا سبب شي.

د بېلگې په ډول یو غیرقابل قبول توپیر د قدرت د جوړښت دعناصرو ترمنځ اړیکه وجود لري لکه د رهبري،ایډیالوژي،اقتصادي،نظامي او جیو پولیتیک عوامل چې د بین المللي شرایطو او غوښتنو لاندې په بېلابیلو درجو یاد عوامل د اهمیت وړ دي.

په هرحال د بهرني سیاست کړنلارې،موقف نیونه،د بېلابېلو ستراتیژیو تطبیق او طرحه،د ملي گټو او موخوټاکل،د یوه دولت د ملي اقتدار تابع دي.[٦٤]

---

[٦٣] بکر،سیمور،اشرافیت وامتیاز مربوط به آن در اواخر امبراطوری روسیه در مرور تاریخی امریکا،۱۹۸۷،ص،۱۰۰٦-۱۰۰۷.

[٦٤] سیف زاده،حسین،اصول روابط بین المللی چاپ سوم،نشر میزان تهران،۱۳۹۵.

# څلورم څپرکی

**لومړی مبحث سوړ جنګ:**

سوړ جنګ یوه اصطلاح ده، چې د سیالۍ ،کړکیچ اوسیاسي جیو پولیټیک ناخوالو دوره ده،چې د شرق او غرب بلاکونه د هېوادونو ترمنځ ، وروسته له دوهم نړیوال جنګ څخه رامنځ ته شوي ده.

تاریخ لیکوونکي او پلټوونکي د ساړه جنګ د پیل او پای د تاریخ په اړه تر اوسه په بشپړ ډول توافق نه لري، خو د ۱۹۴۷ او ۱۹۹۱ میلادي کلونو ترمنځ ګډ نظر لري.

په ۱۹۴۷ میلادي کال کې د امریکا د وخت جمهور رېیس د ټرومن دکتورین طرحه شول ،چې د امریکا په بهرني سیاست کې متعهد شوی و،یعنې هغه هېوادونه چې د شوروي اتحاد د تسلط او ګواښ لاندې راځي ، امریکا به ورسره کومک کوي،چې دا اصل د ټرومن د دکتورینو په نامه مشهور دی.

په ۱۹۹۱ میلادي کال هغه وخت چې د شوروي اتحاد د کمونېست ګوند نظریه او نظام عملا له منځه لاړل یاده نېټه د ساړه جنګ د پای نېټه ده.

د ۱۹۴۷ـ۱۹۹۱ م کالونو په دوره کې دواړو ابر ځواکونو په هره ساحه کې سیالي او دښمني درلوده.

د بېلګې په ډول نظامي اتحاد ، ایډیالوژیک،ارواح پوهنه،استخبارات، جاسوسي ،ورزش ، نظامي تجهیزات او د صنعت په ساحاتو کې.

د یادو شویو سیالیو پیلامه عبارت وه له هوایي سیالۍ ، د دفاعي لګښتونو لوړه بیه(د ستورو جنګ ) د اټومي هستوي سلاح سیالۍ او یو شمېر غیر مستقیمې جګړې.

که څه هم په دوهم نړیوال جنک کې امریکا او شوروي اتحاد د نازي المان په وړاندې متحد وو،خو د دوهم نړیوال جنګ له پای ته رسېدو مخکې هم دواړو ابرځواکونو په دې خبره اختلاف درلود چې وروسته له جنګه به نړۍ په کوم ډول جوړوي؟

نو ځکه د جنګ وروسته امریکا د کمونیزم د ګواښ په منظور د ساړه جنګ لمنه غربي اروپا،منځني ختیځ او جنوب شرقي اسیا ته وغځوله.

نړۍ په دې عصر کې د ځینو مهمو بحرانونو شاهده وه لکه د برلین دیوال (۱۹۶۱ـ۱۹۸۹)، د شمالي او جنوبي کوریا جنگ (۱۹۵۰ـ۱۹۵۳)، د ویتنام جنگ (۱۰۵۹ـ۱۹۷۵)، د کیوبا د توغندیو بحران(۱۹۶۲) او د افغانستان د شوروي جنگ (۱۹۷۹ـ۱۹۸۸) چې په هره شېبه کې د دواړو ابرځواکونو ترمنځ د نړیوال جنگ قوي احتمال شتون درلود، خو تر پایه دواړو قدرتونو مستقیم جنگ ته زړه ښه نه کړ.

اساسي لامل دا وو، دواړه اړخه پوهېدل چې د ښمن یې اټومي اسلحه لري او د استعمال قدرت یې هم ورسره دی نو د همدې کبله یې د عملي جنگ څخه ډډه کوله.

د دوهم نړیوال جنگ څخه وروسته په(۱۹۴۹) د امریکا او شوروي اتحاد ترمنځ کړکیچ له سره زیات شو چې یاد جنگ د ۱۹۴۵ـ۱۹۴۷ میلادي کلونو څخه لا زیات وو.

ډېر پلټوونکي او تاریخ لیکوونکي عقیده لري ، چې د ساړه جنگ پیل د ۱۹۴۷م کال وروسته وه او د ساړه جنگ د پای په هکله ځینې په دې نظر دي چې؛ د برلین د دیوال په ړنګېدلو سره سوړ جنگ پای ته ورسید .

خو یو شمېر نور مورخین بیا عقیده لري چې؛ د ډسمبر په ۲۵ /۱۹۹۱ م کال د شوروي اتحاد د تجزیې سره سوړ جنگ پای ته ورسید.

د روسیې د ایډیالوژیک جنگ پیل په ۱۹۱۷ م کال د کمونیستي سور انقلاب په بریالیتوب سره پیل شو چې د لینن په مشرۍ یاد انقلاب بریالی شو.

همدا رنګه شوروي اتحاد د ګرمو اوبو خوب د تزار روس له وخته د افغانستان له مسیر څخه لیده او ګرمو اوبو ته رسېدل یې لوی ستراتیژیک هدف و.[٦٥]

ارتودکس عیسویانو د حقوقو څخه دفاع او د شرقي او مرکزي اروپا د ملتونو څخه سخته دفاع د کمونیست شوروي اتحاد اساسي ستراتیژیک اهداف وو ، چې ترټولو مهم هدف یې د کمونیستي ایډیالوژیکي او اقتصادي سیستم وده او د انقلاب صادرول وو.

[٦٥] سیمون ادامز،مرجان نگهی،جمشید نوروزی،اطلس تاریخ جهان برای دانش اموزان،انتشارات رفق،۱۳۸۸،ص،۱۶۹.

د مارکسیزم لیننسم د ایډیالوژۍ پر بنسټ ولاړ وو او د پرولتاریا انټرنېشنلېزم له فلسفې څخه یې دفاع کوله. ـ[٦٦]

په ۱۹۴۵ میلادي کال په کاناډا کې د شوروي اتحاد مقیم سفیر ایگور گوزنکو وو چې سیاسي پناه یې واخېسته، د ساړه جنگ دپیل یو اساسی لامل دا وو چې د کاناډا سفیر ۱۰۵ داسې مهم اسناد افشا کړل چې د شوروي اتحاد مداخله یې په کاناډا ،برتانیه او امریکا کې ثبوتوله، چې د شوروي اتحاد او غرب دښمني یې علني کړه.

ځینې اقتصادي شنوونکي داسې نظر لري چې ؛د امریکا د اقتصادي بنسټ پالنې سیاست د ساړه جنگ لامل وگرځېد، د اټومي انرژۍ د کنټرول موضوع وه چې د امریکا له خوا په ۱۹۴۶ میلادي کال کې پیشنهاد شوه.

خو یاده موضوع د شوروي له اړخه رد شوه، ځکه شوروي فکر وکړ چې دا پېښه د شوروي د حاکمیت سره تړلې ده.

په ۱۹۴۷ میلادي کال کې نړۍ دوه قطبي شوه ،چې د شوروي اتحاد او امریکا دولتي مشران بدل شول، چې د ټرومن پرځای ایزن اور او د سټالین پر ځای خروسچوف ځای پر ځای شول.

**څلورم: په دې دوره کې لاندې مهمې پېښې د یادولو وړ دي:**

۱ـ د ټرومن دکتورین ( چې د امریکا له خوا به د هغه هېوادونو ملاتړی کېږي چې د شوروي اتحاد تر گواښ لاندې دي او یا د کمونیزم په وړاندې جگړه کوي.)

۲ـ د مارشال پلان ( جورج مارشال د امریکا د وخت د بهرنیو چارو وزیر و، چې د غربي اروپا د هېوادونو د بیا جوړولو لپاره یې دولس میلیارده ډالر مرسته وکړه او د غربي اروپا ټول هېوادونه یې د څو کالو په ترځ کې بیا ورغول.

یوازې د شرقي اروپا هېوادونه چې د شوروي اتحاد سره یې ایډیالوژیک وحدت درلود، د مارشال د پلان د بیا رغونې څخه یې سرغړونه وکړه چې دا عمل یې هم د شوروي اتحاد په اشاره وو.)

[٦٦] نقیب زاده،احمد،تاریخ دیپلوماسی وروابط بین الملل نشر قومس،تهران،۱۳۸۸،ص ص ،۲۸۳،۲۷۵،۲۶۴،۲۶۱،۲۸ او ۲۹۰.

۳ـ د برلین محاصره چې په پایله کې یې د المان دهېواد د وېشلو سبب شو او د برلین  دیوال د جوړولو پریکړه یې وکړه.

دا ځکه شرقي المان چې مرکز یې برلین وو، وروسته له دې چې د المان هېواد په شرق او غرب ووېشل شو د شرقي المان له اړخه ډېر الماني اتباع د غربي المان لور ته تښتېدل.

نو ځکه شرقي المان دبرلین دیوال چې ۴۵ کیلو متره اوږدوالی درلود او ۱۲ متره یې لوړوالی درلود د شرقي المان د اتباعو د تېښتې مخه بنده کړه.

۴: د شوروي اتحاد د لومړني اټومي بم ازمایښت.

۵ـ د ناټو تشکیل او په ځواب کې یې د وارسا د تړون جوړښت.

٦ـ دغربي او شرقي المان منځته راتگ.

۷ـ دستالین خط د المان د مجدد یووالي لپاره.

۸ـ په مرکزي اروپا کې د ابر ځواکونو نه لاسونه.

۹ـ د چین کورنۍ جگړه.

۱۰ـ د کوریا جنگ.

**د مارشال طرحه:**

د دوهم نړیوال جنگ وروسته د اړپايي هېوادونو د بیا رغونې سره د امریکا مالي کومک وو چې د امریکا اساسي موخه دا وه چې شوروي اتحاد د ورته اقدام مخنیوی وکړي ترڅو دشوروي نفوس په غربي اروپا کې ډېر نه شي.

د شرقي اروپا هېوادونو د شوروي اتحاد په اشاره د امریکا دکومکونو څخه انکار وکړ امریکا په دولس میلیارده ډالره تقریبا ټوله غربي اروپا بیاځل ودانه کړه.

په ۱۹۴۹ میلادي کال د اپریل په ۴ مه د ناټو تړون د امریکا ، د بروکسل د پیمان غړي او نور پانګوال هېودونه ټولو د ناټو تړون لاسلیک کړ چې د شوروي اتحاد له خوا یې په ځواب کې د وارسا تړون تاسیس شو.

د کوریا جګړه د شوروي اتحاد او چین په شین څراغ سره د جنوري په ۲۵ مه ۱۹۵۰م کال کې پیل شوه چې د کیم ایل سنګ ځواکونه د شمالی کوریا د عرض البلد د اته دېرش درجو څخه تېرشو.

یاده سرحدي نقطه یې نقض کړه دوه ورځې وروسته د ملل متحد په پریکړه د جنوبي کوریا د کومک په پلمه د ملل متحد په چوکاټ کې د امریکا او جنوبي کوریا نظامي قوتونو په شمالي کوریا باندې یرغل وکړ چې د چین تر سرحد پورې یې د شمالي کوریا اردو شاتګ ته اړ کړه.

چین دا تجاوز خپلو سرحداتو او حریم ته ګواښ وګاڼه او خپله تر یو میلیون ډېره اردو یې په ځانګړي سپین یونیفورم کې چې د سطر الاخفا په منظور یې اغوستې وه او په چاپیریال کې واوره اورېدلې وه، د ملل متحد قواوې یې د استوا تر مدار اته دېرش درجې واړول ترڅو چې په ۱۹۵۳ م د مخاصمت د پرېښودلو او اوربند د عملي کولو پریکړه وشوه.

د دواړو کوریاوو د سرحد په اوږدو کې د درېیم هېواد سرتیري ځای پر ځای کړل شول په یاد جنګ کې درې میلیونه انسانان مړه ،ژوبل،معیوب او لا درکه شول.

د امریکې ۴۶۰ زره نظامي پرسونل تلف شول او پاتې یې د چین او کوریا نظامي پرسونل وو.

په ۱۹۵۸ میلادي کال کې خروسچوف د شوروي د وخت رهبر د غربي او شرقي جرمني طرحه وړاندې کړه چې المان به یو بې طرفه ازاد هېواد وي خو د امریکا له خوا یاده طرحه رد شوه.

په ۱۹٦۱ م کال د خروسچوف او جان ف کېنېډي ناسته هم په همدې اړه بې پایلې پای ته ورسېده، ترڅو چې شوروي اتحاد او شرقي جرمني د برلین په دیوال شروع وکړه.

په ۱۹٦۲ میلادي کال د کیوبا د توغندیو بحران واقع شو، چې شوروي اتحاد د خلیج د خوګ د عملیاتو د ناکامۍ وروسته خپل منځني بورډ اټومي توغندي یا د منځني واټن ویشتوونکي توغندي چې په کیوبا کې یې ځای پرځای کړل د امریکې د حساسیت سبب شو.

امریکا د کیوبا په محاصرې سره په جدې ډول د یادو توغندیو د بېرته اېستلو غوښتنه وکړه چې د نړیوال جنګ خطر یې ډېر کړی وو، تر څو چې خروسچوف انعطاف وښود او له کېوبا څخه یې د منځنې واټن ویشتونکې توغندې بېرته لرې کړل.

دا عمل د شوروي او امریکا ترمنځ د ټلیفون د ګرم لین یا هاټ لین د ټېنګېدلو سبب شوه، چې مسقیما یې ټلیفوني اړیکه په ۱۹۶۳ م کال کې تامین شوه.

د یادې ټلیفونې اړیکې په ټینګولو او دکیوبا څخه د توغندیو د لرې کولو په اثر، د شوروي اتحاد او امریکا اړیکې تر یو حده عادي حالت ته راوګرځېدې، په همدې وخت کې د امریکا جمهور رییس جان اف کېنېډي په امریکا کې ترور شو او په شوروي اتحاد کې بریژنیف په ۱۹۶۴ م کال کې جمهور رییس وټاکل شو.

د ناپیلتوب غورځنګ په ۱۹۶۱ میلادي کال د جواهر لعل نهرو ، مارشال ټیټو،جمال عبدالناصر،سوکارنو او محمد داوود د افغانستا ن له لوري و .

یاد غورځنګ یې په اندونیزیا کې تاسیس کړ چې د هندوستان ، مصر، یوګوسلاویا،اندنوزیا او افغانستان له خوا دا بتکار په کار واچول شو.

د نوموړي غورځنګ غړي هېوادونه هغه ملکونه دي چې د مستعمراتو د حالت څخه یې ازادي اخېستې وه او یو مستقل دریځ یې غوره کړ.

همدا رنګه اروپایي اتحادیه هم جوړه شوه خو شوروي اتحاد د اروپایې اتحادیې ګډ بازار د پانګوالي هېوادونو له خوا یو کوښښ یاد کړ چې د سوسیالیستي بلاک د ورکېدلو په منظور یې په لار اچولی وو.

امریکا د اروپا د ګډ بازار سره د ګمرکي تعرفو په هکله یو هوکړه لیک لاسلیک کړ او په دې ډول یې د غربي اروپا په مارکېټ کې خپله اقتصادی لوړتیا ومونډله.

په ۱۹۷۱ میلادي کال کې چین د ملل متحد د امنیت شورا دائمي چوکۍ اشغال کړه.

چین خپلې اړیکې د کاناډا،امریکا،یوګوسلاویا او ایټالیه سره سمبال کړې،په ۱۹۷۴ میلادي کال کې چین په ملل متحد کې رسما اعلان وکړ چې په دوه قطبه ورته د نړۍ وېش د منلو وړ نه دی.

امریکا ته د چین نږدیوالی د وخت د جمهور ریېس ریچارډ نیکسن په دوره کې د شوروي اتحاد لپاره یوه بله ضربه وه، ځکه د چین او شوروي اتحاد اړیکې په څو دلیله خړې پړې او کړکیچنې شوې وې چې اساسی عوامل یې په لاندې ډول دي.

۱ـ د مارکسیزم ا ولیننسم د ایډیالوژۍ او فلسفې په هکله ماهو تسه دونگ خپل تفسیر درلود ،چې د شوروي اتحاد د کمونېست گوند د مشرانو د تفسیر سره یې اختلاف درلود.

په پایله کې ماهو د جوزف ستالین سره چې د شوروي اتحاد د وخت جمهور ریېس وو، اختلاف پیدا شو او د ستالین رهبري ورته د دریمې نړۍ د هېوادونو په هکله د منلو وړ نه وه.

۲ـ شوروي اتحاد د چین سره د اټوم بم په جوړولو کې په خپل تعهد وفا ونه کړه، چې د چین د خفگان سبب شوه.

۳ـ د چین او جاپان په سرحدي شخړه کې شوروي اتحاد چین ته هیڅ نظامي کومک ور نه کړ او په یاده جگړه کې یې یو بې طرفه دریځ خپل کړ چې د چین د ناهیلۍ سبب شوه.

جاپان هم د ۱۹٦۰ م لسیزې تر پایه د خپلې اقتصادي پالیسۍ په مټ وتوانېده چې په شرقي هېوادونو کې د خپلو تولیداتو لپاره مارکېټ پیدا کړي او د امریکا څخه ازادانه خپله سوداگري مخ ته بوځي.

په فضایي سیالۍ کې شوروي اتحاد وکولای شول چې؛ د اپریل په دولسمه د ۱۹٦۱ م کال کې یوری گاگارین د ځمکې مدار ته د مصنوعي سپوږمکۍ په مټ ولېږي.

خو امریکا اته کاله وروسته په کال ۱۹٦۹ م د جنوري په ۱۷ نېل ارم سټرانگ د دوو نورو فضایي پیلوټانو سره سپوږمۍ ته په کامیاب ډول ولېږه .

**په ۱۹۷۹ میلادي کال شوروي اتحاد په افغانستان پوځي یرغل وکړ او دا هېواد یې اشغال کړ چې د امریکا او شوروي اتحاد اړیکې یې کړکیچنې کړې همدغه یرغل وو، چې د دوهم ساړه جنگ اصطلاح ورته کارول کېږي.**

د مسکو د ۱۹۸۰ المپیک سیالیو ته زیاتره غربي هېوادونو خپل ورزشکاران ونه لېږل امریکا د احتجاج په ډول خپل د غنمو مرسته په شوروي اتحاد بنده کړه.

د مارچ ۲۳ /۱۹۸۳ م کال ريګن د امريکا ساينس پوهانو ته په خطاب کې وويل چې دشوروي اتحاد د بالستيک توغنديو په وړاندې چې امريکا يې په نښه کړې ده بايد يوه داسې اساسي چاره ولټول شي څو امريکا د ياد يرغل څخه په امن پاتې شي،د ريګن دا وړانديز چې د ستراتيژيکې دفاع د نوښت په نامه مشهوره شوه يا په بل نوم (جنګ ستارګان)يو مشهوره اصطلاح وه.

ريګن وړانديز کړی وو چې د شوروي اتحاد هغه توغندي چې امريکا يې په نښه کړې ده دلايزر دشعاع په مټ له منځه يوسي.

د يادې طرحې د لومړنيو تحقيقاتو د عملي کولو په منظور ۲٦ ميليونه ډالر منظور شول خو د اروپايي متحدينو او ډيموکراتانو له خوا د دې طرحې مخالفت وشو.

شوروي اتحاد د خبرو اترو وړانديز وکړ ځکه دا خطرناکه طرحه د شوروي اتحاد لپاره پلان شوې وه.

په نړيوال ډګر کې د چين او جاپان راڅرګندېدل،دغربي اروپا اتحاد،د ناپيلتوب غورځنګ جوړېدل،د ايران او عراق جنګ،د نړۍ انحصار يې د دوو ابر ځواکونو په مټ له منځه يووړ.

په نيکاراګوا کې سوسياليست خوځښت ځان مستقل اعلان کړ، دليبيا هېواد مستقل عمل غوره کړ، صدام حسين او حفيظ الاسد د بين المللي نظام د تضاد څخه د ځان دسياست په ګټه استفاده کوله ، د اسرائيلو سياست د امريکا په هکله چې د عربي هېوادونو سره يې خواخوږي ښودله د اسرائيلو خلاف وه.

ريګن او ګورباچوف په دې کلونو کې څلور ځله ملاقات وکړ چې په لاندې ډول دي؛

۱ـ په ۱۹۸۵ م کال کې د کيمياوي سلاح د جوړېدو او کارولو د ممانعت هوکړه ليک.

۲ـ په ۱۹۸٦ ميلادي کال کې د اروپا څخه د اټومي سرګلولې درلودونکو توغنديو لېږدول چې د امريکا د ستورو دجنګ د طرحې د درولو او منعه کولو په وړاندې ترسره شو.

۳ـ د ۱۹۸۷ ميلادي کال چې په واشنګټن کې د منځني واټن ويشتوونکو توغنديو د له منځه وړلو قرارداد لاسليک شو.

۴ـ په ۱۹۸۹ میلادي کال کې په مسکو کې د منځني واټن وېشتوونکو توغندیو حذف نهایي شو.

## د سړې جګړې پای

د سړې جګړې پای په ۱۹۸۵ م کال کې د میخایل ګورباچوف قدرت ته په رسېدلوسره پیل شو په دې دوره کې مهمې پېښې دا دي: [٦٧]

۱ـ په ۱۹۸٦ م کال کې د چرنوبېل پېښه

۲ـ په ۱۹۸۹ م کال کې د برلین د دیوال ړنګېدل.

۳ـ په ۱۹۹۱م کال کې د شوروي اتحاد د کودتاه په ضد عملیات چې د کمونېستانو له خوا پلان شوې وه

۴ـ په ۱۹۹۱ م کال کې دشوروي اتحاد د کمونېست نظام پاشل کېدل،د میخایل ګورباچوف د کلاسنویست او پروسترویکا د سیاست پیاده کول ، د بیارغونې په هکله، په شوروي اتحاد کې د افغانستان د جنګ په هکله نارضایتي او دچرنو بېل د اټومي پېښې ناګواره اقتصادي اثار چې په ۱۹۸٦ م کال کې څرګند شول.ورسته له دې چې د شوروي اتحاد درې مهم رهبران په ۱۹ ورځو کې مړه شول،د شوروي ، پولیټ بېرو او کمونېست ګوند د تصمیم نېونې ستر مقام ، مېخایل ګورباچوف د کمونېست ګوند د رېیس په صفت وټاکه .

چې د ځوانې طبقې په استخدام یې پیل وکړ ، د غرب سره یې اړیکې جوړې کړې په ځانګړي ډول په سیاسي او سوداګریز ډګر کې ، د شرق او غرب کړکیچ په ډېر ګړندیتوب سره کمښت پیدا کړ.

ګورباچوف د غرب سره دوه اړخه همکاري پیل کړه چې یو لورې ته پروسترویکا یا اقتصادي بیا رغونه وه او له بله اړخه د انتقاد کولو ازادي یا ګلاسنویست، په داخل د شوروي کې لاره خلاصه کړه چې دبیان دازادۍ حق یې ټولو وګړو ته ورکړ.

[٦٧] نقیب زاده،احمد،تاریخ ډیپلوماسی وروابط بین المللی نشر قومس،تهران،۱۳۸۸،ص،۲۸۵ـ۲۷۰.

د اروپا سره یې د ناټو د شتون فلسفه له منځه یوړه او د امریکا مداخله یې په اروپا کې کمه کړه، د اروپایي هېوادونو سره یې د دوستۍ اوهمکارۍ طرحه جوړه کړه چې د اروپا د ګډ کور د طرحې په نوم یاد شوه.

ګورباچوف دواړه جرمني هېوادونه سره واحد کړل ،ګورباچوف د المان وحدت په دې دلیل وکړ چې جرمني به د وحدت د تامین وروسته د ناټو څخه بېل شي چې د اروپایي اتحادیې په وېشلو سره بیا شوروي د هر اروپایي ملک سره اړیکه جوړه کړي او هم به ناټو ووېشل شي.

امریکا،د ګورباچوف د دې پلان او پالیسۍ سره ځکه خوشحاله وو چې امریکا غوښتل د اروپا ګډ بازار او د ناټو په منځ کې اختلاف پیدا شي چې دواړو نهادونه د امریکا سره په سیالۍ کې وو.

د برلین دیوال دنوامبر په نهمه ۱۹۸۹ م کال کې ړنګ شو، چې وروسته بیا د شوروي او المان د خبرو اترو په پایله کې چې امریکا،فرانسې او برتانیې هم شتون درلود د ۴+۲ د مذاکراتو په نامه یاد شو.

شرقي او غربي المان سره یوځای شول خو ګورباچوف د شرقي اروپا کمونېست هېوادونه چې دوارسا پکټ او تړون یې جوړ کړی وو له کنټروله ووتل او یو په بل پسې یې ازادي واخېسته او د غرب ډیموکراسي یې غوره کړه.

پولنډ، مجارستان، بلغاریا ، چکوسلواکیا،رومانیا،بلاروس،لیتونی،لیتوانی،اوکراین ،استوني او هم همدا رنګه دقفقاز هېوادونه (ګرجستان،ارمنستان،ازربایجان ) او د منځنۍ اسیا هېوادونو یو په بل پسې استقلال اعلان کړ.

شوروی اتحاد هم دکمونیزم د ایډیالوژۍ او نظام سره مخښه وکړه او لیبرال ډیموکراسۍ رژیم یې غوره کړ.

مورخین په دې اند دي چې د شوروي اتحاد د ړنګېدلو اساسي لامل د نظامي بودجې او لګښت نه شتون وو چې په ۱۹۸۰ م کال کې د ناټو په وړاندې د شوروي لپاره یاده بودجه اړینه وه په دې

هکله گورباچوف داسې وویل چې( فکر کوم چې موږ سره جگړه بایلوده ، موږ هر یو لور لس تریلونه ډالر مصرف کړه)[۶۸]

## دوهم مبحث د دولتونو د بهرني سیاست ستراتیژي:

دولتونه د کورنیو اړتیاو،جغرافیایي او جیوپولېټک موقعیت،د نړیوال نظام د جوړښت او کړنو تر اغیز لاندې راتلل،دریځ نېونه او د خاصو ستراتیژیو طرحه کول، د ملي گټو او موخو د پوره کولو په منظور اختیاروي.

بهرنی سیاست او دریځ چې په یوه دولت پورې اړه لري،تل د بدلون او تحول په حالت کې ده،هغه څه چې مسلم دي دا دي چې یاد بدلونونه په ارام او تدریجي ډول،خو بیا کله په گړندي شکل صورت نیسي.

### د دولتونو مهمه ستراتیژي او موقف نېونه عبارت دي له؛

۱ـ د بې طرفۍ موقف.

۲ـ د گوښه کېدلو یا انزوا طلبۍ موقف.

۳ـ د اتحاد اوائتلاف موقف.

۴ـ د عدم تعهد موقف.

### اول ـ د بې طرفۍ ستراتیژي یا موقف نېونه:

د یو سنتي تعریف په اساس،یو بې طرفه دولت هغه دولت دی چې؛ د هغه سیاسي استقلال او ارضي تمامیت د یوه ټولیز توافق په اساس د سترو قدرتونو له خوا تضمین شوي وي،په دې شرط چې یاد دولت خپل نظامي ځواک د نورو دولتونو پر خلاف ونه کاروي،خو دا چې په دفاعي حالت کې قرار ولري.

[۶۸] نقیب زاده،احمد،تاریخ ډیپلوماسی وروابط بین المللی نشر قومس،تهران،۱۳۸۸،ص،ـ۲۷۵.

بې طرفه دولت ته لازمه نه ده چې یو نظامي اتحاد ته زړه ښه کړي او هم باید د نورو هېوادونو لپاره نظامي هډه په واک کې ور نه کړي.

د یوه دولت حقوق وضعیت د نورو دولتونو په وړاندې د جنګ په مقابل دی ، یو بې طرفه دولت باید خپله کړنه،د دوو متخاصمو هېوادونو په وړاندې یو واحده تګلاره ولري،که یو بې طرفه دولت په خپلو تعهداتو عمل ونه کړي،دواړه متخاصم هېوادونه حق لري چې د درېیم بې طرفه هېواد په وړاندې د خسارې غوښتنه وکړي[۶۹]

ملي قدرت د هغه وړتیاو مجموعه ده چې د یوه سیاسي جغرافیایي واحد په قلمرو کې شتون لري چې عبارت دي له،موقعیت ، پراخوالي،هوا او اوبه،طبیعي زېرمې،صنعتي وړتیا،انرژي،نفوس،کلنی عواید،د ترانسپورت او مواصلاتو لیکې او خطوط، د زده کړې سیستم،روغتیایي اسانتیاوې،مسلح ځواکونه،سیاسي نظام،فرهنګي او ټولنیز کیفیت،د ډیپلوماسۍ کیفیت او ملي روحیه شامل دي.[۷۰]

یو اسلامي سنت دی چې ارشاد یې کړی ،خپل ځان او اولادونه مو په غشي ویشتنه او د اس په سورلۍ باندې د دښمن سره د مقابلې لپاره چمتو کړئ.[۷۱]

**د بې طرفۍ وضعیت په درې ډوله ساحاتو باندې اطلاق کېږي:**

الف ـ هغه سیمه چې حکومتونه یې د نورو دولتونو له خوا په رسمیت پېژندل شوي وي لکه د سویس،اتریش او لاوس بې طرفي.

ب ـ هغه سیمه چې د انسانانو څخه خالي وي لکه یوه رود خانه.

ج ـ هغه سیمه چې حکومتونه یې د نړیوالۍ ټولنې له خوا په رسمیت نه وي پېژندل شوي لکه کشمیر.

---

[۶۹] سیاست خارجی امریکا در جنگ عراق و ایران،شماره پانزده وشانزده ، ۱۳۷۵،بازبینی شده در ۲۰۰۲م،

[۷۰] مسوولیت دولت ها در برابر تجاوز ونقض اصول حقوق بین الملل در تحلیل بر جنگ عراق وایران،چاپ اول ،تهران،اداره کل حقوف وزارت امور خارجه،۱۳٦۷.

[۷۱] استاد مطهری،مجموعه اثار استاد مطهری،ج نوزده،ص،۱۹و ۱۱ و ۵۲.

د نړیوالو اصولو له مخې د بې طرفۍ ستراتیژي د الف ډول سیمې چې پورته تشریح شوې د سیاسي او حقوقي له نظره مشروعیت ورکول کېږي.

**د بې طرفۍ ډولونه په لاندې ډول دي:**

۱ **حقوقي بې طرفي،** په دې ډول بې طرفۍ کې هېواد ته یو شمېر حقوق او وجیبې ور له غاړې کېږي چې د یوه قرارداد د انعقاد له مخې شکل نیسي او د سترو ځواکونو رول په کې نغښتی وي.

۲ـ **سنتي بې طرفي؛** په بین المللی عرف کې هغه سیاست دی چې؛ یو هېواد یې د نورو هېوادونو چې د جګړې په حالت کې قرار لري، خپل هېواد له جګړې څخه لرې ساتي او سترو قدرتونو یې د تاریخ په اوږدو کې استقلال او حاکمیت تضمین کړی دی.

دغه ډول بې طرفي معمولاً د کمزورو هېوادونو له خوا شکل نیسي چې نه شي کولای په جګړه کې فعاله ونډه واخلي.

۳ـ **لنډ مهاله بې طرفي؛** چې ډېری وخت د جنګ په دوران کې د جګړې د انتشار او پرمختګ څخه د مخنیوي په منظور دا سیاست غوره کېږي.

هر هېواد حق لري چې د بې طرفۍ دریځ غوره کړي او اړ دی چې دواړو دښمنو هېوادونو (د جګړې په حال کې هېوادونو) ته کومک ورنه کړي او د دواړو دښمنو هېوادونو سره ورته اړیکې ولري.

۴ـ **تلپاتې بې طرفي؛** هغه ستراتیژي ده چې؛ یو هېواد یې د خپل بهرني سیاست د چوکاټ په صفت د اوږد مهاله وخت لپاره غوره کوي.

یاد هېواد په دغه وخت کې باید هر ډول نظامي سازمانونو او اتحادیو ته د شاملېدو څخه ډډه وکړي او په خپل هېواد کې هیڅ بهرنۍ نظامي هډې ته اجازه ور نه کړي.

بهرنی هېواد باید د خاورې څخه د نظامي موخو په منظور ونه کاروي د بل هېواد په خلاف نظامي تحرکات ونه کړي او د نظامي قرار دادونو د انعقاد څخه ډډه وکړي.

د عدم تعهد غورځنګ چې بنسټ ایښودونکي یې عبارت وو له؛ د اندونیزیا جمهور رییس (سوکارنو)،د هندوستان د وخت صدراعظم (جواهر لعل نهرو)،د مصر د وخت جمهور

رېیس (جمال عبدالناصر)،د یوګوسلاویا جمهور رېیس (مارشال ټېټو)او د افغانستان د وخت صدرا عظم محمد داوود خان شامل وو.

پرته له افغانستانه پاتې څلور هېوادونه د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د استعمار د یوغ څخه تازه خلاص شوي هېوادونه وو او د بل اړخ څخه ټولو مشرانو د لسګونو کلونو مبارزې وروسته ازادي او استقلال ترلاسه کړی وو،نو ځکه یې د ناټو،وارسا،سیټو او سینټو د نظامي تړونونو د لاسلیک څخه ډډه کړې وه چې نوموړی نهضت تر اوسه پورې فعال او یو سلو شپږ پنځوس غړي هېوادونه لري.[۷۲]

**۵ـ مثبه بې طرفي:** هغه سیاست او ستراتیژي ده چې؛ یو هېواد یې د جنګ او نظامي اتحادیو څخه د پرهیز او نه ګډون په منظور غوره کوي، همدا رنګه یاد هېواد هڅه کوي چې جنګ محدود کړي او د نورو هېوادونو په هکله پلټنه کوي چې په جنګ کې ښکلیل نه شي دا ډول بې طرفي معمولا اخلاقي اړخ لري.[۷۳]

**٦ـ منفي بې طرفي:** دا ډول بې طرفي د مثبتې بې طرفۍ مقابل لوری دی، هر دولت چې د منفي بې طرفۍ سیاست غوره کړي یوازې هڅه کوي چې خپل هېواد د نړیوالو او سیمه ییزو کړکیچونو څخه لرې وساتي.
ځینې وخت د بې طرفه سیمې او بې طرفه سراتیژۍ اصطلاح سره اغښلي وي، چې بې طرفه سیمه د هېواد مشخصه او ټاکلې سیمه ده چې غیر نظامي اعلانېږي، په داسې حال کې چې بې طرفه ستراتیژي د یوه هېواد بهرنی سیاست دی چې په لنډ مهال ډول یې په نړیوالو کړکیچونو کې غوره کوي او لږ وخت وروسته یې بیا یاد سیاست ته بدلون ورکوي.
د عدم تعهد ستراتیژي: دحقوق پوهانو په نظر د عدم تعهد ستراتیژي همهغه د بې طرفۍ ستراتیژنې ده.
خو ځیني نور حقوق پوهان بیا داسې نظر لري چې:
د شلمې پېړۍ په دوهمه نیمایي کې په بهرني سیاست کې یوه نوې تکلاره په بین لمللی سیاست کې منځ ته راغله، چې د عدم تعهد په نامه یاده شوې ده.

---

[۷۲] علی بابای،غلام رضا،فرهنګ سیاسی،نشر اشیان،تهران،۱۳۸۲،ص،۲۱۹.
[۷۳] عبدالرشیدی،علی اکبر،جنبش عدم تعهد،نشر سروش،تهران،۱۳٦۵،ص،۲۰.

د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته ځینې آسیایي او افریقایي هېوادونو چې د استعمار او استثمار تریخ خوند یې څکلی وو د شرق او غرب بلاک او د سیاسي،نظامي،اقتصادي بلاک بندۍ څخه یې خپل هېوادونه بې طرفه غوښتل، نو ځکه یې خپل هېوادونه مستقل اعلان کړل.

د هندوستان لومړی وزیر جواهر لعل نهرو په ۱۹۴۷ میلادي کال کې وویل چې؛ (د عدم تعهد د غورځنګ سیاست،د نړیوالو قدرتونو څخه پرهیز کول دي او د هر بلاک او قطب د الحاق څخه ډډه کول دي،څنګه چې دواړه شرق او غرب بلاکونه پر یو بل باندې ښه ګومان نه کوي، بې باوره دي په هغه ډول نور هېوادونه هم د یادو بلاکونو په هکله غلط فکر کوي.)

د عدم تعهد سیاست ته د مثبتې بې طرفۍ ستراتیژي هم ویل کېږي، د عدم تعهد سیاست د دریمې نړۍ په هېوادونو کې د لرغوني سنت او فرهنګ څخه سرچینه اخلي د بېلګې په ډول په هندوستان کې یاد تفکر او اندېښنه د دوو فلسفي نظرونو څخه چې د بودا او اشوکا د اخلاقي فلسفي څخه او د اثبات د فلسفې څخه(د کاټلیا فلسفه) څخه سرچینه اخېستې ده.

یاد اصول د اشوکا له خوا دوه زره دوه سوه کال مخکې اساس او بنسټ اېښودل شوی دی،چې ځینې اصول یې د ملل متحد په منشور کې منعکس شوي دي.[۷۴]

## د غیر متعهدو هېوادونو د ګډون شرایط [۷۵]

د الجزایر په کنفرانس کې چې؛ په ۱۹۷۳ میلادي کال کې جوړ شوی وو، د غیر متعهدو هېوادونو د ګډون شرایط یې په لاندې ډول تشریح کړل:

۱ـ په هیڅ نظامي اتحاد پورې باید اړه او تعلق ونلري.

۲ـ د سوله ییزې ګډې اوسیدنې سیاست باید غوره کړي.

۳ـ ازادي بخښوونکو غورځنګونو ته باید کومک ورکړي.

۴ـ د نظامي اډې اجازه باید هیڅ بهرني هېواد ته ور نه کړل شي.

[۷۴] علی بابای،غلام رضا،فرهنگ سیاسی،نشر اشیان،تهران،۱۳۸۲،ص،۲۱۹.

[۷۵] عبدالرشیدی،علی اکبر،جنبش عدم تعهد،نشر سروش،تهران،۱۳٦۵،ص،۲۰.

۵ـ د نړیوالو قدرتونو سره د څو اړخېزو نظامي قراردادونو انعقاد باید لاسلیک نه شي.

**د غیر متعهد غورځنګ اصول په لاندې ډول دي:**

الف ـ د هېوادونو حاکمیت او ارضي تمامیت ته درنښت.

ب ـ په بین المللی کړکیچن او پیچلو اړیکو کې د خنډونو د کموالي هڅه کول.

ج ـ د هر ډول نظامي ګډون سره مخالفت ښودل.

د ـ د ملل متحد د منشور د اصولو سره همغږي کېدل.

هـ ـ دهېوادونو ترمنځ په سوله ییز ډول د اختلافونو حل کول.

ح ـ د ټولو هېوادونو سره بین المللی مثبته همکاري کول.

خ ـ د توکم پالنې،امپریالیزم او استعمار سره مبارزه کول.

ر ـ د نړیوال نظارت له لارې د اټومي وسلو څخه خلاصه ټولنه.

ز ـ د هېوادونو په کورنیو چارو کې د مداخلې نه کول.

ش ـ د هېوادونو په منځ کې د اړیکو د پرمختګ لپاره کوښښ کول.

ص ـ د اقتصادي او سیاسي پرمختګ لپاره مبارزه کول.

ض ـ د ناپیلتوب سیاست غوره کول.

**دوهمه: د انزوا طلبۍ یا ګوښه کېدلو سیاست:**

هغه سیاست دی چې یو هېواد خپل سیاسي،فرهنګي،ډیپلوماتیک،اقتصادي او نظامي راکړه ورکړه د بهرنیو هېوادونو سره حد اقل راټیټوي.

هغه هېواد چې د جغرافیایي موقعیت او نړیوالو بحرانونو له نظره، لرې په یوه واټن کې شتون ولري ، د بین المللي فشارونو څخه په امن وي او نسبي بسیاینې یا خود کفایۍ څخه برخمن وي او بین المللي نظام هم اجازه ورکړي،نوموړۍ ستراتیژي اختیارولی شي.

یاد هېواد چې انزوا طلبۍ یا د ګوښه کېدولو سیاست اخیتاروي، د اوسني وضعیت د ساتنې د سیاست سره موافق دی او همدا رنګه باید د قدرت اوقتدار د جوړښت عناصر په ډېر غور او دقت سره ارزیابی کړي.

ښه بېلګه یې د امریکا هېواد دی چې؛ په نولسمه پیړۍ کې یې دغه ډول سیاست غوره کړی وو او ټول شرایط یې درلودل لکه سیاسي او ایډیالوژیک توپیرونه ، نسبي نظامي امنیت، اقتصادي ځان بسنه یا خودکفایي او دوهم هېواد چې د انزوا طلبۍ سیاست یې غوره کړی وو،د دوهم نړیوال جنګ وروسته د جاپان هېواد وو.

د انزوا طلبۍ سیاست یا (Isolationism) په دې معنی ده چې په بین المللي چارو کې د سیاسي جنجالونو څخه یو هېواد باید پرهیز وکړي.[٧٦]

دیپلوماتیک،اقتصادي،فرهنګي او نظامي راکړه ورکړه د نورو سیاسي واحدونو او هېوادونو سره حد اقل ته راټیټ کړي او د اوسني وضعیت د ساتنې سیاست غوره کړي.[٧٧]

سویس په بین المللي نهادونو کې لکه اروپایي اتحادیې او ناټو د شمولیت څخه ځان وژغوره،خو غیر رسمي ګډون یې په بین المللي چارو کې شتون لري. [٧٨]

جورج واشنګټن په خپله ( د خدای په امانۍ بیانیه) کې وویل چې؛ امریکا له ځینو هېوادونو سره لنډ مهاله اتحاد لري ،خو د اوږد مهاله اتحاد څخه یې انتقاد وکړ.

د **۱۸۲۳** میلادي کال د مونرودکترین چې اعلان شوه،د امریکا د انزوا او ګوښه کېدلو سیاست ته یې رسمیت ورکړ، خو یاد سیاست د لاتیني امریکا د هېوادونو په هکله بیا ریښتینی او روڼ سیاست نه وو.

---

[٧٦] احمدیان،فاطمه،اصول روابط بین الملل وتاریخ روابط بین الملل،پوران پژوهش،ج اول،تهران،۱۳۸۶،ص،۷۲.

[٧٧] ر.ک.هالستي،کی جی،مبانی تحلیل سیاست بین الملل،جلد چهارم،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللي،تهران،۱۳۸۳،ص،۱۷۰.

[٧٨] ګریفیټیس،مارټین،دانش نامه روابط بین الملل،وسیاست جهان،ترجمه،علی رضا طیب، ،نشرات نی،جلد اول،تهران، ۱۳۸۸،ص،۱۳۰.

هغه وخت چې امریکا د نړۍ دوهمه درجه قدرت وو،د انزوا طلبۍ سیاست یې غوره کړی وو، خو کله چې یې نظامي،اقتصادي،تکنالوجیک قدرت په نړۍ کې بې ساری شو، نو ډېر ژر یې د گوښه کېدلو سیاست یو طرف ته کړ او بین المللی ائتلافونه او اتحادونه یې جوړ کړل.

د مونرو دکترین چې په ۱۸۸۲ م کال د ډسمبر په دوهمه نېټه د امریکا د وخت جمهور ر ییس جېمز مونرو له خوا اعلان شو دا دکترین د اروپایي هېوادونو د مداخلې سره مخالف وو چې په امریکایي هېوادونو کې یې کوله.

امریکاهم باید د اروپایي هېوادونو په خپل منځني جنگونو کې مداخله ونه کړي ترڅو چې ویلسن په لومړي نړیوال جنگ کې د مونرو دکترین تر پښو لاندې کړ او امریکا یې په جنگ کې داخله کړه.[۷۹]

چاپان بله بېلگه ده چې؛ د خپل جغرافیایي موقعیت په نظر کې نیولو سره او همدا رنگه د خپل فرهنگ کلتور، رسم رواج ، سنت د ساتلو او د پردیو د فرهنگي یرغل څخه یې د ژغورنې په دلیل د انزوا طلبی یا گوښه کېدلو سیاست غوره کړی وو چې د غرب د یرغل څخه په امن کې اوسي.

خو هغه وخت چې چاپان خپل قدرت او اقتدار د نړۍ په کچه ډېر کړ، د گوښه کېدلو سیاست یې یوې خوا ته پرېښود(د چاپان او روسیې جگړه په ۱۹۰۵ م کال کې یو ژوندۍ بېلگه ده چې؛ جاپان د گوښه کېدلو سیاست د لاسه ورکړ) دا ځکه چې د چاپان د پانگوالی نظام چې د امریکا په کومک وروسته له دوهم نړیوال جنگ څخه جوړ شوی وو، د گوښه کېدلو له سیاست سره په اختلاف کې دی.

**درېیمه: د تعهد او اتحاد ستراتیژي:**

د عدم تعهد ، بې طرفي او د انزوا طلبۍ د سیاست برخلاف سیاست دی چې د تعهداتو منل ورته د باور وړ نه دي، او برعکس د اتحاد ستراتیژي بیا تعهدات،اتحاد او ائتلاف غواړي ځکه یاد هېوادونه عقیده لري چې خپلې ملي گټې او موخې د بهرني سیاست په هکله پرته له نظامي تعهداتو ممکنه نه ده.

---

[۷۹] فرانک ال شوئل،امریکا چگونه امریکا شد،ترجمه،ابراهیم صدقیان،انتشارات،امر کبیر،تهران،۱۳۸۳،چاپ سوم.

ناټو او د اروپا ګډ بازار د اتحاد د سیاست او ستراتیژۍ ښې بېلګې دي.

په حقیقت کې هر دولت خپل بهرنی سیاست داسې تنظیموي چې باالاخره خپلې اړتیاوې په لنډ مهاله او اوږد مهاله ستراتیژۍ کې تامین او په لاس راوړي.

ملي موخې د زمان او شرایطو د غوښتنو پربنا بدلون مومي، ځکه کورني او بهرني عوامل په بهرني سیاست کې ملي موخو ته بدلون ورکولای شي.

په همدې ډول باید د بېلابېلو ملي موخو د تحقق لپاره د مراتبو سلسله په نظر کې ونیسو، په ځینې وختونو کې ممکنه ده چې؛ ملي امنیت،ټکنالوژي،اقتصادي پرمختیا،هوساینه او ایډیالوژي د بهرني سیاست لومړیتوبونه اوسي.

خو د یو شمېر عواملو او شرایطو په بدلون سره، د ملي موخو د ځای پر ځای کولو سره د لومړیتوب په نظر کې نیولو سره ،بدلونونه او تغیرات حتما قبول شي د بېلګې په ډول یو وخت د شوروي اتحاد لپاره ایډیالوژي او د کمونیستي انقلاب صادرول،د سوسیالیستي قوتونو ترمنځ یوالی، د شوروي اتحاد د بهرني سیاست په لومړیتوب کې ځای درلود، چې خپلې ټولې سرچېنې او زیرمې یې د یادو موخو د ترلاسه کولو په هدف په لګښت رسولې او پرولتاریایي انټرنیشنلیزم یې په لومړیتوب کې قرار درلود.

خو د نوې رهبرۍ په راتګ سره د ګلاسنویست او پروسترویکا د طرحې په جوړولو سره یې د شوروي اتحاد په بهرني سیاست کې لومړیتوب ترلاسه کړ او د ملي موخو حثیت یې ځان ته غوره کړ.

د اقتصادي او ټکنالوژیکي ودې ملي موخې یې په لومړي قطار کې قبول کړل په دې ترتیب څرګنده شوه چې ملي موخې تل ثابتې نه پاتې کیږي او بېلابېل نهادونه په بهرني سیاست کې ډول ډول لومړیتوبونه د ځان لپاره غوره کوي.

یو انسان ممکنه ده په خپل شخصي ژوند کاملا ارام او اسوده اوسي خو که چېرې هېواد یې د زوال،فقر او بحران سره مخامخ وي خامخا به یاد ارام شخص د زوال لور ته ځي.

خو که یو هېواد ارام او د اقتصاد له نظر په خپل ځان بسیا وي د نوموړي هېواد په داخل کې به هغه وګړي چې ناچاره او فقیر دي د مملکت د ښه وضعیت په سبب به هرو مرو د فقر څخه خلاصون مومي.[۸۰]

د سیاست د علم عمده اصول په اوسنۍ موډرنه نړۍ کې د ټولو هېوادونو د ملي ګټو پېژندنه د یو اصل په حیث پېژني یوازې د یادو ګټو ښه پېژندل دي چې یو هېواد یې د نورو هېوادونو او هم د ځان لپاره خوښوي ترڅو په نړۍ کې دوامداره خوشحاله ژوند ولري.[۸۱]

ملي ګټې د واقعیت خوښونکو له نظره باید څرګندې او روښانه وي ترڅو د نظر لروونکي او دبهرني سیاست جوړوونکي دا تشخیص کړي چې د یاد هېواد ملي ګټې کومې دي؟[۸۲]

له نظري پلوه لومړی ځل چارلیس بیرد د ملي ګټو مفهوم په بین المللي اړیکو کې شامل کړ، دا مفهوم د مور ګنتیا په نظریه کې د بهرني سیاست په تحلیل کې ځای پیدا کړ چې وروسته اروپایي او امریکایي هېوادونو په خپل عملي سیاست کې ورته اهمیت ورکړ.[۸۳]

د عمومي مصلحت مفهوم په یوناني فلسفه کې د مهمو ارزښتونو څخه دی، افلاطون خپل مرام داسې بیان کړ چې، د ټولو وطنوالو نېکمرغي باید په یو ډول تامین شي،دا یې د خپلې نظرې او اندیښنې اساس وټاکه.[۸٤]

ارسطو هم د ملي مصلحت مفهوم ته اهمیت ورکاوه او د دوو سیاسي نظامونو د تشخیص معیار یې ملي مصلحت ټاکلی وو چې یو ښه او بد حکومت سره بېلولی شي.[۸۵]

هغه مهم عوامل چې د ملي اهدافو په ګټګورۍ او د مراتبو د سلسلې په بدلون کې رول لري عبارت دي له؛

---

[۸۰] ډېویډ ډبلیو،کلینټن،دو دروی منفعت ملی،ترجمه اصغر افتخاری،ص،۳۳.

[۸۱] ډېویډ ډبلیو،کلینټن،دو دروی منفعت ملی،ترجمه اصغر افتخاری،ص،۴۰ و۵۴.

[۸۲] سیف زاده،سید حسن،تحول در مفهوم منافع ملی وجایگزینی آن با مصالح متقابل بشری در تحول مفاهیم، دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی، تهران،۱۳۷۰،ص،۸۱.

[۸۳] ر.ک.جی،مورګنټیا،سیاست در میان ملت ها، ترجمه،حمیرا مشیر زاده،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی ، تهران،۱۳۷٦،ص،۱ـ۲۴.

[۸٤] ر.ک،افلاطون،جمهور،ترجمه،فواد روحانی،صص،۲۱۲،۴۰۵او ۴۰۴.

[۸۵] ارسطو،سیاست،کتاب سوم،ترجمه،حمید عنایت،۱۳۵۱،ص،۹۴.

۱ـ د سیاسیونو په منځ کې کورني کړکیچونه.

۲ـ په نړیوال سیاست کې د دولتونو د اقتدار د ډیروالي مانور.

۳ـ د کورنیو اړتیاو پوره کول او له منځه تلل.

۴ـ د نورو بهرنیو لوبه کوونکو د تگلارې بدلون.

په بهرني سیاست کې د لومړیتوبونو بدلون،یوازې د بهرنۍ ستراتیژۍ او موقف نیونې بدلونونه په بر کې لري، خو په هیڅ ډول د ملي موخو د تغیر او بدلون په مفهوم نه دي.

**د ملي موخو ډولونه په لاندې ډول کې تشریح شوي دي.**

الف ـ مستقل او تړلي هدفونه یا موخې.

ب ـ لنډ مهاله،منځ مهاله او اوږد مهاله موخې.

ج ـ ظاهري او واقعي موخې.

د ـ همغږۍ موخې یا سازگار اهداف او ناسازگاره موخې.

هـ متفرق او متعهدې ملي موخې.

ح ـ د لومړني وضعیت د بدلون موخې او د لومړني وضعیت د ساتنې ملي موخې.

**الف :مستقلې او تړلې ملي موخې:**

د ملي قدرت او اقتدار عنصر ټاکوونکی رول لري چې؛ ترڅو د ملي موخوڅارنه په سم ډول وشي.

اوسنی بین المللی نظام اړینه بولي چې؛ د دولتونو ترمنځ اقتصادي اړیکې پیدا کړي، ترڅو هېوادونه د یو بل مملکت د بهرني سیاست تر اغیز لاندې وي.

د بېلگې په ډول د عدم تعهد د غورځنگ غړي هېوادونه او د اوپک ( O P E C) سازمان دا ثابته کړې ده چې؛ د بین المللی سیاست په ډگر کې د عمل ابتکار په لاس کې واخلي او د قدرتونو موازنه او نظام ته بدلون ورکړي او د خپلو ملي گټو په محور حرکت وکړي.

**ب ـ د اوږد مهاله منځ مهاله او لنډ مهاله ملي موخې:**

د داسې موخو په وېش کې د زمان عامل،د سرچینو تخصیص،د ټکنالوژۍ څخه استفاده او د عمل سیمه شامل دي.

لنډ مهاله ملي موخې هر وخت مقطه ای لحظه ای،عاجل او د دولتونو آني غوښتنو ته ځواب ورکوي.

ځینې وختونه لنډ مهاله موخې د یو بهرني دولت پر وړاندې د عکس العمل د ښودلو لپاره طرحه کېږي، پرته له دې چې مخکینی پلان یې شتون ولري.

د یو اقتصادي قرارداد انعقاد، د ځینې کورنیو اړتیاو د پوره کولو او دفع کولو په منظور اویا د گمرک د تعرفې اسانتیاوې د وارداتو او صادراتو په هکله، د لنډ مهاله ملي موخو له جملې څخه حسابېدلی شي.

منځمهاله ملي موخې چې د لنډ مهاله او اوږد مهاله موخو سره اړیکه لري،په یادو موخو کې دولتونه په یوه سلسله بین المللی کړنو پیل کوي، تر څو د کورني نیاز او اړتیاو ځواب یې ویلی وي.

ځینې وخت یو دولت د خپل کورني او بین المللي باور په خاطر، منځمهاله موخې تر پلان لاندې نیسي چې دولت د عمراني پروژو په عملي کولو سره، کورنی سیاسي مشروعیت لوړول غواړي،چې په بهرني سیاست باندې مثبت اغیز درلودلی شي.

یا ځینې وخت یو دولت د منځمهاله موخو سره یوځای ستراتیژیکې موخې او سنتي اهداف په پلان کې راوالي، چې په داسې حالاتو او شرایطو کې، دولت غواړي چې د ملت نظر غلط کړي او پاملرنه یې د اصلي کورنیو ستونزو څخه بل لوري ته جذب کړي، لکه په ۱۹۵۰ میلادي کال په تبت باندې د چین یرغل او یا د افغانستان د ملي وحدت د حکومت ځینې غولوونکي لنډ مهاله پروژې چې هر وخت یې پرته له مخکیني پلان څخه د هېواد د امنیت د خرابېدو په مقطعه کې عملي کوي ترڅو د ملت پاملرنه د پروژو اړخ جلب کړي.

اوږد مهاله ملي موخې، د ستراتیژیکو او ارماني اهدافو له جملې څخه دي، چې د وخت او زمان،سرچینې او د پلي کولو ساحه یې په کې اړین رول .

د بیلګې په ډول په ۱۹۲۰ میلادي کال لینن د سوسیالیستي انقلاب کامیابي، یوازې د ملي ستراتیژي یوه برخه په ټوله نړۍ کې وبلله ،عقیده یې وه چې؛ د نړۍ ټول پانګوال هېوادونه به یوه ورځ د سوسیالیزم خوند څکي.

خو هټلر خپل اوږد مهاله اهداف د (رایش زر کلن) او د اروپا د نوي نظم لپاره پلان کړي و،ترڅو د جرمني اریایي نژاد نسل په ټوله اروپا او نړۍ کې تر زرو کلونو حاکمیت ولري.

**ج ـ ظاهري او واقعي اهداف یاموخې:**

د بهرني سیاست څېړونکي او پلټوونکي باید په رسمي نظر ښودنه، ډیپلوماتیکو خبرو اترو او په یوه رسمي اعلامیه کې چې؛د یوه دولت له خوا خپریږي د نوموړي دولت د موخو او نیت واقعي ائینه څرکنده کړي.

د یوه دولت د واقعي او حقیقي کړنو د بررسۍ او ارزیابۍ لپاره باید مختلف او متنوع متغیرونه او عوامل په نظر کې ونیسي لکه تاریخي، جغرافیایي ، اقتصادي ، ایډیالوژیک ، ټکنالوژیک ، نظامي،امنیتي او ټولنیز متغیر چې هم په کورني چوکاټ کې او هم په بهرني چاپیریال کې په نظر کې ونیول شي.

د بېلګې په ډول د ګورباچوف قدرت ته د رسېدلو په لومړیو وختونو کې د نوموړي د نوي تفکر څخه مختلف تفسیرونه کېده،یوه ګروپ عقیده درلوده چې؛ دا نوی تفکر د مارکسیزم لیننسم د فلسفې په چوکاټ کې عملي کېږي.

ځینې نورو بیا فکر کاوه چې؛ د شوروي اتحاد په ستراتیژیکو موخو او بهرني سیاست کې یو اساسي بدلون راغلی دی، خو یو شمېرخلکو بیا داسې تصور کاوه چې؛ شوروي اتحاد ډېر وخت مخکې د پرولتاریا د انټرنیشنلیزم فلسفه خوشې کړې ده.

**د ـ همغږې موخې ؛سازګار او ناسازګاره اهداف:**

د ملي ګټو د لاسته راوړلو په منظور، باید د بهرني سیاست موخې په هماهنګ او همغږي ډول سره تنظیم شي.

د بېلګې په ډول د ملي امنیت ټېنګېدل په دې مفهوم نه ده چې، د ټکنالوجی،اقتصادي ودې،سیاسي،فرهنګي او د ټولنیزو مسائلو پرمختګ ته به پاملرنه نه کېږي.

بلکې اړینه ده چې؛ د نظامي چارو لپاره د بودجې تخصیص ته لومړیتوب ورکړل شي ځینې وخت یو دولت د ملي موخو ترمنځ د همغږۍ راوستلو لپاره په بهرني سیاست کې د یو داسې وضعیت سره مخامخ کېږي چې اړ دی څو د دوه یا څو متعارضو او متضادو موخو تعقیب وکړي او دواړه موخې د دولت لپاره حیاتي دي.

د بېلګې په ډول د خلع سلاح اصل دی چې ممکن دولت د ناامنۍ سره مخامخ کړي او یا په یوه پانګوال نظام کې دولت اړ دی چې همهاله عامه ګټې او هم د خصوصي برخې ګټې په نظر کې ونیسي.

د بېلګې په ډول د چین دولت دی چې په ۱۹۷۰ میلادی کال کې د موخو له تعارض سره مخامخ شو څکه د یوې خوا د مارکسیزم لیننسم د اصولو مطابق یې باید عمل کړی وای او د بل اړخه د ټکنالوژیکي او اقتصادي اړتیاو پر مبنا یې باید پراخه اړیکې د غرب په ځانګړي ډول له امریکا سره تامین کړې وای.

شوروي اتحاد په ۱۹۷۰ او ۱۹٦۰ لسیزو کې،د عراق او مصر له دولتونو سره نظامي او اقتصادي مرسته وکړه چې یاده مرسته په مصر او عراق کې د کمونیستي ګوندونو د رهبرانو د تعقیب،اذیت او ازار سبب وګرځېده، دا هغه څه وو چې، د شوروي اتحاد رهبرۍ نه غوښتل خو د زمان او شرایطو د جبر غوښتنه وه.

د بهرني سیاست متخصصین په داسې حالاتو او شرایطو کې د موخو د تنظیم لپاره،یو شمېر اهداف په لنډ مهاله او یو شمېر نورېې بیا په منځمهاله او اوږد مهاله پلان کې شاملوي.

**هـ ـ متعهد او متفرقه یا پاشلي اهداف:**

که څه هم ملي اهداف سیاسي ، نظامي، اقتصادي، امنیتي، ټکنالوژیکي، تجارتي، اجتماعي،فرهنګي، ډیپلوماتیک او سیاسي کېدلای شي او یا هم د جغرافیایي عواملو تابع وي نو کولای شو په لنډ مهاله، منځمهاله او په اوږد مهاله یې تقسیم کړو، ترڅو ملي ګټې تامین کړی شي.

همهاله باید پورتني ټول ملي اهداف د ملي ګټو د تامین په منظور ارزیابي کړو، ممکن یو دولت په خپل بهرني سیاست کې په یوه برخه کې له ناکامۍ سره مخامخ شي او د بل اړخه د ډېرو کامیابیو سره مخامخ شوی وي، نو ځکه د کامیابۍ یا ناکامۍ معیار نه باید د یوې کړنلارې له مخې ارزیابي شي.

یو دولت ممکنه ده چې؛ د بین المللي ټولنې سره کامله بلدیت ونلري ، د سیاست مدارانو د کمزورتیا او ناهمغږۍ له امله هم کېدلای شي چې د ملي موخو او ګټو څخه سم درک ونلري چې دا حالت یو دولت اړ کوي چې بهرنی سیاست یې پاشلی او متفرق حالت ونیسي.

داسې بهرنی سیاست ډېر وخت د انفعالي دولت مربوط کېږي چې د یوې منسجمې او متعهدې ستراتیږۍ سیاست نه بیانوي.

**ح ـ د اوسني وضعیت د بدلون او د فعلي وضعیت د ساتنې اهداف:**

ځینې دولتونه چې د ایډیالوژیک،ټکنالوژیک،پراختیا غوښتنې،یا د ناکامیو د جبران په دلیل خپل د بیا کتنې اهداف غوره کوي چې د ائتلاف جوړونې یا اشتراک (ګډون) په اتحادیو کې او د ملي اقتدار د ځواکمنتیا له لارې، اوسني وضعیت ته چې په بین المللي ټولنه کې شتون لري بدلون ورکوي، ترڅو خپلې ملي ګټې تامین کړای شي.

په ۱۹۱۷ میلادي کال بلشویک په شوروي اتحاد کې سیاسي قدرت ته ورسېدل،د نړۍ پانګوال نظام چې تر هغه وخته یې سیال نه درلود ، اوس وخت مبارزې ته اړ شول ځکه د شوروی اتحاد نظام چې د نړۍ بین المللي سیاست ته یې د ایډیالوژۍ له نقطې نظره کتل،د نړۍ ټول جوړښت یې ترسوال لاندې راوست او معتقد وو چې د نړۍ د سرمایدارانو نظامونه باید د شوروي اتحاد په څېر تشکیل شي.

بله انګیزه د بیا کتنې د اهدافو د تعقیب لپاره د مخکینیو ناکامیو جبران دی د بېلګې په ډول د جرمنې هېواد دی چې د لومړي نړیوال جنګ څخه وروسته یې د ورسای او سن جرمن د قرار دادونو په اساس خپله خاوره،نظامي تجهیزات،مالي قوت او نور د لاسه ورکړل او د یو نااراض دولت په حیث په بین المللي ټولنه کې پاتې وو .

همدغه حالت زمینه مساعده کړه چې د نازي جرمني هټلر صحنې ته راشي او سیاسي قدرت په لاس کې واخلي د هټلر په مشهور اثر (نبرد من یا زما جنگ) کې د المان اساسي کرښې د بیا کتنې د اهدافو تعقیب،په څرګند ډول لیکل شوي دي او کله چې هټلر سیاسي قدرت ته ورسېد یاد اهداف یې تعقیب کړل.

د بیا کتنې د اهدافو په وړاندې، د اوسني وضعیت د ساتنې اهداف، قرار لري چې دولتونه د نړیوال نظام په اوسني وضعیت د پاتې کېدو لېواله دي لکه د بېلشویک د انقلاب وروسته،د پانګوالۍ نظام د بین المللي نظام پاتې کېدل یې په خپل حالت غوښتل او په نړیواله کچه د وضعیت د بدلون سره خوښ نه وو،چې هر ډول نظامي،سیاسي،استخباراتي مبارزه یې پیل کړه.

د لومړي نړیوال جنګ وروسته مجارستان د خپلې خاورې او نفوس یوه برخه د تریانون د قرارداد سره برابر د لاسه ورکړه چې د لومړۍ او دوهمې نړیوالو جګړو ترمنځ مجارستان د بیا کتنې د سیاست غوښتوونکی وو څو خپله هغه خاوره چې د لاسه یې ورکړې وه بېرته یې د خپل هېواد سره ونښلوي.

خو د روماني هېواد د اوسني وضعیت د ساتنې د سیاست څخه پیروي کوله،ځکه د مجارستان بېله شوې خاوره او نفوس یې د رومانې سره یوځای کړي وو.

# پنځم څپرکی

**لومړی مبحث:**

## د ملي ګټو دمفهوم تاريخچه

(National interests)

د ملي ګټو اصطلاح په لومړي ځل په اروپا کې مطرح شوه او له هغه ځایه یې ټولې نړۍ ته انتشار وکړ.

د ملي ګټو د مفهوم پيداښت د اروپا د دريو مهمو سياسي،تاريخي بدلونونو سره یوځای منځته راغلی دی.

۱ـ د متمرکز او مطلقه پاچاهۍ حکومت.

۲ـ د ملي حاکميت د اصل پيداښت.

۳ـ د يو مستقل نهاد په حيث د دولت ظهور چې د ټولنې استازيتوب کوي.

پورتني درې بدلونونه د فيوډاليزم د انقراض او د پانګوالي د دولت د اړيکو څخه سرچينه اخېستې ده چې د پانګوالي اړيکې په اروپا کې په شپاړلسمه پېړۍ کې شکل نيولی او په اولسمه او اتلسمه پيړۍ کې خپل اوج ته رسېدلي دي چې د صنعتي انقلاب زمينه يې مساعده کړه.

د ملت د مفهوم پيداښت، د پانګوالۍ د اړيکو محصول او زيږنده ده، د ملت د مفهوم تر پيداښت مخکې ستر ټولنيز واحد همغه کلاسيکه اصطلاح يعنې قوم وو.

دوهم عامل چې، د ملي ګټو د مفهوم په پيداښت کې يې اساسی رول درلود، د دولت ظهور وو چې يو مستقل نهاد دی او د ټولنې استازيتوب کوي.

په اروپا کې په منځنۍ پيړۍ کې د دولت مفهوم يوازې د کورنۍ او مالکيت څخه بېل نه وو، چې وروسته بيا د مطلقه پاچاهۍ او متمرکز دولت جوړښت رامنځته شو چې پاچاهانو ځانونه د ټولنې استازي ګڼل.

د اولس او اتلسو پیړیو انقلابونو یادو مطلقه شاهي نظامونو ته صدمه ورسوله چې، په پایله کې دغه مطلقه نظام خپل ځای نوي نظام ته پرېښود چې پاچا کاملا د ټولنې استازی نه وو بلکې پارلمان د ټولنې استازیتوب کاوه.

اتلسمه او نولسمه پیړۍ په اروپا او امریکا کې او شلمه پیړې د نړۍ په نورو برخو کې د ملیت او ملي ګټو د شکل نېولو عصر دی.

په ډېرو برخو کې د دولت سیاست او موخې د ملي ګټو په چوکاټ کې طرحه ، ځینې وخت د ملي ګټو کلمه او اصطلاح ډېره ګونګه وي چې د دولت د پالیسۍ اوسیاست جوړونې او ملي ګټو سره یې د اړیکې پیداکول ستونزمن کار وي،ځکه چې ملي ګټې د ملي اقتدار سره نېغه اړیکه لري، دواړه کلمې (قدرت او ګټې) چې ذهني اړخ لري په سختې سره کولای شو چې داسې یو معیار پیدا کړو ترڅو د قدرت اوګټو ارزونه او سنجش ورباندې وکړو.

ځینې وخت د ملي ګټو اصول ثابت او د بدلون وړ نه دي، آن د حکومتونو په بدلون سره هم کوم بدلون نه قبلوي د بېلګې په ډول د شوروي اتحاد او د تزاري روسی د بهرني سیاست یو رنګوالی دی ځکه کریملین د مارکسیزم لیننسم د ایډیالوژۍ په بنسټ همغه بهرنی سیاست او موخې تعقیب کولې چې تزاري روسی هغه خپلې ملې ګټې قبولې کړې وې.

ټول سیاسیون په بهرني سیاست کې یو ډول ملي ګټو ته اعتقاد نه لري،د استعمار په دوران او عصر کې یو شمېر استعمارګرانو استدلال کاوه، چې د مستعمراتو ساتل زموږ ملي ګټې ساتلی شي.

خو د دې پر خلاف یو شمېر نورو بیا د خپلو مستعمراتو د استقلال په ورکولو کې د خپلې امبراطورۍ برم ،عزت،اقتدار او ساتنه لېدله.

د بېلابېلو استعماري دولتونو کړنې د دوهم نړیوال جنګ وروسته د همدغه چارچوب په داخل کې تحلیل او تجزیه کېږي.

ملي ګټې د ملي مصلحت او ملي اقتدار سره نږدې اړیکې لري،یادې درې واړه پدیدې د بهرني سیاست په جوړښت او کامیابۍ کې اساسي رول لري.

يو انسان ممکنه ده په خپل شخصي ژوند کاملا ارام او اسوده اوسي خو که چېرې هېواد يې د زوال،فقر او بحران سره مخامخ وي خامخا به ياد ارام شخص د زوال لور ته ځي.
خو که يو هېواد ارام او د اقتصاد له نظر په خپل ځان بسيا وي د نوموړي هېواد په داخل کې به هغه وګړي چې ناچاره او فقير دي د مملکت د ښه وضعيت په سبب به هرو مرو د فقر څخه خلاصون مومي.[٨٦]
د سياست د علم عمده اصول په اوسنۍ موډرنه نړۍ کې د ټولو هېوادونو د ملي ګټو پېژندنه د يو اصل په حيث پېژني يوازې د يادو ګټو ښه پېژندل دي چې يو هېواد يې د نورو هېوادونو او هم د ځان لپاره خوښوي ترڅو په نړۍ کې دوامداره خوشحاله ژوند ولري.[٨٧]
ملي ګټې د واقعيت خوښونکو له نظره بايد څرګندې او روښانه وي ترڅو د نظر لروونکي او دبهرني سياست جوړونکي دا تشخيص کړي چې د ياد هېواد ملي ګټې کومې دي؟[٨٨]
له نظري پلوه لومړی ځل چارليس بيرد د ملي ګټو مفهوم په بين المللي اړيکو کې شامل کړ، دا مفهوم د مور ګنتا په نظريه کې د بهرني سياست په تحليل کې ځای پيدا کړ چې وروسته اروپايي او امريکايي هېوادونو په خپل عملي سياست کې ورته اهميت ورکړ.[٨٩]
د عمومي مصلحت مفهوم په يوناني فلسفه کې د مهمو ارزښتونو څخه دی، افلاطون خپل مرام داسې بيان کړ چې، د ټولو وطنوالو نېکمرغي بايد په يو ډول تامين شي،دا يې د خپلې نظرې او انديښنې اساس وټاکه.[٩٠]
ارسطو هم د ملي مصلحت مفهوم ته اهميت ورکاوه او د دوو سياسي نظامونو د تشخيص معيار يې ملي مصلحت ټاکلی وو چې يو ښه او بد حکومت سره بېلولی شي.[٩١]
د ملي ګټو د ارزونې په صورت کې، د ملي موخو د ارزيابۍ په شکل د ملي ګټو د مراتبو د سلسلې سره مخامخ کېږو، په دې معنی ده چې په هر عصر او دوره کې  چې د دولتونو د ملي ګټو د

---

[٨٦] ډېويډ ډبليو،کلينټن،دو دروی منفعت ملی،ترجمه اصغر افتخاری،ص،٣٣.
[٨٧] ډېويډ ډبليو،کلينټن،دو دروی ,همهغه اثر، ص،٤٠ و٥٤.

[٨٨] سيف زاده،سيد حسن،تحول در مفهوم منافع ملی وجايگزينی آن با مصالح متقابل بشری در تحول مفاهيم، دفتر مطالعات سياسی وبين المللی، تهران،١٣٧٠،ص،٨١.
[٨٩] ر.ک.جی،مورگنتا،سياست در ميان ملت ها، ترجمه،حميرا مشير زاده،دفتر مطالعات سياسی وبين المللی ، تهران،١٣٧٦،ص،١ـ٢٤.
[٩٠] ر.ک،افلاطون،جمهور،ترجمه،فواد روحانی،صص،٢١٢،٤٠٥او ٤٠٤.
[٩١]ارسطو،سياست،کتاب سوم،ترجمه،حميد عنايت،ص،٩٤.

لومړیتوب سره مخامخ کیږو د وخت په تیریدو او د نړیوال وضعیت په بدلون سره، د ملي ګټو لومړیتوبونه هم بدلون مومي.
د فرانسې لپاره د راین سیند چې د جرمني هېواد د یرغل په وړاندې یو خنډ و د فرانسې لپاره حیاتي ګټه شمېرل کېده.

فرانسې د ۱۹۱۹م کال څخه وروسته خپلې ملي ګټې په اروپا کې د خپل موقعیت او ځای په تثبیت کې لېدله چې نوموړې موخې ته رسېدل یې د جرمنې هېواد په کمزورتیا کې لټوله.

د ملي ګټو د سلسلې د مراتبو په جمله کې د دولتونو لپاره په لومړۍ درجه د هېواد استقلال ساتنه او ارضي تمامیت ارزښت لري.

هغه دولت چې د استقلال د لاسته راوړلو په لومړنیو مراحلو کې شتون ولري، دښمن ته ماتې ورکول،د ملي پولو ساتنه،ارضي تمامیت د نوموړي دولت د ملي ګټو څخه شمېرل کیږي.

دا په داسې حال کې ده چې، د بل دولت په نظر بیا د ملي وحدت تامین او د ملي اقتدار ساتل ورته ملي ګټې دي، چې د مذهبي،قومي،فرهنګي او ملي وحدت ورته لومړیتوب لري.

سوله او امنیت د هغه دولت لپاره چې د بهرني یرغل پر وړاندې ډېر حساس وي، لومړیتوب لري اوملي ګټې پېژندل کیږي،د بېلګې په ډول د افغانستان اوسنی کړکیچن امنیتي وضعیت یې تر ټولو ښه بېلګه ده.

د بین المللي وضعیت څرنګوالی او د دولت شرایط د ملي ګټو په مسائل کې رول لري.

دا انتظار باید ونلرو چې ټول هېوادونه یو ډول ملي ګټو ته متعقد دي، دا ممکنه ده چې په خاصو شرایطو او حالاتو کې ټاکلي موضوعات د ملي ګټو په حیث وپېژندل شي او لومړیتوب ورکول شي.

مهمه دا چې د شرایطو او اوضاع په بدلون سره ملي ګټې حتما بدلون مومي، د یوه دولت د سیاسیونو په نظر، ممکن بېلابېل لومړیتوبونه د مراتبو په سلسله کې راوستل شي.

د شرقي اروپا د هېوادونو تاریخ ته که کتنه وشي، د دوو نړیوالو جګړو په منځ کې (۱۹۴۵ـ۱۹۱۸)د ملي کټو اساسي مسائل د ملي وحدت تامین وو، ځکه چې مختلف ملتونه په کې ګډ شوي و او هر

ملیت او نژاد د ځان لپاره استقلالیت او ازادۍ غوښته. وروسته له دې چې سوسیالیستي دولتونه په شرقي اروپا کې تاسیس شول، د نوموړو دولتونو ملي ګټو بدلون وموند او د پانګوالې د مفکورې یا نظر او د پانګوالې د هېوادونو نه مداخله یې خپله ملي ګټه وګڼله.

د ملي ګټو د مفهوم د توپیر په درلودلو کې ویلای شو چې، د لبنان لپاره ملي ګټې عبارت دي له ملي وحدت ، د خاورې یوالی او د ارضي تمامیت ساتنه ده.

خو د جاپان هېواد لپاره بیا ملي ګټه د مارکیټ او بازار وده ، پرمختګ اوپه نړۍ باندې اقتصادي تسلط درلودل دي.

د ملي ګټو بدلونونه د شرایطو وضعیت او حالاتو سره کولای شو، د برتانیې هېواد مثال راوړو چې برتانیه د خپلې امپراطورۍ د ساتنې اصل د ملي ګټو له جملې څخه شمېرل.

خو د نازي المان د بمبار څخه وروسته چې لندن یې په دوهمه نړیواله جګړه کې تر هدف لاندې راوست، د برتانیې لپاره لومړنۍ ملي ګټه د ارضي تمامیت ساتنه شوه.

دا چې سیاسیون په یو هېواد کې ممکن ملي ګټې د خپلو نظریاتو په نزد، متفاوت فکر وکړي په دې برخه کې د ستالین او تروتسکي مثال راوړلی شو چې، دواړه د شوروي اتحاد د کمونېست ګوند په رهبري شورا کې مهم شخصیتونه وو.

دستالین له نظره شوروي اتحاد باید نظامي قدرت او اقتصادي بنیاد غښتلی کړي، چې د ملي ګټو په هکله یې لومړیتوب درلود.

دا په داسې حال کې ده چې، د تروتسکي له نظره د شوروي اتحاد لپاره د ملي ګټو لومړیتوب د پرولتاریا انټرنیشنلیزم غښتلی کول او په بهرنیو هېوادونو کې د سوسیالیستي نظامونو تاسیس او اسقرار وو.

ستالین عقیده درلوده ، که چېرې سوسیالیزم یوازې په شوروي اتحاد کې محصور پاتې شي د زوال سره مخامخ کېږي.

د دولتونو کړنې لکه مرسته ورکول چې په نظامي اقتصادي ساحاتو کې شتون لري، یا د مرستو پرېکول،د ډیپلوماتیکو اړیکو محدودیت،د اتحادیو او ائتلافونو سره یوځای کېدل او یا د نوموړو اتحادیو څخه جلا کېدل، ټولې هغه کړنې دي چې د ملي ګټو په چوکاټ کې اعمال کېږي.

**لارډ پالمرستون چې د انګلستان د وخت صدراعظم وو داسې نظر درلود:**

(زموږ دائمي دوست او دښمن یوازې زموږ ملي ګټې دي چې، دائمي پاتې کېدلای شي او زموږ دنده دا ده چې دغه ملي ګټې خوندي کړو.)افلاطون په خپل مشهور اثر (جمهوریت ) کې د ملي ګټو په مورد داسې نظر درلود چې؛ (زه په دې آند یم چې د ټولو ښایارنو د نیکمرغۍ او سعادت د تامین لپاره باید یو نظام جوړ شي.)[92]

**ارسطو یوناني فیلسوف په خپل اثر (سیاست) کې د ملي ګټو په هکله داسې نظر لري:**

هغه سیاسي نظامونه چې د عامه مصلحت په هکله نظرلري، د عدالت مطلق په نظر کې نېولو سره داسې یو نظام بشپړ نظام دی،خو هغه سیاسي نظامونه چې د یوه فرمانروا یا حاکم شخصي ګټو ته پاملرنه ولري هغه نظام غلط او منحرف شوی نظام دی.[93]

ارسطو د خپل کتاب په یوه برخه کې بیا وایي: (که چېرې یو فرد یا ګروپ یا ښاریان د عمومي مصلحت لپاره حکومت وکړي، دغه سیاسي نظام بشپړ نظام دی او که چېرې یاد سیاسي نظام د یوه شخص یا ګروپ شخصي ګټه په نظر کې درلودله، منحرف شوی سیاسي نظام دی.

جي مورګنټا وایي؛( دوه اساسي مفهومونه چې عبارت دي له امنیت او ملي ګټو څخه دي دا دواړه محرکې قوې په ننني نړۍ کې د دولت او د ملتونو د چارو رهبري کوونکي دي.[94]

جي مورګنټا په خپل اثر (سیاست در میان ملت ها) د ملي ګټو په هکله د دوه یوناني عالمانو (ډیو ټوس او توسیدید) چې د میلاد څخه مخکې یې د ملي ګټو په هکله خپل نظر داسې څرګند کړی دی:( عمومي ګټې، د دولت موقف، د قدرت له نظره دي د آتن په ډیموکراسۍ کې د عمومي ګټو

---

[92] افلاطون،جمهور،ترجمه فواد روحانی،ص،۲۱۲،۵،۴.

[93] ارسطو،سیاست،کتاب سوم،ترجمه حمید عنایت،ص،۹۴.

[94] کاظمی علی اصغر،پایان سیاست واپسین اسطوره،چاپ اول،انتشارات قمس،تهران،۱۳۸۱،ص ۲۶۳-۲۶۴.

مفهوم ډېر واضح دی چې د اشحاصو عمومي گټې ته منصوب دی چې د اوسني ملي گټو د مفهوم سره نږدیوالی لري.) [95]

امریکایي عالم جیمز روزنا په دې نظر دی چې؛( دیوه دولت د ملي گټو رېښه د همغه ملک په ارزښتونو کې نغښتې ده او د هغه ملک د قدرت په محاسبه کې یاد ارزښتونه هم شامل دي چې په پایله کې بېلابېل هېوادونه مختلفې موخې لري.)

د ملي گټو مفهوم د میلاد څخه مخکې وختونو کې د یوناني فیلسوفانو له خوا پېژندل شوی دی ،خو په پنځلسمه پېړۍ کې د دولتونو د منځ ته راتگ سره او د حاکمیت او قانون له تطبیق سره د ملي گټو مفهوم رامنځته شو،خو وروسته په اتلسمې او نولسمې پېړۍ کې د ناپیلیون د بناپارت د جگړو څخه وروسته، زیات په اروپایي او امریکایي هېوادونو کې د ملي گټو په مورد دولتونه وېښ شول او د پاملرنې وړ یې و گرځېدل،خو د دوهمې نړیوالې جگړې وروسته یې د سیاستمدارانو پاملرنه په خاص ډول اړولې ده.

په دې ډول عمومي گټې د کورني سیاست اړوند دي او ملي گټې د خارجي سیاست د لارښود په صفت د ملي اهدافو د تحقق لپاره په بهرني سیاست کې اساسي جز دی، چې دا مفهوم د جي مورگنتیا له خوا څخه تشریح شوی دی.[96]

**لومړی : د ملي گټو ډولونه،**

**الف: موازي گټې:**

داسې ملي گټې چې هر دولت یې د ځان لپاره غواړي چې گټې یې تامین شي، څه د همکارۍ اویا پرته د همکارۍ له لارې وي او د دواړو دولتونو د گټو د تعارض سبب نه شي.

**ب ـ متعارضې گټې:**

دا ډول گټې هغه وخت ترلاسه کېږي چې؛ د مناقشې او نزاع سره یوځای وي، هر دولت د مقابل دولت له گټو سره خپلې گټې په ټکر کې ویني او د هر ډول سازش او همغږۍ په شتون کې د

[95] ر.ک.جی.مورگنتیا،سیاست در میان ملت ها،ترجمه حمیرا،مشیر زاده،تهران ،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللی،۱۳۸٦،صـ ۱ ـ ۲۹او ۱۸۳.

[96] ر.ک.جی.مورگنتیا،همهغه اثر،۱۳۸٦،ص،۹۰.

دواړو ذینفع دولتونو په منځ کې تحقق پیدا کولای شي، چې دا سازش او همغږي د ښه تفاهم او خبرو اترو له لارې په لاس راتلای شي.

**ج ـ ګډې ګټې:**

هغه ملي ګټې دي چې؛ د یوه دولت په مټ په یوازې ډول نه تامین کېږي بلکې د اتحاد او ائتلاف د جوړېدو په صورت کې د نوموړو ګټو تامین کېدل ممکنه ده.

**د ـ اختلافي ګټې:**

د متعارضو ګټو په نسبت لږ عمق لري، یادې ګټې هغه وخت څرګندیږي چې دواړه دولتونه د نفوذي سیمو د لاسته راوړلو په لټه کې ووسي.

ویلای شو چې؛ د موازي ګټو په چوکاټ کې د ګړکیچ کموالی ، د ګډو مرستو په اساس مرسته او همکاري د سوړ جنګ د اختلافي ګټو په چوکاټ کې داخل کړو.

د یوه دولت د ملي ګټو د پېژندولو لپاره باید لومړی د بهرني سیاست موخې او لومړیتوبونه وپېژندل شي او وروسته د ملي قدرت د ارزیابۍ او ارزونې په اساس او هغه وسایل چې د ملي ګټو د تامین او د موخو د تحقق لپاره په کار لویږي، ګټه ځینې واخلو کولای شو چې د ملي ګټو د عمق په تحلیل او تجزیه برلاسي شو.[۹۷]

لارډ پالمرستون چې د برتانیې د وخت وزیر وو، داسې نظر ورکړی چې؛(موږ دائمي دښمنان او متحدین نه لرو یوازې زموږ ملي ګټې دي چې زموږ لپاره دائمي دي، موږ دنده لرو چې دا ملي ګټې تعقیب کړو.)[۹۸]

**دوهم مبحث:ملي ګټې د اهمیت له نظره په درې ډوله وېشل شوي دي:**

**الف ـ حیاتي ګټې:**

چې د یو دولت د موجودیت سره اړیکه لري او د خبرو کولو او نانډرو وهلو وړتیا په کې شتون ونه لري چې په هغه برخه کې یو دولت باید د یادو ګټو څخه تېر نه شي.

**ب ـ مهمې ګټې:**

هغه ګټې دي چې دولتونه یې د ساتنې لپاره د خبرو اترو له لارې په تلاش کې دي.

---

[۹۷] قوام،سید عبدالعلي،همغه اثر،ص ۱۳۰.

[۹۸] کاظمي،علي اصغر،پایان سیاست واپسین اسطوره،چاپ اول،تهران،۱۳۸۱،ص،۲۷۳ـ۲۶۴.

**ج ـ حاشيوي ګټې:**

هغه ګټې دي چې؛ يوازې د يوه دولت د ناندرو وهلو او د قدرت د لوړولو لپاره په خبرواترو کې په لاس راځي.

ملي ګټې ممکنه ده چې؛ د دولت د لومړني او دائمي ګټو په حيث تعريف شي او يادې دائمي ګټې (موخې) لاندينو ارزښتونو ته اطلاق کيږي.

۱ ـ وجودي امنيت يا د امنيت شتون.

۲ ـ د رفاه او هوساينې امنيت.

۳ ـ پرستيژ.

۴ ـ د يوه هېواد د قدرت لوړوالی او ساتنه د نورو هېوادونو د اړيکو په ارتباط.

**د- اختلافي ګټې چې د مصالحې او مرافعې وړ دي:**

**--- متعارضې ګټې:**

هغه ګټې دي ، چې د دولتونو ګټې له يو بل سره اصولي تفاوت ولري.

**--- مشترکې ګټې:**

هغه ګټې دي چې د موازي دولتونو يو ډول ګټې په کې تامين وي او د دواړو دولتونو ګټې يو په بل پورې مستقيما اړيکه ولري.

ملي ګټې د يوه دولت لومړيتوبونه اوموخې په بين المللي وضعيت کې او د نورو قدرتونو په وړاندې په نړيوالو بدلونونو کې هر وخت ثابتې موجودې دي چې کېدلای شي د شرايطو په بدلون سره تغير ومومي.

د ملت او دولت د ګټو ګډوالی دی چې و بين المللي مرستې ته شکل ورکوي، لکه امريکا چې له پنځلس زره کيلو متره واټن څخه سفر کوي او افغانسان،عراق،سوريه،مصر اولبيا اشغالوي يوازې د خپلو ملي ګټو د تامين لپاره دا عمل ترسره کوي چې د امريکا په بهرني

سیاست کې يې د اصولو موافق کار بولي، چې دا اصول يې د هميلټونيسيم ،ويلسونيسم او جکسونيسم د اصولو په نامه ياديږي چې په راتلوونکو برخو کې به په بشپړ ډول سره تشريح شي.

که څه هم ملي ګټې يو واحد مفهوم دی،خو بيا هم ځينې وخت د دې اصطلاح څخه متناقض او مختلف مفهوم اخېستل کېږي.

ملي ګټې په حقيقت کې همغه د نظام تعريف شوي ارمانونه،اصول او موخې دي چې د اساسي موخو ښکاره کوونکي دي چې د اساسي قانون او د اسلامي اصولو پربسټ د ټولې ټولنې د توافق وړ دي.

يادې موخې بايد په کورني او بهرني سياست کې د پاملرنې لومړيتوب ولري.

ملي ګټې يوه موډرنه او سياسي اصطلاح ده چې؛ د سياست په فرهنګ کې د دوهم نړيوال جنګ څخه وروسته داخله شوې ده ،مخکې له دې چې يوناني فيلسوفانو په خپلو مشهور اثارو کې اشاره ورته کړې ده، هغه د عمومي ګټو اصطلاح وه.

**د ملي ګټو تعريفونه:**

دا چې کوم ارزښتونه او مسائل د ملي ګټو په تعريف کې شامل دي، پلټوونکي او څېړونکي د نظر يوالی نه لري يو شمېر عالمان چې منطقي تحليل او تجزيه يې کړې او عقلي استدلال لريوايي: چې د يوه دولت لپاره اساسي ارزښت چې غواړي تحقق ورکړي د يوه هېواد پايښت او بقا ده،يعنې مخکې له هر څه بايد يو هېواد شتون ولري چې هر بل ارزښت وساتي ترڅو نور مهم ارزښتونه چې د ملي ګټو اړوند دي، هغه وزيږوي لکه سياسي استقلال،ارضي تماميت او فرهنګي هويت.

بله ډله عالمان په دې باور دي چې د ملي ګټو چارې د هېواد په پايښت پورې بايد اړه ونه لري ځکه دا مفهوم په ډېر لنډ ډول خلاصه شوی دی،ياد عالمان عقيده لري چې د يوه هېواد کړنې په اوږد مهاله کې کېدلای شي د ملي ګټو عينې مضمون وټاکل شي.

تعريف: هغه عام او تلپاتې موخې چې يو ملت د هغو د لاسته راوړلو لپاره تلاش کوي.

د پورته تعریف په اساس ملي ګټې یو پراخ مفهوم دی چې یوازې د ملي استقلال او ارضي تمامیت په معنی نه دی بلکې ،انرژۍ او اوومه موادو ته لاس رسی، سرچینې،نوي کشفیات،اقتصادي پراختیا او وده،د نفوذ ساحه او د خپلو اتباعو دفاع د پولو څخه بهر ،هم په ملي ګټو کې ځای لري.[۹۹]

## ملي ګټې څوک ټاکيءِ؟

د یوه هېواد لوړ پوړي مسوولین ملي ګټې ټاکلی شي، ځکه ملي ګټې یوه سیاسي مسئله ده او په دې هلکه وروستی نظر لوړپوړي سیاسیون ورکولای شي.

ملي ګټې د مادي، معنوي او دینې ګټو څخه تشکیل شوي چې؛ د سیاسي او بین المللي مسائلو سربېره ارزښتونه،باورونه اوعقاید هم په برکې نیسي.

ملي ګټې د بهرني او کورني سیاست سره اړیکه لري، د یوه دولت او هېواد د دوام او پاتې کېدو عناصر په کورني سیاست پورې تړاو لري، لکه د استقلال او ارضي تمامیت څخه دفاع،د هېواد دفاعي ځواک ته غښتلتیا ورکول او هم په ورته وخت کې د هوساینې د پروګرامونو د بودجې تنقیص چې دواړه حالات د ملي ګټو اړخونه دي، باید تعادل یې په نظر کې ونیول شي څو پلان جوړونه یې متعادله وي.

## د ملي ګټو ډولونه:

د ټولنیزو چارو یو ګڼ شمېر یې اوس کولای شو چې په ملي ګټو کې حساب کړو چې دېر اساسي یې په لاندې ډول دي.

### ۱ـ ملي وحدت:

عبارت دی د خلکو له عکس العمل، د هېواد د مصالحو او د عمومي ګټو څخه دفاع ده ،چې یاده روحیه په مختلفو هېوادونو کې په خاصو شرایطو کې توپیرلري.

په هره اندازه چې په یوه هېواد کې توکمیز ،فرهنګي ،ټولنیز ،سیاسي ،نظامي ،انسجام او سمون ډېر وي، د ملي وحدت احساس هم په ټولنه کې ډېرمحسوسېږي.

[۹۹] روشن دل،جلیل،امنیت ملي ونظام بین المللی،تهران،۱۳۷۴،ص،۳۸.

ملي وحدت د ملي ګټو د مهمو اجزاو او عناصروڅخه حسابيږي چې، هر ملت يې د خپل پاېښت او د نورو موخو د تحقق لپاره اړين عامل بولي.

قران شريف د ملي وحدت په اړه ارشاد کړی چې؛( يو د بل سره نزاع مه کوئ، ځکه چې تاسو کمزروي کوي او خپل شان او شوکت له لاسه ورکوئ )سورت الانفال ايت ۴٦

۲ـ د ملي ګټو يو بل عنصر (ملي امنيت) دی چې؛ هر هېواد ورته اړتيا لري د ملي امنيت مفهوم دا دی چې نظامي تهديد وجود ونه لري او يا کلاسيک تعريف يې داسې دی چې( د يوه هېواد قدرت او اقتدار د بهرنيو ګواښونو په لرې کولو کې دی چې د سياسي حيات يا ملي ګټو په وړاندې شتون ولري.)

او هم ويلای شو چې؛ د اقتصادی ودې وړتيا،سياسي ثبات او ټېنګښت،کورنی امنيت،د ټولنې لپاره د هوسا ژوند تامينول د ملي امنيت د جوړښت عناصردي.

د اسلام مقدس دين د ملي امنيت په هکله په قران شريف کې ارشاد کړی چې، (د اسلامي ټولنې د امنيت په خاطر د دښمنانو پر وړاندې نظامي تجهيزات،تدارک او پيدا کړي)سورت انفال ايات ٦۰.

د قران شريف ايات دی چې ( ای مومنانو د کافرانو سره په مبارزه کې ځانونه چمتو کړی او تر هغه سرحده چې کولای شئ تاسو اذوقه ،تسليحات،جنګي وسايل او د سورلۍ اسونه د خدای د دښمنانو د تهديد په منظور او د خپلو د ښمنانو په خاطر اماده کړئ)

ملي قدرت او اقتدار؛ د ملي ګټو يو مهم جز دی چې مفهوم يې هغه اقتدار دی چې يو هېواد ته دا امکان ورکوی چې خپل ملي اهداف په بين المللي اړيکو کې مخ ته يوسي.

هغه عوامل چې ملي قدرت جوړوي او ځواکمنتيا وربخښي عبارت دي له:

الف ـ جغرافيايي موقعيت.

ب ـ نفوس.

ج ـ صنعتي وړتيا.

د ـ طبيعي سرچينې.

هـ ـ ملي خصوصيات.

ح ـ ملي روحيه.

خ ـ نظامي چمتوالی.

ر ـ ديني تعاليم.

پورتني عوامل د ملي قدرت په وده او ټېنگښت کې ستر رول لري .

**د ملي گټو گواښوونکي عوامل:**

کورنی او بهرنی عوامل کېدلای شي چې ملي گټې له گواښ سر مخامخ کړي.
داخلي يا کورني عوامل چې د درېيو عواملونامتوازنوالی او نه تعادل دی چې د ملي گټو تهديد کېدلای شی.
دغه درې عوامل چې سياسی،اقتصادي او نظامي اړخ لري په ټولنه کې خپل تعادل له لاسه ورکوي،نورې ملي گټې تر تهديد لاندې راولي يعنې نظامي موخې په يوه هېواد کې د اقتصادي موخو سره بايد متناسبې وي.
د هېواد بهرنی سياست بايد د موخو په ټاکلو کې د اقتصاد سره مطابقت ولري او په پلان کې ونيول شئ.
بهرني عوامل په لاندې ډول وېشل کېږي:
۱ـ نظامي يرغل.
۲ـ توطه.
۳ ـ فرهنگي يرغل.[۱۰۰]

**په عملي ډگر کې د اوسني عصر د زبرځواکونو بهرني سياست په ځانگړې ډول تشريح کېږي.**

[۱۰۰] روشن دل،جليل،امينت ملي ونظام بين المللی،تهران،۱۳۷۴،ص،۲۳.

# شپږم څپرکی

**لومړی مبحث:**

## د امریکا د متحده ایالاتو بهرنۍ سیاست

د امریکا د متحده ایالاتو بهرنۍ سیاست د یو شمېر اساساتو(بنسټونه)او دکتورینو څخه تشکیل شوی دی چې، د دوو پېړیو په اوږدو کې یې شکل نیولی دی.

**اول ـ د امریکا د بهرني سیاست بنسټونه یا اساسات:**

**الف ـ د Hamiltonism مکتب:**

چې د امریکا د لومړني جمهور رییس جورج واشنګټن د خزانې وزیر و، الیګزاندر همیلټون په دې برخه کې خپله نظریه وړاندې کړې ده.

**د همیلټونیزم د مکتب اصول په لاندې ډول دي:**

۱ـ په اروپا کې د ځواکونو د تعادل اصل( د برتانیې او فرانسې په منځ کې د قواوو د تعادل ساتنه.)

۲ـ په بهر کې د امریکا ارزښتونو ته پاملرنه او تاکید کول،چې د امریکا ملي ګټو ته ژمن ووسي.

۳ـ په داخل د امریکا کې مشغولتیا او په نیمه غربي کره کې د امریکا د مداخلې او لاسوهنې ممانعت کول.

**ب ـ د Jacksonism مکتب؛**

دغه مکتب د اندرو جکسن د نظرۍ څخه اخېستل شوی چې د امریکا اووم جمهور رییس وو(۱۸۳۷ـ ۱۸۲۹) د جکسونیزم د مکتب اصول په لاندې ډول دي.

۱ـ په سیاست او بهرنیو اړیکو کې د ملي ګټو د ارزښت ساتل.

۲ـ د ملي ګټو د ساتلو په منظور د نړۍ په نورو هېوادونو کې د نظامي مداخلې منل.

۳ـ د ملي ګټو د خوندیتوب په منظور د نظامي لارې د ګواښونو په مقابل کې عکس العمل ښودل.

۴ـ د یو نړیوال ځواک په حیث د موقف ساتلو په منظور د امریکا د موقعیت او پرستیج ته پراختیا ورکول.

**ج ـ د Wilsonism مکتب:**

د امریکا ۲۸ اتویشتم جمهور رییس وو چې اصلي نوم یې توماس وود رو ویلسون دی، یاد مکتب د ویلسون د نظریاتو زیږنده ده چې د ویلسون په څوارلسو اصولو کې ورته اشاره شوې ده( ۱۹۱۳ـ ۱۹۲۱)دا باید وویل شي د لومړي نړیوال جنگ څخه وروسته د امریکا د وخت جمهور رییس ویلسن یو پلان چمتو کړ چې څوارلس اصله یې درلودل چې د مستعمراتو د ازادولو او همدا رنگه د بحرونو د لارو خلاصون د هر هېواد په مخکې او همدا رنگه د نورو هېوادونو په کورنیو چارو کې مداخله نه کول او د جرمني د هېواد هغه مستعمرات چې د لومړي نړیوال جنگ په ترڅ کې یې اشغال کړي وو یادې ځمکې د شوروي اتحاد،امریکا،انگلیستان او فرانسې په منځ کې وویشل شول،د جرمني په هېواد یې سخت شرایط کېښودل چې ټوله اردو یې په استثنا د محدودو نظامي پرسونل،ټول اردو یې ورته منحله کړه نظامي تجهیزات لکه الوتکې، تحت البحري بېړۍ،ټانکونه او نور یې ځېنې ضبط کړل.

**د ویلسونیزم د مکتب اصول په لاندې ډول دي:**[101]

۱ـ د جگړې د رد له لارې د نړیوالو کړکیچونو حل کول.

۲ـ په نړیوالو ځواکونو کې د تعادل او میزان منځ ته راوستل.

۳ـ د یوې وسیلې په حیث د جگړې د پدیدې سره د ډیمکراسۍ پراختیا.[102]

**دوهم :د امریکا د بهرني سیاست دکتورین:**

**الف ـ د مونرو دکتورین:**[103]

د جیمز مونرو نظریات دي چې؛ د امریکا پنځم جمهور رییس وو (۱۸۱۷ـ۱۸۲۵) چې د اروپایانو د مداخلې په مقابل کې مقاومت کول یې د دکتورینو اصلي ټکی و، چې په غربي نیمه کره کې صورت نیسي او همدا رنگه امریکا باید په اروپایي کړکیچونو کې هیڅ مداخله ونه کړي.ترڅو چې ویلسن په لومړي نړیوال جنگ کې د مونرو دکتورین تر پښو لاندې کړ او امریکا یې په جنگ کې

[101] Woodrow Wilson impact and legacy ,miller center. Retrieved ۲۰۱۲-۰۸-۳۰

[102] Woodrow Wilson and foreign policy neh.gov .retrieved,۲۰۱۱-۱۲-۱۰

[103] حسین حمیدی،نیا،ایالات متحده امریکا،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی،تهران،۱۳۸۲،چاپ اول.

داخله کړه خو د جنګ په پای ته رسېدلو سره یې خپل هغه پلان چې څوارلس مادې یې درلودلې او د ویلسن د اصولو په نامه مشهور دي نړۍ ته وړاندې کړ.[۱۰٤]

## ب ـ د روز ولټ دکتورین:

د امریکا د شپږ ویشتم جمهور رییس (تیودور روزولټ) د نظریاتو زیږنده ده( ۱۹۰۱ـ ۱۹۰۹) چې د امریکا مداخله په غربي نیمه کره کې تایید کوي ،د امریکا د سیاسي اقتصادي ګټو د ساتنې په منظور باید صورت ونیسي.

## ج ـ آیزن هاور دکتورین:

دا د امریکا د څلور دېرشم جمهور رییس ډیویډ آیزن هاور نظریات دي(۱۹۵۳ـ ۱۹٦۱) امریکا د خپل امنیت لپاره د فارس خلیج او د منځني ختیځ د هېوادونو استقلال او ازادي اړینه ګڼي،که چېرې د شوروي اتحاد د کمونېست ګوند له خوا په یادو هېوادونو کې مداخله صورت ونیسي،امریکا به مسلحانه جنګ ته چمتو وي.

د بېلګې په ډول امریکا او انګلیس د ډاکټر مصدق په ضد کودتاه او د ایران او امریکا نظامي تړون ته اشاره کولای شو.[۱۰۵]

## د-د ټرومن دکتورین:

د دوهم نړیوال جنګ په پای کې د امریکا جمهور رېیس وو چې په جاپان باندې یې د اټومي بمبار امر ورکړ د نوموړي جمهور رېیس دکتورین عبارت دي له؛(د یونان او ترکیې څخه د کمونیزم په وړاندې ملاتړ،په غربي نیمه کره کې د امریکا د ګټو د ساتلو په منظور مداخله کول جواز لري.)

[۱۰٤] فرانک ال،شوئل،امریکا چگونه امریکا شد،ترجمه ،ابراهیم صدقیان،انتشارات امیر کبیر،تهران،۱۳۸۳،چاپ سوم.

[۱۰۵] کتاب ۱۰،ویژه بررسی اسناد ستراتیژی امنیت ملی امریکا پس از جنگ سرد،عباس کاردان،انتشارات موسسه ابرار،معاصر،تهران.

د امریکا د بهرنیو چارو وزارت په ۱۷۸۹ میلادي کال د فرانسې له انقلاب سره په یوه کال تاسیس شوی دی، د کار کوونکو شمېرېې تر دېرش زرو اوچت دی، کلنۍ بودجه یې تر پنځه دېرش میلیارده ډالرو ډېره ده.[۱۰۶]

د(تاریخ پای End of history) د فرکویاما نظریه ده ؛نوموړی عقیده لري چې د لیبرال ډیموکراسي ایډیالوژي په کمونیزم باندې بریالۍ شوې او بله ایډیالوژي د لیبرال ډیموکراسي او پانگوالي نظام په وړاندې منځ ته نه راځي، د همدې نظرې په رڼا کې وه چې امریکا د نړیوال نوي نظم ( New world order) طرحه وړاندې کړه چې د دیموکراسی،سیاسي ازادي،ازاد بازار ته پراختیا ورکړي او ټول خنډونه یې په مخ کې ویجاړ او له منځه یوسي.

د مارشال مک لوهان د (دهکده جهان یا نړیوال کلي نظریه)هم وړاندې شوه چې مفهوم یې دا دی چې نړۍ د ټکنالوژۍ د پراختیا او ودې په اساس،د اړیکو د ټینگولو په هکله په یوه کوچنی کلي باندې بدله شوې ده او امریکا په دې نظره ده چې؛ د هېوادونو مدیریت د ټکنالوژۍ په مټ د لرې واټن څخه شونې ده.

په همدې دلیل د امریکا په بهرني سیاست کې ستر بدلونونه څرگند شول چې؛ بېلگه یې د افغانستان،عراق،سوریه،کوژو،لیبیا،مصر او د لبنان جگړې دي چې د همدې نظریاتو په رڼا کې منځته راغلي دي.

په منځني ختیځ کې د نړیوال نوي نظم د طرحې په چوکاټ کې د نفت،تېل او انرژۍ گټې هم د امریکا لپاره د ملي گټو حثیت لري.

درېیم دلیل یې په منځني ختیځ کې د جگړو په هکله د تروریزم،افراطیت له منځه وړل و، ترڅو د اسرئیل هېواد ته ټول هغه گواښونه او خطرونه چې بالقو د عراق له اړخه متوجې وو باید شنډ شي.

د همدې موخو د تحقق په منظور امریکا په بین المللي نهادونو ډېره لږه اتکا وکړه او هم یې د مخالفو هېوادونو او د ملل متحد د امنیت د شورا د غړو د اعتقاداتو سره هیڅ همغږي ونه کړه.

[۱۰۶] خلجي،عباس،مقاله های علمی سیاست دفاعی،۱۳۸۲،ص،۱۲۱ـ۱۴۸ .

امریکا په یوازې ځان تصمیم ونیو چې په یادو هېوادونو کې د قهر او غضب څخه د ګټې له لارې د لیبرال دیموکراسي ،ازاد بازار او سیاسي استقلال په جبر او زور وربانديې تحمیل کړي.

چې په افغانستان کې یې د طالبانو او په عراق کې یې د صدام حسین نظامونه ړنګ کړل.

دا چې د امریکا په بهرني سیاست کې د ساړه جنګ وروسته یو لړ بدلونونه راغلل او د یرغلیزې جګړې سیاست یې غوره کړ.

دا حالت د لیو اشتراووس یوه نظریه وه چې؛ نوی محافظوي غورځنګ هم ورته وایي چې مفهوم یې په بهرني سیاست کې د مخامخ جګړې څخه استفاده کول دي ترڅو نظم تامین کړي.

**درېیم : د ساړه جنګ وروسته هغه عوامل چې د امریکا په بهرني سیاست باندې اغیز لري.**

د امریکا متحده ایالات د انګلیسانو څخه د استقلال اخېستلو څخه وروسته(۱۷۷۶ م)د خپلو ملي ګټو په منظور یو فعال بهرنی سیاست درلود.

امریکا د خپلو طبیعي زیرمو،انساني ځواک او فني اشخاصو په درلودلو سره خپل بهرنی سیاست تدوین کړ، په لومړي وخت کې یې د ګوښه کېدلو یا انزوا طلبۍ سیاست غور کړ ترڅو خپل بین المللي اقتدار تثبیت کړي، چې د نولسمې پېړۍ په وروستیو او د شلمې پېړې په پیل کې د امریکا د جغرافیایي موقعیت اوبین المللي نظام په نظر کې نیولوسره د ګوښه کېدلو یا انزوا سیاست غوره کړی وو.[۱۰۷]

اروپایي ګډوالو او مهاجرینو د امریکا وطرف ته له پیله شروع کړې وه، چې په دې حساب په **۱۹۱۳-** ۱۸۵۰ میلادی د امریکا نفوس دروېشت میلیونه اټکل شوی وو،چې ډېر ژر یې د نفوسو کچه درې نوي میلیونو ته لوړه شوه او د ایالتونو شمېر یې له دېرش څخه پنځوس ایالتونو ته اوچت شو چې د امریکا په اقتصاد کې یې ستره ونډه درلوده.[۱۰۸]

د امریکا په اقتصاد کې ځینې امریکایي معجزه کوونکو سوداګرو هم رول درلود، لکه جان ډي راک فیلر چې د غذایي توکو سوداګري یې کوله او وروسته د نفتو او تېلو ډکر ته راووت،اندریو

[۱۰۷] ګوهری مقدم،ابو زر،سیاست خارجی امریکا،تهران،مرکز اسناد اسلامي انقلاب.

[۱۰۸] بزرګ مهري،مجید،تاریخ روابط بین المللی،تهران،۱۳۸۵.

کارنګي د اوسپنې او فولادو مشهور سوداګر،جان فېریو مورګانا د بانکونو په ساحه کې مشهور شخصیتونه دي.[۱۰۹]

د امریکا د اقتصادي بنې د غښتلتیا سره یې خپلو یرغلیزو حملو ته ادامه ورکړه چې د لومړۍ او دوهمې نړیوالو جګړو څخه وروسته یې عملا خپل د ګوښه کېدلو یا انزوا سیاست یوې خوا ته پرېښود او د مونرو د دکتورینو د اعلان یوه پېړۍ وروسته یې نړیوال سیاست ته راودانګل.

وروسته له دوهم نړیوال جنګ امریکا د کمونیزم په وړاندې ځان ته د نړۍ د ازادو قوتونو لارښود او رهبر وویل چې پنځوس کاله یې خپل بهرنۍ سیاست د همدې موخو د تحقق لپاره تدوین کړی وو.

د یونان او ترکیې لپاره کومک، دمارشال طرحه، د ناټو د سازمان تاسیس،د کوریا جنګ،د هستوي بتې جوړښت او پراختیا،رهبري شوي توغندي او مېزایل،فضایي پروګرامونه او سپوږمکۍ او د ستورو د جنګ تر نامه لاندې په فضا کې نظامي تاسیسات،د اسرائیلو د دولت ملاتړ،د ویتنام جنګ، په هرډګر کې د چین مقابله ،په ځانګړي ډول په سوداګریز اوسیاسي ډګر کې،د ساحوي تړونونو تاسیس چې اقتصادي سیاسي نظامي موخې یې درلودې چې د کمونیزم پر وړاندې تشکیل شوي وو ترڅو د کمونیزم د نظریې د نشر او پراختیا څخه په ټوله نړۍ کې مخنیوی شوی .

همدا رنګه د مستعمراتي او استثماري حکومتونو منځته راتلل،د شوروي اتحاد سره نظامي تسلیحاتي دښمني او سیالي،په رسنیو باندې تسلط او واک درلودل دا ټول د ساړه جنګ د دوران وسایل وو چې د امریکا د بهرني سیاست د موخو او ملي ګټو د تامین لپاره یې ځینې ګټه اخېسته، ترڅو چې د شوروي اتحاد فکري او ایډیالوژیک مکتب چې د کمونیزم نظریه وه په ظاهر سقوط وکړ.

وروسته د امریکا متحده ایالاتو ته د نړۍ د رهبرۍ زمینه مساعده شوه چې د نړۍ د نوي نظم تر عنوان لاندې یې د تاریخ وروستۍ نظریه رامنځ ته کړه ،چې د ملل متحد تر چتر لاندې د ناټو او اروپایي اتحایې د نظامي قوت په ملګرتیا یې د عربي هېوادونو او اسیایي ممالکو باندې یرغلیزه حمله وکړه چې د لیبرال ډیموکراسۍ، ازاد بازار او د خصوصي سکټور تر عنوان لاندې په همدې

[۱۰۹] بزرګ مهری،مجید،تاریخ روابط بین المللی،تهران،۱۳۸۵ ،ص ۱۱۶.

پلمه غواړي څو د نړۍ کمزروي هېوادونه او مربوطه نظامونه يې بدل کړي چې په سر کې يې وروسته د کمونيزم له ماتې،د اسلام د دين د بدنامه کولو او کمزروتيا په منظور،د بنسټپالنې،افراطيت،ترويزم او نړيوال خطر په پلمه اسلامي ارزښتونه توهين کړل او غواړي له همدې منفي عمل او د ټولو نړيوالو اصولو خلاف، اسلامي ممالک اشغال کړي.(ليکوال)

**څلورم:جيمز روزنا (JAMES rosenau):**

د بهرني سياست يو له هغو مشهور پلټوونکو څخه دی چې؛ د بهرني سياست په تحليل کې د پوره شهرت خاوند دی، پنځه هغه متغيرونه يې برسي،تحليل او تجزيه کړي چې د بهرني سياست په هکله ډېر اغيز لري او په لاندې ډول دي.[110]

ياد متغيرونه عبارت دي له:

۱ـ فردي متغيرونه.

۲ ـ د نقش يا رول متغيرونه.

۳ـ اداري يا ديوان سالاري متغيرونه يا بيوروکراټيک متغيرونه.

۴ـ ملي متغيرونه.

۵ـ د سيستم او نظام مربوط متغيرونه.

د دې جملې څخه د فردي،د نقش مربوط متغيرونه،اداري يا بېوروگراټيک او ملي متغيرونه د ټيټ تحليل په کچه کې شامل دي.

خو د سيستم او نظام مربوط متغيرونه بيا د بهرني سياست په لوړه کچه تحليل کې شامل دي چې هر متغير به يې په لنډ ډول تشريح شي.

**اول ـ فردي متغير:**

دا متغيرمربوط د باور، ارزښت ، ايډيالوژي ، تصور،مشخصات ، کاري تجربي او نورو ځانگړتياو څخه عبارت دي چې د بهرني سياست جوړونکي يې لري.

رواني او يډيالوژيک تمايلات چې سياستمداران يې لري د بهرني سياست په طرحه او تطبيق کې خاص اغيز لري.

[110] سازمند،ډاکټر بهاره،سياست خارجی قدرت های بزرگ،موسسه فرهنگی،مطالعات وتحقيقات بين المللي ابرار معاصر،تهران،۱۳۹۲،ص ۲۳ـ۳۳

که چېرې وغواړو د امریکا د متحده ایالاتو د جمهورو رېیسانو ایډیالوژیک تمایلات،انګیرنې او د فکري مکتب څخه یې بحث وکړو چې ترکومې کچې یې په بهرني سیاست کې اغیز درلودلی دی، نو معلومه به شي چې درې مکتبونه د امریکا په بهرني سیاست کې شتون لري چې مخکې تشریح شول.

دغه درې مکتبونه عبارت دي له همیلټونیسم،جکسونیزم او ویلسونیزم څخه چې هر مکتب د جمهورو رېیسانو په مختلفو دورو کې په یوازې یا ګډ شکل د رهبرانو د پاملرنې وړ ګرځېدلی او عمل یې پرې کړی.[111]

**۱ـ همیلټونیزم:**

د امریکا په ارزښتونو باندې تمرکز لري، د ملي ګټو څخه ملاتړ کوي، نوموړی مکتب د امریکا ارزښتونو ته وده او پرمختیا ورکوي چې دا وده هم د مداخلې او جګړې له لارې څخه نه ده، بلکې د یوه قبول شوي بېلګې په ډول یې نړیوالو ته وړاندې کوي چې د نړۍ خلک په خپله خوښه او رضایت د امریکا ارزښتونو ته ارجعیت ورکړي.

یاد مکتب د ارزښتونو په محور راڅرخي، نسبت د ملي ګټو محور ته او د اصولو له مخې جګړه او د بهرنیو هېوادونو په کورنیو چارو کې مداخله او لاسوهنه ورته د قبول وړ نه ده.

**۲ـ جکسونیزم:**

نوموړی مکتب د ملي ګټو په محور راڅرخي د امریکا ملي ګټو ته ډېر ارزښت ورکوي او د قدرت،سیاست ته لومړیتوب ورکوي،د یاد مکتب اصول په دریو محورونو راڅرخي:

الف ـ د امریکې د مداخلې اصل،چې د امریکا د ملي ګټو دساتنې،وده او پرمختیا په منظور یې د نړۍ په بېلابېلو برخو کې جایز او روا بولي.

ب ـ د امریکا د موقف د تثبیت،ساتنې او ودې په منظور، دا چې امریکا د یو ستر قدرت په حیث په نړۍ کې تثبیت شوی مقام ولري، نوموړی اصل یجاد شوی،چې د ملي ګټو سره د قدرت د اصل قرار ورکول دي.

[111] زارعي،اصغر،دکتورین امینت امریکا،جهان سازی امنیت امریکا،تهران،۱۳۸۴،ص،۳۸۱.

ج ـ د ګواښونو،خنډونو اوخطرونو په وړاندې تند،ګړندی او مناسب عکس العمل ښکاره کول چې د امریکا ملي ګټو ته زیان ونه رسیږي.

**۳- ویلسونیزم مکتب:** د امریکا د دولت د نفوذ، د لویې خوښونې او د تسلط د اوج څوکې ته د رسولو څخه مراد دی په دې مکتب کې اصل دا دی چې د جګړې مداخلې او زور له لارې د امریکا د حاکمیت،وده او پراختیا ته بشپړه پاملرنه شوې ده.

یاد مکتب غواړي چې په نړۍ کې د امریکا ارزښتونه حاکم کړي او نړۍ(Americanization) لورته رهبري کړي خو د لنډ مهالې ګټې د تامین لپاره هیڅ فکر نه کوي.

که چیرې د نړۍ په یوه نقطه کې د امریکا د مداخلې په پایله کې کومې ملي ګټې تامین هم نشي مهمه نه ده،د قدر وړ او مهمه دا ده چې د امریکا ارزښتونه تثبیت کړي،نو ځکه دا برید حتمی دی باید په هر صورت عملي شي پرته له دې چې د بهرنیو هېوادونو حاکمیت ته پاملرنه وشي. دبېلګې په ډول کوژو او د مصر یرغل.[۱۱۲]

که څه هم پورتني درې واړه مکتبونه د لومړي نړیوال جنګ څخه مخکې شکل نېولی او منځ ته راغلي دي، خو په عمومي ډول تر اوسه د امریکا بهرنۍ سیاست د یادو مکتبونو څخه اغیزمن دی، چې په یوېشتمه پیړۍ کې په څو هېوادونو کې د امریکا د غیر مشروع مداخلې بېلګې د همدې سیاست زېږنده دي. لکه د افغانستان،مصر،کوژو،عراق،سوریې او لبیا مداخله.

د امریکا د جمهورو ریېسانو دکتورین حتی د دوهم نړیوال جنګ وروسته هم په یو ډول اقلا د یوه مکتب د اصولو څخه اغېزلرلی دی.

په همدې موخه د لاندې جمهورو ربیسانو دکتورین د یادونې وړ دي، د بېلګې په ډول روزولټ،ټرومن،کېنیډي،نیکسن،ریګن،پلاربوش،کلنټن او زوی بوش چې نوموړو جمهورو ریېسانو اقلا د یوه مکتب او یا د څو مکتبونو د اصولو د ترکیب څخه متاثره وو.[۱۱۳]

[۱۱۲] زارعی،اصغر،دکتورین امنیت ملي امریکا،جهان سازی امنیت وامنیت جهان سازی،تهران،موسسه فرهنگی مطالعات و تحقیقات بین المللی ابرار معاصر،تهران،۱۳۸۴،ص ۳۸۲.

[۱۱۳] بهاره،سازمند،سیاست خارجی قدرتهای بزرگ،موسسه فرهنگی مطالعات وتحقیقات بین المللی ابرار معاصر،تهران،۱۳۹۲،ص ۲۰.

د بېلګې په ډول د پلار بوش بهرنی سیاست د جکسونیزم او ویلسونیزم د مکتب په بنسټ او د کلنټن، بهرنی سیاست د همیلټونیزم د مکتب د اصولو په اساس د ارزونې وړ دي.

زوی بوش د ریګنیزم او ویلسونیزم د مکتب د اصولو په اساس خپل بهرنی سیاست چمتو کړی وو، په همدې اساس ویلای شو چې د امریکا د متحده ایالاتو د استقلال څخه(۱۷۷٦) تر اوسه پورې د اته ډوله دکتورینو شاهد یو چې ټول دکتورین د دریګونو مکتوبونو د اصولو څخه اغیزمن دي،نوموړي اته دکتورین په لاندې ډول دي:

۱ـ د واشنګټن د خدای په امانی بیانیه.

۲ـ د مونرو دکتورین.

۳ـ د محترم سرنوشت دکتورین.

۴ـ د تړلو دروازو دکتورین.

۵ـ د بحرونو د بلې خوا متوازن کوونکي دکتورین.

٦ـ د نفوذ په مقابل کې د مانع جوړولو دکتورین.

۷ـ د ازادولو دکتورین.

۸ـ د مخکې له مخکې عمل کولو دکتورین.

د نوموړو اته ګونو دکتورینو ځانګړتیاوې دا دي چې په منطقي ډول یو په بل پسې تسلسل لري او یو بل بشپړوي.د اوسني څپرکي په پای کې یاد اته دکتورین په لنډ ډول تشریح شوي دي.[۱۱٤]

**دوهم ـ د رول یانقش متغیر Role variable**

دغه متغیر د شغل د شرحه کوونکي په صفت او یا هم د کړنلارې د قواعدو په حیث د هغو لوړ رتبه کارمندانوڅخه انتظار لري لکه جمهور رییس،وزیر، وکیل،مطبوعاتي مسوول او نور چې د بهرني سیاست په تدوین کولو کې نقش لري.

[۱۱٤] بهاره،سازمند،همغه اثر،ص ۲۳.

که چیرې یو لوړ پوړی کارمند د بهرني سیاست په طرحه،تطبیق او ارزیابۍ کې نقش او ونډه ولري، بیا داسې عمل اجرا کړي چې د یاد کارکوونکي د نقش او رول څخه یې تمه نه کیږي ممکنه ده چې د کارکوونکي د نقش او دندې د له منځه تللو لامل وګرځي.

د بېلګې په ډول په امریکا کې د واټر ګیټ ماجرا د امریکا د وخت د جمهور رییس ریچارډ نیکسن په دوره کې او یا د مونیکا لیوینسکی قضیه د جمهور رییس کلنټن سره چې جنسي اړیکې یې د جمهوري ریاست په وروستیو ورځو کې رسوا شوې.[۱۱۵]

د یادونې وړ ده چې د واټر ګېټ قضیه چې د Water gate scandal یا د واټر کېټ رسوای په نامه یې شهرت وموند نوموړې رسوایي په **۱۹۷۲ ـ ۱۹۷۴** د واشنګټن په یوه هوټل کې چې د واټر کېټ په نامه یادیږي واقع شوې وه چې د همدغې قضیې د رسواي په اثر د امریکا د وخت جمهور رییس ریچارد نیکسن لومړی استحضاح ته د کانګرس له خوا وغوښتل شو خو جمهور رییس مخکې له استحضاح څخه استعفا ورکړه.

اصل موضوع د واټر ګېټ په هوټل کې د دیموکرات حزب د ټاکینزو چارو دفتر شتون درلود چې د اف بی ای له خوا په یاد دفتر کې د ثبت او ضبط وسایل په مخفي شکل په غیر قانوني ډول ځای پر ځای شوي وو.

همدا عمل د هوټل د یوه امنیتي کارکوونکي له خوا په تصادفي شکل د خبرو یو کېسټ کشف او پیدا شو چې له امله یې موضوع مطبوعاتو ته نفوذ وکړ چې بلاخرد جمهور رییس د استعفا سبب وګرځېد.[۱۱٦]

**دریېیم- اداري یا بیورو ګراتیک متغیر Bureaucratic:**

دغه متغیر د حکومت په تشکیلاتو او بهرني سیاست اغیز لري،د ادراي مېتود د مطالعې لپاره باید یو محقیق او پلټوونکی د امریکا د ځمکني بحري او هوایي ځواکونو،سی ای، ای،د بهرنیو چارو وزارت او د همدغو نهادونو تاثیرات د جمهورریېس پر تصمیمونو باندې مطالعه کړي.

[۱۱۵] کارل،ډویچ،نظریهای روابط بین المللی،تهران،۱۷۵،ص ٦۹۷.
[۱۱٦] مرګ افشاګر رسوای واټر ګېټ ،کتاب مشهور.

په ډيموکراتيکو نظامونو او په هغه نظام کې چې د ډيموکراسۍ پر بنسټ استوار وي ،د ځينو نهادونو ځخه په بهرني سياست کې ډېر اغېزمن کېږي،په نسبت د هغو اقتدار خوښوونکو او مطلق العنان نظام ته،نوموړي نهادونه عبارت دي له؛ټولنيزې رسنۍ،سياسي گوندونه،عمومي افکار او نور.[۱۱۷]

**څلورم ـ ملي متغير National variable:**

ملي متغير زيات شمېر ځانگړيتاوې لري چې؛ د بهرني سياست په تدوين او جوړونه کې اغيز لري، د چاپيريال متغيرونه لکه مساحت،جغرافيايي موقعيت، اوبه او هوا،طبيعي زېرمې،نفوس،د بې سوادۍ کچه،ملي ناخالص توليدات،صنعتي توليدات،کرنيز محصولات،د اقتصادي ودې سلنه او کچه،نظامي قدرت،سياسي نظام او د قدرت نور عناصر چې د ملي متغير تر عنوان لاندې مطالعه کېدلای شي.[۱۱۸ـ۱۱۹]

د امريکا متحده ايالات داسې ملي ځانگړتياوې لري چې؛ د نړۍ په کچه په اول ځای کې قرار لري، همدغه لامل دی چې د دوهم نړيوال جنگ ځخه وروسته د امريکا په بهرني سياست کې يې مثبت رول درلودلی دی، له دې جملې څخه د ملي متغير څو نمونې تشريح کوو.

**۴ـ ۱ نظامي قدرت:**

امريکا د يو مجهز نظامي قدرت په درلودلو سره ساړه جنگ ته ورداخله شوه،په اوسنيو شرايطو کې امريکا د داسې نظامي قدرت څخه برخمنه ده چې د تاريخ په اږدو کې ساری نه لري.

د امريکا نظامي بودجه د ټولو هغو هېوادونو چې اقتصاد يې د نړۍ په لوړه کچه کې قرار لري،له بودجې څخه ډېره ده او هم د روسيې هېواد څخه چې تر پنځه زره اټومي سرگلولې لري د امريکا نظامي بودجه څو سلنه تر روسيې لوړه ده چې ياد ځواک ددې سبب شوی چې په نورو هېوادونو کې د امريکا د بهرني سياست مداخلې ته زمينه مساعده کړي.[۱۲۰]

---

[۱۱۷] کارل،دويچ او نور،همغه اثر،ص ٦۹۸.

[۱۱۸] کاظمي،علی اصغر،روابط بين الملل د ر تيوری وعمل،تهران،قومس،۱۳۸۴.

[۱۱۹] سيف زاده،حسين،اصول روابط بين الملل،تهران،نشر داد گستری،۱۳۷۸.

[۱۲۰] دهشيار،حسين،سياست خارجی وستراتيژی کلان امريکا،تهران قومس،۱۳۸٦،ص ، ۱۱٦.

**۲-۴ اقتصادي وړتیا:**

د امریکا د ۲۰۱۷ میلادی کال بودجه څلور ترېلیونه او سل مېلیارده ډالر وه (۴،۱ټرېلیون) او د ۲۰۱۸ م کال بودجه یې څلور ټریلیونه ډالره ده.

دا په داسې حال کې ده چې د امریکا د ۲۰۱۸ کال نظامي بودجه اووه سوه میلېارده ډالره ده او د روسیې د ۲۰۱۸ میلادي کال نظامي بودجه یوازې شپږ څلوېښت ملیارده ډالره تصویب شوې ده.

چین،اروپا،چاپان،هند او جرمني اوس یو داسې اقتصاد درلودونکي هېوادونه دي چې په نړیوال ډګر کې خاص ځای لري چې کولای شي د امریکا سره په اقتصادی وده کې سیالي وکړي.[121]

**پنځم- د بین المللي نظام جوړښت:**

دا نظام یو زیات شمېر متغیرونه په برکې نیسي، د شوروي اتحاد له سقوط او د سوړ جنګ د پای ته رسېدلو څخه وروسته او د نړیوالو اړیکو په هکله په بین المللي کچه د دوه قطبي نظامونو ویجاړېدل یو اغیز ناک عامل شمېرل کېږي، چې په نړیوال ډګر کې د امریکا لومړیتوب په نظامي او اقتصادي ساحه کې واضح کوي.

په دې سره د اروپایي اتحادیې او لرې ختیځ هېوادنه یې د سیالۍ جوګه نه شي کېدلای.[122]

زبیګنو برژنسکی د نړیوال نوي نظم د طرحې په وړاندې کولو او د پلار بوش د جمهوري ریاست ومقام ته رسېدل،د امریکا د امبراطورۍ تفکر یې په نړیوال سطحه ژوندی کړ او د جکسونیزم او د ویلسونیزم د مکتب د اصولو په پیاده کولو سره یې د مداخلې او لاسوهنې شرایط په نورو هېوادونو کې مساعد کړل.[123]

خو کلنټن چې په ډیموکرات ګوند پورې اړه لري د همیلتونیزم د مکتب د اصولو پیرو دی، تر یوې اندازې د جکسونیزم اصول هم خوښوي،چې په بهرني سیاست کې یې پیاده کړي دي **د انسان دوستۍ د مداخلې تر نامه لاندې یې په بالکان،کوژو،سومالیه،هایتی کې نظامي مداخله**

[121] متقي ابرهیم،همکاري های نامتقارن ایران وامریکا در دوران اباما،فصل نامه بین المللی روابط خارجی،۱۳۸۸،سال اول،شمار سه،۱۵۱
[122] زارعی،اصغر،دکتورین امنیت ملي امریکا وامنیت جهان سازی،درکتاب امریکا ۷ (ویژه دکتورین امینت ملي امریکا)،تهران موسسه فرهنگی مطالعات وتحقیقات بین المللی تهران،۱۳۸۴، ص ،۳۸۸.
[123] زارعی،اصغر،همغه اثر،ص،۳۸۸.

**ترسره چې نوموړې مداخلې د امریکا د ملي ګټو په سبب عملي شوې نه دي ، بلکې د امریکا د ارزښتونو د ساتنې په مرام ترسره شوې دي.**

لکه څنګه چې کیسینجر د امریکا پخوانی د بهرنیو چارو وزیر نوموړې مداخلې تایېدکړې چې د امریکا ملي ګټې په کې نغښتي نه دي ،خو د امریکا د ارزښتونو لپاره ډېر زیات اهمیت لري.

کلنټن خپل بهرنی سیاست د کورني سیاست په نظر کې نیولو سره طرحه،تطبیق او عملي کړ او د کورنیو چارو سمون ته یې زیاته پاملرنه درلوده، چې د بهرني سیاست په نسبت دا ډېره پاملرنه وه.[۱۲٤]

د زوی جورج بوش په دوره کې چې؛ بهرنۍ نظامي مداخلې پیل شوې د نوي ویلسونیزم تر نامه لاندې یادې شوې چې یاده اصطلاح یې د ریګنیزم په نامه هم یاده کړه ،چې د نظامي عصري او پرمختللو تجهیزاتو څخه په کې استفاده شوې وه.

د نړیوال نوي نظم له نظریې سره موافق ده  او د دوو مکتبونو د اصولو مجموعه وه چې عبارت دي له جکسونیزم او یلسونیزم څخه.

اوباما هم د همیلټونیزم د مکتب پیر و ،خوکله چې یې افغانستان ته دېرش زره نوي عسکر د نظامي عملیاتو لپاره راستانه کړل د دې حکایت کوي چې د جکسونیزم د مکتب یو شمېر اصول یې عملي کړي وي.

هغه متغیرونه چې د هېوادونو په بهرني سیاست کې اغیز لري، په دوه ډوله عواملو وېشل کېدای شي چې کورني او بهرني عوامل دي.

پورتني پنځه ډوله متغیرونه چې مخکې تشریح شول د جیمز روزنا د نظري پربنسټ تشریح شوي دي.

**دوهم مبحث:د چین په هکله د امریکا د متحده ایالاتو بهرنی سیاست**

هغه موارد چې؛ په چین کې د بشر د حقوقو د نقض تر نامه لاندې راځي او امریکا ورته هر وخت د انتقاد ګوته نیسي په لاندې ډول خلاصه کېدلای شي:

[۱۲٤] زارعی،اصغر،همغه اثر،ص،۳۹۰.

۱ـ د مذهبي ازادۍ خنډ او محکومول.

۲ـ د تبت د فرهنگ او ټولنې د ارزښتونو له منځه وړل.

۳ـ د کارگرانو سره ناسم چلند کول، په زندانیانو باندې پرته له اجورې جبري او تحمیلي کار کول.

۴ـ د ازادو کارگرې اتحادیو د جوړښت څخه مخنیوی چې د چین د سیاسي نظام د اصولو خلاف دي.

۵ـ د صادراتي محصولاتو په تولید او وېش کې د زندانیانو له قوت او ځواک څخه ناوړه گټه اخېستنه.

٦ـ د ډیموکراسۍ د نهضت یا غورځنگ د فعالانو ټکول.

۷ـ د حکومت د اپوزیسیون ځینې غړي د عادلانه محاکمې پرته په زندان کې اچول.

۸ـ د تایوان هېواد د یو مستقل او ازاد ملک په صفت نه پېژندل او د تایوان استقلالیت ته درنښت نه کول.

۹ ـ په جزایي قوانینو کې د اعدام د سزا شاملول چې په نړۍ کې په ډېره لوړه کچه د اعدام سزا جریان لري.

تایوان د چین د سواحلو بهر په چین پورې مربوطه یوه جزیره ده چې په چین کې د کورنۍ جگړې له ختمېدو وروسته په ۱۹۴۹ میلادي کال چې کمونیستان په چین کې کامیاب شول،د کمونیست گوند مخالف چنایان چې د ملي گرایانو په نامه یادېدل تایوان ته وتښتېدل او د چین کمونیستانو خپل هېواد د چین د خلکو د جمهوریت په نامه یاد کړ او پایتخت یې پکینگ وټاکه.

په چین باندې د امریکا انتقاد د جیانگ زمین ( د وخت د جمهور رییس ) په دوران کې و چې ولې د چین له اړخه،ایران،پاکستان او شمالي کوریا ته د هستوي او اټومي وسلو ټکنالوژي لېږدول کېږي؟ خوچین دغه ادعا رد کړې ده.

د چین له خوا دا انتقاد په امریکایي لوري تپل کېده چې امریکا د تایوان جمهور رییس ته د امریکا د لیدنې په منظور وېزه ورکړه.

دا په داسې حال کې ده چې د چین او امریکا په منځ کې د دغې موضوع تړون له مخکې څخه لاسلیک شوی وو، چې د تایوان جمهور رېس ته به ویزه نه ورکوي.

د چین او امریکا اړیکې د تایوان د جمهوري ریاست د ټاکنو په مهال کړکیچنې شوې ځکه چین اخطار ورکړ چې خلک باید جمهور رېیس(لیتنگ ـ هویی)ته خپله رایه ورنکړي ځکه ممکن تایوان د چین څخه مسقل او ازاد هېواد اعلان کړي خو د چین دغه نظامي مانور د تایوان خلک تحریک او په قهر کړل او جمهور رېیس لیتنگ هویی ته یې رایه ورکړه.

دامریکا د متحده ایالاتو ستراتیژیک ملاتړي هېوادونه په اروپا کې انگلستان او په شرق میانه کې د اسرائیلو هېواد دی په لهذا لازمه ده چې د نوموړو هېواد ونو په هکله مختصر معلومات او د امریکا بهرنی سیاست د اسرائیلو او انگلستنان په وړاندې تشریح شي.

**د اسرائیل دبهرنی سیاست لنډه پېژندنه:**

اسرائیل د منځني ختیځ د اسیا په غرب کې موقعیت لري، رسمي نوم یې د اسرائیلو دولت او پایتخت یې بیت المقدس یا اورشیلم دی.

اسرائیل د مدیترانی د سیند په ختیځ ساحل کې موقعیت لري،په شمال کې د لبنان سره،په شمال ختیځ کې دسوریې سره،په ختیځ کې د اردن سره او په جنوب غربي کې د مصر سره پولې لري.

اسرائیل په ختیځ کې د اردن دسیند ساحل سره او په جنوب غربي کې د غزې د تراډې سره (نوارغزه) په څنگ کې پروت دی.

لومړنی هېواد دی چې، د یهودي نژادو خلکو څخه تشکیل شوی دی،د ۲۰۱۳ میلادي کال د نفوس شمېرنې له مخې،اسرائیل اته میلیونه یو پنځوس زره تنه نفوس لري،چې شپږ میلیونه یې یهودیان او ۱،٦ میلیونه نفوس یې اسرائیلي عرب تشکیلوي چې د اسرائیلي عربو ډېره فیصدې یې مسلمانان او نور پاتې فیصدې یې مسیحي او دروزي دي.

نور قومي لږکي یې عبارت دي له؛ماروني،سامري،ارمني او چرگسی څخه دي چې پخوانی پایتخت یې تل ابیب و چې د بهرنیو هېوادونو سفارت خونې تر اوسه په کې موقعیت لري.

خو ملل متحد تر اوسه د بیت المقدس پایتخت په رسمیت نه دی پېژندلی یواځې د امریکا متحده ایالاتو خپل پایتخت بیت المقدس ته انتقال کړ ( د دوشنبې ورځ د ثور ۱۳۹۷/۲۴)اسرائیل یو پرمختللی هېواد دی،د حکومت ډول یې پارلماني جمهوري دی، چمهور ریېس یې تشریفاتي مقام لري، د نوامبر په ۱۹۴۷/۲۹ میلادي کال کې ملل متحد د فلسطین هېواد رسما په دوه هېوادونو تقسیم کړ چې د اسرائیلو دولت او د فلسطین دولت په نامه یې یاد کړل.

د بیت المقدس د ښار اداره یې د ملل متحد تر نظارت لاندې پرېښوده چې یاده فیصله د اسرائیلو د صیهونیست رژیم له خوا د منلو وړ وګرځېده.

خو د فلسطین د مسلمانانو له خوا رد شوه او د سیمې د مسلمانانو عربو هېوادونو یاده طرحه په شدت رد کړه ،چې د ۱۹۴۷ میلادي کال د نوامبر ۳۰بیا د ۱۹۴۸ میلادي کال دمې تر ۱۴ نېټې پورې د یهودیانو او فلسطینانو ترمنځ د خونړیو جګړو سبب وګرځېده.

په پایله کې د مې په ۱۹۴۸/۱۴د فلسطین د قیمومیت دختم د تاریخ څخه چې د برتانیې تر قیمومیت لاندې وو، د اسرائیلو دولت د استقلا ل د منشور په اعلان سره خپل موجودیت ثابت کړ.

یوه ورځ وروسته له همدغه اعلان څخه د اسرائیلو ټولو عربي ګاونډیو ملکونو په اسرائیلو نظامي یرغل وکړ، چې بېرته له ماتې سره مخامخ شول.

وروسته د اسرائیلو او فلسطینیانو په منځ کې په مختلفو وختونو کې جګړې وشوې، چې بېلګه یې د ۱۹۴۸ کال جګړه،۱۹۵٦ جنګ ،۱۹٦۷ چې د شپږ ورځنې جګړې په نامه مشهوره ده،۱۹۷۳ چې د کیپور د ورځې د جنګ په نامه مشهوره دی دیادونې وړ دي.

اسرائیل د ملل متحد د سازمان رسمي غړی هېواد دی، د ۱۵۷ هېوادونو سره ډیپلوماتیکې اړیکې لري، ۳۲ هېوادونه یې په رسمیت نه پېژني، د درې ابراهیمې دینونو(اسلام،یهودیت،عیسویت)د مقدسو ځایونو کوربه هېواد دی، لومړی وزیر یې د دولت ریېس او پارلمان یې مقننه قوه یا قانون جوونکی نهاد دی، چې د کنسټ په نوم یادیږي.

په ۲۰۰۸ میلادي کال اسرائیل د کورني ناخالص تولید له نظره په نړۍ کې یوڅلوېښتم هېواد وو ،په منځني ختیځ کې اسرائیل د لوړو زده کړو د کیفیت د نقطې نظره په عالي درجه قرار لري.

د ژوند د امید اندازه او کچه یې په عالي درجه کې قرار لري، په سیمه کې د اسرائیلو د رسینو ازادي ساری نه لری.

**د اسرائیل لنډ تاریخ:**

د صیهونیزم د غورځنګ د جوړېدو سره چې په ۱۸۹۷ میلادي کال کې تشکیل شو او د بالفور د بیانې سره په ۱۹۱۷ میلادي کال د لومړي نړیوال جنګ په اخره کې او د عثماني ترکیې امپراطورۍ د سقوط وروسته،جامعه ملل د فلسطین قیمومیت د برتانیه هېواد ته ورکړ.

په همدې هدف چې په فلسطین کې د پخوا څخه د سیاسي،اقتصادي ، امنیتي شرایطو زمینه تاسیس کړي، چې د یهودیانو لپاره د منلو وړ وي.

له۱۹۰۴ تر ۱۹۱۴ میلادي کال چې د صیهونیزم د غورځنګ د جوړېښت وخت وو، د ګډوالۍ د وهم بحران یې په منځني ختیځ کې منځته راوړ.

په ۱۹۱۷ میلادي کال د برتانیې د بهرنیو چارو وزیر ارتوربالفور یوه مشهوره اعلامیه نشر کړه، چې د فلسطین هېواد یې د یهودو لپاره یو ځانګړی ملک بللی وو.

په ۱۹۲۰ میلادي کال فلسطین د جامعه ملل د غړي په صفت د برتانیې تر قیمومیت لاندې ومنل شو .

یهودیانو د ګډوالۍ دریېم بحران له ۱۹۱۹ تر ۱۹۲۳ میلادي کال پورې دوام وکړ د کډوالۍ څلورم بحران یې له ۱۹۲۴ څخه ۱۹۲۹ میلادي کال پورې دوام درلود.

د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د یهودیانو شمېر په فلسطین کې شپږ سوه زره تنو ته رسېده.

په ۱۹۳۹ میلادي کال کې برتانیې د سپین خط یا (نامه سفید)تر عنوان لاندې یوه اعلامیه نشر کړه ؛ چې په دې اعلامیه کې غوښتنه شوې وه چې د یهودیانو راتګ د فلسطین هېواد ته نور منع دی اوهم په فلسطین کې د یهودیانو له خوا د ملکیتونو او ځمکو د پلورلو څخه ممانعت شوی وو،دا ځکه چې یهودیانو په همدغه کلونو کې د غریبو فلسطینیانو څخه تر شل فیصده د فلسطین ځمکه د ډېر لوړ قیمت په مقابل پلورلې وه ،یهودیانو د سپین لیک اعلامیه وغندله او د بالفور د اعلامې په خلاف یې یو عمل وګاڼه.

خو برتانیې د سپین خط پالیسي د قیمومیت تر اخره وخته عملي کړه، ملل متحد د بیت المقدس ساحه تر خپل نظارت لاندې ځکه اعلان کړې وه، چې د یهودیانو او د فلسطین د مبارزینو د جګړې څخه مخنیوی شوی وي.

په اسرائیلو کې سیاسي ګوندونه، د ژوند څرنګوالی او د سیاست دریځ ټاکي، سیاسي ګوندونه په اسرائیلو کې د اسرائیل د دولت تر تشکیل مخکې تاسیس شوي وو، د یوه سیاسي ګوند د مشروعیت لپاره دا شرط حتمي دي چې؛ د یهودي دولت د تشکیل سره باید موافق وي، لومړی وزیر د خلکو په مستقیمه رایه ټاکل کیږي.

حکومت په پارلمان کې داکثریت غړو په خپلولو سره کابینه تشکیلولی شي.

جمهور رییس د پارلمان له خوا په مستقیم ډول ټاکل کیږي چې دوره یې پنځه کاله ده او یو تشریفاتي چوکۍ ده.

**اول : د اسرائیلو مهم سیاسي ګوندونه:**

**۱ـ د کارګر ګوند:**

په ۱۹۳۰ میلادي کال د دوو کارګري ګوندونه د ائتلاف څخه تشکیل شو، چې له ۱۹۴۸ څخه ۱۹۷۷ کلونو پورې حاکم ګوند وو، شیمون پریز او اسحاق رابین یې مشهور غړي وو. نېشنلیستي تمایل په کارګر ګوند کې لږ لېدل کیږي دا ګوند د دین اوسیاست بېلوالی غواړي او یو سیکولر ګوند دی.

**۲ـ د لیکود ګوند:**

یو نېشنلیست او بنسټپاله ګوند دی مخکې یې د هاروت یا ازادۍ په نوم فعالیت درلود، چې له ۱۹۲۰ تر ۱۹۳۰ میلادي کال په روسیه کې تاسیس شوی دی، نن ورځ د فلسطین د دولت د جوړېښت سره یواځې د پنځوس فیصده سره موافق دی، چې په باختري کرانه یا غربي ساحل کې تشکیل شي.

**۳ـ مفدال ګوند:**

په ۱۹۵۵ میلادي کال تشکیل شو چې؛ د دوه ګوندونو د یوالي څخه منځته راغلی، ملي مذهبي تمایل لري په ډېرو دولتونو کې د ائتلاف په ډول شتون لري.

**۴ـ شاس ګوند:**

په ۱۹۸۴ میلادي کال کې تاسیس شو، یو مذهبي حزب دی، د یهودي دین د احکامو او قوانینو د تطبیق په لټه کې دی.

**۵ـ د مرتص ګوند:**

د اویل شارون په مټ تاسیس شوی دی.

**عربي ګوندونه:**

په اسرائیلو کې درې عربي ګوندونه فعالیت لري، چې د غړو شمېر یې ډېر کم دی.

**دوهم: د اسرائیلو بهرنی سیاست:**

د اسرائیلو هېواد د ملل متحد د سازمان غړی، تر اوسه یو سلو شپیته هېوادونو د اسرائیلو دولت په رسمیت پېژندلی دی او ډیپلوماتیکې اړیکې ورسره لري، د ملل متحد دوه دېرش غړي هېوادونه د اسرائیلو دولت نه په رسمیت پېژني او نه ورسره ډیپوماتیکې اړیکې لري چې نوموړي هېوادونه په لاندې ډول دي.

افغانستان،الجزایز،عراق،بنګلدیش،بحرین،بوتان،بروني،جیبوتي،اندونیزیا،ناجریا،شمالي کوریا،کویټ،لبنان،لبیا،مالزیا،مالي،مراکش،عمان،قطر،پاکستان،سومالی،سوډان،سعودي عربستان،سوریه،تونس،عربي متحده امارات او یمن .

همدا رنګه کېوبا،ګینا،چاد او ایران پس له څه وخته د اسرائیلو د د ولت د رسمیت پېژندلو څخه انکار وکړ،د فلسطین او اسرائیلو کړکیچ چې د شلمې پېړۍ په نیمایي کې یې زور واخېست یوه مهمه مسئله ده.

د یهودي مختلفونظامي ورته ډلو له خوا په فلسطین باندې یرغل کېږي، چې په غیر نظامي فلسطینیانو حمله په ځانګړي ډول په ماشومانو او ښځو باندې د بشریت ضد عمل دی او همدا رنګه د فلسطینیانو د ملکیتونو او کورنو ویجاړول او جبري ګډوالۍ ته اړ کول په کې شامل دي.

امریکا د اسرائیلو اساسي ملاتړی هېواد دی، چې د ۱۹۷۵ میلادي کال راهیسې درې میلیارده ډالر کلنۍ مرسته ورسره کوي، امریکا په نظامي اقتصادي او سیاسي چارو کې د اسرائیلو د دولت ملاتړ کوونکی هېواد دی.

د دې ملاتړ یو علت دا دی، چې د امریکا سیاسي اقتصادي شخصیتونه ټول یهودي نژاد لري نو ځکه د اسرائیلو د یهودي دولت د جوړښت سره علاقه لري.

اسرائیل په اوس وخت کې خپل ټیکنالوژیکي عالي صادرات امریکا،چین او هند ته صادروي.

په اسرائیلو کې قوانین د ډیموکراسۍ او سیکولریزم پر بنیاد ولاړ دي، چې په منځني ختیځ کې لومړنۍ درجه هېواد ګڼل کیږي.

خو د اسرائیلو دولت همدغه ازادي د فلسطین په اشغال شوې خاوره کې خلکو ته نه ورکوي آن دا چې عربي ژورنالیستان په مرګ ګواښوي ترڅو حقیقت نشر نه کړي.

د ټولو فلسطینۍ ورځپاڼو او رسنیو متن باید د چاپ څخه مخکې د اسرائیلو د مقاماتو له خوا کنټرول او وروسته نشر ته وسپارل شي چې دا عمل د ازادۍ د بیان په خلاف یو عمل دی.

د اسرائیلو په مذهب کې د نارینه لپاره څو ودونه منع دي،همجنس ګرایي په کې جواز لري که څه هم ځینې مذهبي ډلې د همجنس ګرایی سره په مخالفت کې دي.

په اسرائیلو کې د اعدام جزا شتون نه لري، د مختلفو ادیانو او فرهنګونو پلویان په کې ژوند کوي.

په اسرئیلو کې دوه ډوله نژاد پرستي شتون لر،ي قوم پالنه د یهودیانو له خوا چې د عربو په خلاف یې خپله کړې ده او د مختلفو یهودي ډلو ترمنځ قومي تبعیض دی، چې د دې جملې څخه د ایتوپیایي یهودیانو په ضد،د هندي یهودیانو په ضد، د میزراحي یهودیانو په ضد تبعیض لري.

په یهودي متعصبو خلکو کې جینسیتي تبعیض هم شتون لري، چې د ښځو لپاره په لوړ اواز دعا ویل جواز نه لري، اسرائیلې ښځې په مذهبي ځایونو کې د لنډو لمنو د کالیو د اغوستلو څخه منع شوي دي.

عربو ته جوازنشته چې د اسرائیلو ملکیت وپلوري، د اسرئیلو دولت په منځني ختیځ کې تر ټولو هېوادونو خپل نظامي قوت لوړ ګڼي ،دا ځکه چې اوس د اټوم بم د جوړولو وړتیا لري او یو تجربه لرونکې عنبتلې اردو لري.

اسرائیل هر کال د څو میلیاردو ډالرو په ارزښت خپله نظامي سلاح نورو هېوادنو ته صادروي ،د تعجب خبره داده چې اسرائیلې سلاح د امریکا متحده ایالاتو په ګډون هند او چین ته هر کال صادریږي.

اسرائیلو د ۱۹۵۰ لسیزې راهیسې د اټوم بم درلود، خو دولت یې تر اوسه د ابهام سیاست مخ ته وړي.

یعنې د اټومي اسلحې، د درلودلو څخه انکار نه کوي او نه یې هم منلې ده، د اټومي سلاح د منع او پراختیا تړون یې هیڅ وخت لاسلیک کړی نه دی.

لومړي ځل لپاره په ۱۹۸٦ میلادي کال یوه اسرائیلي هستوي ټکنیشن د برتانیه سنډې ټایم ورځپاڼې ته افشا کړ چې اسرائیل اټومي سرګلوله لري.

دفاعي اوونیزه لیکي چې؛ اسرائیل شپږم هستوي قدرت دی، یادې اوونیزې ادعا کړې ده چې اسرائیل له سلو څخه تر درې سوه پورې اټومی سرګلولې لري چې د برتانیه سره مساوي سرګلولې دي.

**درېیم:موساد یا د اسرائیلو استخباراتي دستګاه:**

یاده دستګاه د نړۍ د پرمختللو او پیچلې استخباراتي دستګاوو له جملې څخه ده.[۱۲۵]

په ۱۹۷۰ میلادي کال کې چې صدام حسین په عربي نړۍ کې د اسرائیلو ستر دښمن وو ، داسې احساس کېده چې صدام حسین به لومړنی کس وي، چې د اټوم بم ته به لاس رسی ولري،عراق د فرانسې څخه یو اټومي ریاکټر چې ۷۰ مېګا واټه یې قدرت وو، د اوسیریس(Osiris) په نامه یې پلورلی وو، چې د وخت د سترو اټومي ریکټرونو له جملې څخه شمېرل کېده.

دوهم ریاکټر یې د (I S IS) په نامه یادیده، عراق د فرانسې څخه پلورلی وو، چې د نصب کولو ځای یې د بغداد سره نږدې ټاکل شوی وو،

[۱۲۵] ډونالډ،پاین،موساد د اسرائیلو څارګره اداره،ژباړه ن نیازی،ختیځ خپرندویه ټولنه،ننګرهار،۱۳۹۳،ص،۲٦۵-۲۷۱.

یاد ریاکټر دولس کیلو ګرامه یورانیم درلودل، چې د دریو څخه تر څلورو اټومي بمونو د جوړښت وړتیا یې درلوده.

یاد تړون د عراق او فرانسې ترمنځ په ۱۹۷۶ م کال کې لاسلیک شو.

عراق ژمن وو چې؛ فرانسې ته به په بدل کې تېل او نفت ورکوي او هم به فرانسوی سلاح د فرانسې څخه پلوري.

په دې وخت کې فرانسې تېلو ته شدیده اړتیا درلوده، خو اسرئیل په دې واقعیت پوه شوي وو چې صدام حسین د اټومي بم جوړول غواړي، چې لومړنی هدف به یې اسرائیل وي.

په همدې دلیل د اسرائیلو استخباراتي دستګاه یا موساد او د بهرنیو چارو وزارت د عراق د اټومي تاسیساتو په هکله جدي پلټنه پیل کړه.

په فرانسه کې د اسرائیلو او یهودیانو اټوم پوهان او تخنیکي همکاران موجود وو ،چې د فرانسویانو سره په فني او تخنیکي چارو کې یې مرسته کوله،چې دواړه هېوادونه(اسرائیل او فرانسه) نږدې ملګري وو.

خو کله چې جمهور رېیس ډیکال واک ته ورسېد، د فرانسې په پالیسی کې بدلون رامنځته شو او د اسرائیلو سره په مسلکي برخه کې مرسته او همکاري له منځه لاړه.

خو بیا هم د دوی د ځینو ساینسپوهانو او تخنیکي همکارانو ترمنځ ملګرتیا په خپل حال پاتې وه.

د دې ملګري توب پایله دا شوه چې د موساد تخنیکي ګروپ د دې لارې د فرانسې او عراق ترمنځ د تړون په اړه ټول معلومات ترلاسه کړل.

په بغداد کې د موساد جاسوسانو د اټومي تاسیساتو په اړه په ښه توګه تل البیب ته معلومات ورکول.

هغه سیمې چې اټومي کارونو په کې جریان درلود د عراق مرکز بغداد څخه څوارلس میله لرې پرته سیمه وه ،د عربانو په ادارو کې داخلېدل او په اړه یې معلومات راټولول د موساد د لومړیو موخو څخه وو.

د بغداد سره دوی ځانګړې اړیکې درلودلې ،د بغداد سیاسي کړیو ډېر وخت د صدام حسین سره په دا خبره مخالف وو ،چې هغه غوښتل عراق یو اټومي هېواد جوړ کړي.

خو ملګرو یې کوښښ کاوه چې په هره ممکنه لاره چې وي باید صدام حسین د دې کار څخه منع کړي.

په ۱۹۷۹ م کال فرانسې دوه ریاکټرونه د عراق لپاره جوړ کړل، چې تموز یو او تموز دوه په نومونو یادیدل.

یاد ریاکټرونه باید د اپریل په اتمه د شپې په تیاره کې په بار وړونکو موټر کې بار شي او د مرسیلز په نوم ځای ته ورسول شي، چېرې چې بحري بېړۍ به ورته چمتو ولاړه وي او عراق ته به یې په ډېر مخفي ډول لیږدوي.

د دې معلوماتو په رڼا کې د موساد جاسوسان دوه ورځې مخکې فابریکې ته داخل شوي وو،چېرې چې یاد دوه ریاکټرونه د وړلو لپاره چمتو شوي پراته خو موساد جاسوسانو د بمونو په چاودنې سره ټولې فابریکې ته چاودنه ورکړه او دواړه ریاکټرونه یې له منځه یوړل.

د فرانسې پولیسو د څېړنو وروسته ثابته کړه، چې دا کار د موساد د جاسوسانو پرته بل څوک نه شي ترسره کولای، وروسته د موساد یوه جاسوس دا خبره افشا کړه چې یاد عملیات د موساد له خوا د چپ عملیاتو په نامه ترسره شول.

د موساد درې تنه جاسوسان درې ورځې مخکې پاریس ته راغلي وو، چې هر یو جاسوس په بېلابېل هوټل کې ځای پرځای شوی وو.

د ځان سره یې فرانسوي پېژند پاڼې درلودلې او ټولټال اووه تنه وو چې د فابریکې د اوبو د سیستم له لارې یادې فابریکې ته داخل شوي وو ،دغو کسانو لومړی د خبرداري سیستم شنډ کړ ، دګودام کیلیانې ورسره موجودې وې او ریاکټرونه یې د بارودو په مټ ویجاړ کړل.

وروسته له دې جاسوسان د یوې کوچنۍ بېړۍ په واسطه د اسرائیلو خوا ته وخوځېدل او له ځانه یې غلطې پېژند پاڼې په سیمه کې پرېښودلې.

په ۱۹۸۰ م کال کې د دوبي په موسم يو ۴۸ کلن مصري اټوم پوه پروفيسور يحيى المشهد چې مسخه شوی جسد يې د پاريس په يوه هوټل کې پيدا شو، دغه هوټل د فيشن ايبل په نوم ياديږي.

ياد اټوم پوه په چاقو او د لرګيو په واسطه سره وژل شوی وو،نوموړی وژل شوی کس د يوې کوچنۍ اټومي فابريکې ساينس پوه وو، چې فرانسې ته د يوه اټومي کنفرانس لپاره راغلی و، خو اصلي دنده يې د عراق د دولت سره درلودله.

د فرانسې هېواد د ياد ساينسپوه مرګ تر څلورو ورځو پورې پټ ساتلی وو ،خو اسرائيلي ورځپاڼو افشاکړه او په تمسخر امېزه ډول يې ليکلي وو،چې نوموړی وژل شوی شخص په عربو کې ناپېژندل شوی اټوم پوه وو او په اټومي برخه کې يې معلومات او مهارت درلود. د ده وژنه به د عراق په اټومي اسلحه جوړولو کې دوه کاله ځنډ راولي،فرانسوي پوليسو وروسته کشف کړه چې دا کار د موساد د جاسوسانو عمل دی، چې د عراق د اټومي پروګرام د مخنيوي په منظور يې ترسره کړی دی.

په ۱۹۸۰ م کال د مني په موسم کې دوه اسرائيلي جېټ الوتکو د بغداد سره نږدې د تموز اټومي تحقيقاتي مرکز بمبار کړ، په الوتکو باندې د ايران د دولت د بېرغ نښه تر سترګو کېده ترڅو عراق په ايران باندې شکمن شي.[۱۲۶]

موساد د خپلو موخو د لاسته راوړلو لپاره د هيڅ هېواد د قوانينو پروا نه ده کړې، تردې پورې چې په ډېره مکارۍ سره يې د دواړو هېوادونو پوځيان يرغمل نيولي دي او د هغوی د منګلو يې خپل يهوديان زندانيان خوشې کړي دي.

په اسيا او افريقا کې د اسرائيلو سفارتونه د جاسوسۍ د دندې د ترسره کولولپاره موظف شوي دي،په عربي هېوادونو کې چې سفارتونه نه لري دا چارې د نورو خطرناکو لارو په مرسته ترسره کوي.

د څو عربي هېوادونو د نظام په رانسکورولو او د اسرائيلو او عربو په څو جنګونو کې د موساد رول او نقش په لومړۍ درجه وو.

---

[۱۲۶] ډونالډ،پاين،موساد د اسرائيلو څارګره اداره،ژباړه ن نيازی،ختيځ خپرندويه ټولنه،ننګرهار،۱۳۹۳،ص،۲۷۱ـ۲۷۵.

کله چې اسرائیلو ته د اټوم بم د جوړولو لپاره یورانیمو ته اړیتا پیدا شوه، موساد د اروپا او امریکا هېوادونو څخه ترلاسه کړل.

د یادو هېوادونو د انکار سره یې دا مواد د استخباراتو له لارې خپل کړل،د اسرائیلو څلورو خواو ته عربي هېوادونه موقعیت لري.

اسرائیلودخپلو گاونډیو هېوادونو لکه،سوریه،لبنان،اردن او فلسطین څخه ډېرې ځمکې عصب کړي دي چې په همدې علت ټول عربي هېوادونه داسرائیولو سره دښمني لری.

موساد د عراق هېواد د اټومي بم د له منځه وړلو په منظور په فرانسه کې استخباراتي عملیات وکړل ،چې داسې پیچلي عملیات د نورو استخباراتي دستگاوو لپاره د ستونزو ډک کار دی.

موساد د یهودیانو یو ستر او مشهور قاتل چې یهودیان به یې په دوهم نړیواله جگړه کې په کره کې سوځول (جنرال اډولف ایشمن)نومېده ،چې ارجنټاین ته په ډېرمخفي شکل وروسته له دوهم نړیوال جنگ څخه تښتېدلی وو.

اسرائیلي کمانډو په ارجنټاین کې دستگیر گړ او اسرئیلو ته یې راوست او په ۱۹۶۲ کال یې د یهودیانو د قتل عام په جرم اعدام کړ.[۱۲۷]

د موساد د کامیابۍ راز په دې کې نغښتی دی، چې د نړۍ په هر گوټ کې یهودیان شتون ولري د موساد سره همکاری کوي.

همدغه دلیل دی چې د موساد د موخو څخه یوه دا ده چې ټولو یهودیانو ته د نړۍ په هر گوټ کې مرسته او همکاري ورسوي.

موساد د خپلو موخو د لاسته راوړلو په منظور د هرډول ترور او وحشت څخه گټه اخلي.

د یهودو د اهدافو د لاسته راوړلو په خاطر دوه نړیوال جنگونه په کار واچول شول ،چې په پایله کې یې اتیا میلیونه انسانان ووژل شول او پنځوس میلیونه نور معیوب شول.

[۱۲۷] ډونالډ،پاین،موساد د اسرائیلو څارگره اداره،ژباړه ن نیازی،ختیځ خپرندویه ټولنه،ننگرهار،۱۳۹۳،ص،۲۴ـ۲۵.

موساد په ۱۹۲۹ م کال کې په جرمني کې تاسیس شو، چې په دې وخت کې د زیورچ په نامه د یهودیانو یو کوچنی پارلمان هم تاسیس شوی وو ،د همدغه پارلمان په تشکیل کې د موساد اداره هم جوړه شوه.

په هغه وخت کې یې دوه هدفونه څارل،یو یې د یهودیانو د حقوقو ساتنه او بل په فلسطین کې د یهودیانو سره مرسته کول وو.

اسرائیل په موساد سربېره نورې استخباراتی دستګاوې هم لري لکه شین بټ ،نظامي استخباراتي شبکه،امان او داسې نور.

د یوې لسیزې راهیسې د روسیې په پخوانیو جمهوریتونو او د شرقي اروپا په هېوادونو کې د ځوانو نجونو د استخدام لپاره داسې اعلانونه نشر کېږي چې د هوټلونو د کارکوونکو، نڅا،د کمپنیو د اعلانونو لپاره موډل په پوره معاش په دنده ګومارل کېږي.

یادې نجونې چې زیاتې ښکلې او تر شلو کلونو یې عمر لږ وي ټولې د اسرائیلو هېواد ته استول کېږي چې هلته یې دعربي ژبې د زده کړې، د پټو فلمونو د ثبت د زده کړې ، د اواز د ثبت زده کړه او نورو استخباراتي تکتیکونو د زده کړې لپاره استخدام کېږي،وروسته یې د نړۍ ډېرو هېوادونو ته د جاسوسۍ په موخه لېږي.

هغه نجونې چې انکار کوي تر سختې جزا او وهلو ټکولو لاندې راځي، هغه چې استخدام کېږي د نړۍ په لویو هوټلونو کې د تشریفاتو مامور،نڅا، د د فتر سکرتر او د نورو فحاشي کارونو په موخه په دنده ګومارل کېږي.

تر نورو استخباراتي ادارو د موساد ونډه د نجونو په استخدام کې ډېره ده په دې سره اسرائیل د نړۍ د قاچاق او فحشا لومړنی هېواد دی.

ډیپلوماسي د ملتونو په منځ کې د اړیکو د تامین او د دغو اړیکو په ترڅ کې د مهارت څخه استفاده کولو ته ډیپلوماسي وایئ.

او یا په بل عبارت د ملتونو په منځ کې د اړیکو هنر دی او یا د کارمندانو په مټ د هېواد په بهر کې د مصالحو مدیریت کولو ته ډیپلوماسي وایي.

ډیپلوماسي دوه مفهومه لري، یو مفهوم یې محدود دی چې د ملتونو او دولتونو په منځ کې خبرې اترې دي،بل مفهوم یې پراخ دی چې د ټولو اړیکو شتون دی، د ملتونو، عمومي سازمانونو او نړیوالو هېئتونو سره.

ډیپلوماسي دوې طریقې لري، یوه یې مستقیمه چې د هېوادونو مشران په خپلو کې پرته له درېیم نفر سره ویني او غیر مستقیمه ډیپلوماسي هغه ده چې د سیاسي قرارداد له مخې یو درېیم ګړی شخص باید ډیپلوماسي عملي کړي.

**څلورم: ملي ګټې:**

د اړتیاو،خنډونو،موخو او وسایلو څخه چې د یوه هېواد له خوا ټاکل کېږي په لاندې ډول تشریح کېږي؛

۱ـ د ارضي تمامیت ساتنه.

۲ـ ملي امنیت.

۳ـ ملي رفاه او هوساینه.

۴ـ ملي حیثیت یا پرستج.

۵ـ د یوه ملت او دولت لپاره د قدرت او اقتدار لاسته راوړل.

مورګنټا په دې آند دی چې؛ په نړۍ که ټول خلک د قدرت د کسب،ساتلو،ډېروالي او تداوم په لټه کې دي ،د هېوادونو په بهرني سیاست کې باید ملي ګټې په پام کې ونیول شي.

د اسرائیلو له نظره ډیپلوماسي په خبرو اترو کې توانایي او د نورو سره همغږي کول، د خپلو ډېرو ګټو د لاسته راوړولو او د لږ تر لږه زیان په منلو سره ډیپلوماسي ورته ویل کېږي.

د اسرائیلو بهرنی سیاست د سیاسي،اقتصادي او نظامي موخو لاسته راوړل او د امپریالیستي ځواکونو سر همغږي کېدل دي،ګټې یې د عربي هېوادونو د اقتصادي تحریم څخه خلاصوالی او د خپلو توکو د پلور لپاره د مارکېټ پیدا کول دي.

د یهودیانو جذب د نړۍ څخه، د امنیت تامین،د بهرني سیاست زېربنا جوړوي.

بن گورین په ۱۹۵۵ میلادي کال کې ویلي دي؛ چې امنیت یعنې د اسرائیلو ځای پر ځای کول په هغو خالي سیمو کې چې څوک په کې ژوند نه کوي، د فلسطینیانو شړل ، د صنایعو ایجاد او د کرنې پراخوالی.

امنیت یعنې د هوایي،ځمکني او بحري ځواک لوړوالی دی، ترڅو اسرائیل په یو ستر قدرت بدل شي.

د امنیت لپاره اقتصادي اسقلال اړین جز دی ، د اسرائیلو سوله د سینا د دښتې په هکله د مصر له هېواد سره او هم د اسلو هوکړه لیک د اردن سره، د اسرائیلو د بهرني سیاست کامیابه بېلگې دي.

اسرئیل غواړي چې د جولان لوړې غونډۍ په خپله خاوره کې د قانون له لارې شاملې کړي.

**د اسرائیلو د دولت اهداف یا موخې:**

۱ـ بین المللي مشروعیت ته رسېدل، دفاع او ساتنه یې لکه څنگه چې په ۱۹۷۱ میلادي کال کې انگلیسي بالفور دصیهونیزم د داعې سره هوکړه وښوده.

۲ـ د امنیت په بهانه د اسرائیلو د ټولو کړنو تصدیق کول، که هغه قانوني او یا غیر قانوني وي.

په ۱۹۸۱ میلادي کال کې د عراق اټومي تاسیسات د اسرائیلو له خوا بمبار شول، ترڅو په بغداد بین المللي فشارونه راولي، خو د اسرائیلو دا عمل د اسرائیلو په نظر یو مثبت اقدام دی او د بین المللي حقوقو له نظره د یو بهرني هېواد په حاکمیت باندې تېری دی.

کوچني ملتونه بهرنی سیاست نه لري، خو دفاعي سیاست لري، دا د یوه یهود مقوله ده چې بن گورین نومیږي او د اسرائیلو په ټولو اقداماتو باندې د مثبت عمل حکم کوي.

وایزرمن د امریکا د وخت جمهور رییس ،د بالفور طرحه یو چوکاټ بولي، چې د ده په آند باید په خپلو گوښښونو سره دا چوکاټ ډک کړو.

د وایزرمن  هدف دا دی، چې د اسرائیلو د دولت جوړښت، حاکمیت او استقلال باید په نړیواله سطحه د یوه ازاد هېواد په حیث ومنل شي،چې د اسرائیلو اساسي موخه ده.

د جوړښت څخه وروسته د اسرائیلو خپلې اړیکې د امریکا غربي المان،فرانسه او وروسته له ۱۹۵٦ جنګ څخه د ترکیې ، حبشي او ایران سره خپلې ډیپلو ماتیکې اړیکې ټینګې کړې او تلاش یې وکړ څو په ناټو کې غړیتوب واخلي.

اسرائیل د ستورو د جنګ د مدافعانو له جملې څخه د امریکا په بهرني سیاست کې شامل دی.

**پنځم: د اسرائیلو د بهرني سیاست اصول په لاندې ډول تشریح کېږي؛**[۱۲۸]

۱ـ د عربو له محاصرې څخه وتل، د اروپایي اتحادیې د ګمرکي معافیت جذب،د امریکا سره اړیکې، په افریقایي او اسیایي هېوادونو کې دخپلو تولیداتو او اسلحې لپاره د مارکېټ پیدا کول.

۲ـ د نړۍ د یهودیانو سره اړیکې ټینګول.

۳ـ د سلاح سوداګري، چې لومړی ځل اسرائیلو خپله درنه اسلحه د بهرهېوادونوڅخه په لاس راوړله چې د المان،انګلیستان او امریکې څخه تمویل کېده.خو وروسته د ۱۹٦۷ م کال د جنګ څخه سرائیل په اسلحه صادرونکی هېواد بدل شو.

۴ ـ د عربو او اسرائیلو په جګړو کې صیهونیستیانو د خبرو اترو لاره رد کړه ،یوازې د امنیت او د پر امنه سرحداتو تر نامه لاندې خپل سیاست مخ ته بیایي.

۵ ـ سیاسي ګوندونه په کورني او بهرني سیاست کې ستر رول لري، ځکه مخکې له دې چې د اسرائیلو دولت تشکیل شي، همدغه ګوندونه وو چې د کدرونو په روزنه کې یې اساسي رول درلود. ترکیه او اسرائیل په سیمه کې غواړي چې د قدرت یوه نمونه نظام ولري، دواړه هېوادونه غواړي چې ټینګې اقتصادي او نظامي اړیکې ولري.
دواړه هېوادونه په سیمه کې د اسلحې ازموینه او زمایښت په لاس کې لري، په سیمه کې دواړه هېوادونه پر نورو هېوادونو نظامي برتري لري،نظامي ستراتیژیک تړون یې د شوروي د وېشلو وروسته لاسلیک کړی دی.[۱۲۹]

[۱۲۸] عبدالرحمن،حمید عبدالرحمن،نفوذ اسرائیل در افریقا وبازتاب آن بر امنیت ملي ارا،ترجمه،سید نعمت الله قادري،فصل نامه ،مطالعات افریقا،سال هشت ، شماره هفت،۱۳۸۲.

[۱۲۹] هینبوش،ریموند،الویشس واحتشامي،انوشیروان ، سیاست خارجی کشوهای خاوری میانه،ترجمه،علی گل محمدی،اتشارات،پژوهش کده مطالعات رهبردی،تهران،۱۳۸۲.

اسرائيل د ترکيې له لارې غواړي چې د منځنۍ اسيا سره اړيکې ټينګې کړي.
روسيه د اسرائيلو د پراختيا غوښتنې د سياست مخالفه ده ،چې په ايران او سوريه کې ياد تحرکات لري.
اسرائيل د روسيې د نفوذ په وړاندې خنډ دی، چې په منځني ختيځ کې خپل نفوذ ته پراختيا ورکړي.
چين د اسرائيلو سره اړيکې په دې شرط اړوندې بولي، چې د امريکا او چين سياسي روابط په کومه کچه کې شتون لري؟يعنې دا چې په هره اندازه چې د چين او امريکا اړيکې نږدې وي، اسرائيل هم د چين سره په همغه تناسب خپل روابط تامينوي.[۱۳۰]
امريکا د اسرائيلو څخه د چين د مهارولو لپاره د يوې وسيلې په صفت ګټه اخلي،د اسرائيلو خپلې موخې د چين په هکله داسې دي چې چين د شرقي اسيا د هېوادونو لپاره يوه دروازه بولي.
اسرائيل د چين او امريکا د اسلحې د پلورلو څخه د توازن په منظور مخنيوی کوي.
د مصر ، سوريې،لبنان، فلسطين،ايران په هکله ياد سياست تعقيبوي،خو چين د ايران د هستوي پروګرام ملاتړ کوي، خو اسرائيل بيا چين ، هندوستان او امريکا ته درنه اسلحه واردوي چې ارزښت يې ميلياردونو ډالرو ته رسيږي.[۱۳۱]
د افريقايي هېوادونو سره اسرائيل د ملل متحد د پرېکړو د مثبتې پايلې په منظور د افريقايي هېوادونو د رايو څخه په خپله ګټه کار اخلي، په همدې خاطر اسرائيل د ځينو افريقايي هېوادونو سره نېکې اړيکې پالي.

د بېلګې په ډول روغتيايي او کرنيزې مرستې ورلېږي، پانګوالي په يادو هېوادونو کې سرته رسوي او د اسرائيلي اسلحو د پلورلو لپاره يې يو مناسب مارکېټ دی.

د ځينو يهودي نژاده خلکو شتون په افريقا کې اسرائيلو ته دا زمينه برابره کړې چې د اته څلوېښت افريقايي هېوادونو سره اوس اړيکې لري.

د نظامي زده کړو ، استخباراتي او فني مرسته او د اسلحې په پلورلو سره اسرائيل غواړي چې په سور سيند يا دريا سرخ باندې تسلط ډېر کړي،ترڅو د عربو له احتمالي محاصرې څخه خلاص شي او هم په سور سيند کې د بېړۍ چلولو د صنعت څخه استفاده وکړي او يو شمېر هغو غورځنګونو چې

[۱۳۰] هيلر،مارک،تداوم وتغير در سياست امنيتی اسرائيل،ترجمه،سيد جمال حسينی، موسسه مطالعات انديشه سازان نور،تهران.
[۱۳۱] زيبايی،مهدی وعبدالحی،اسماعيل،براورد ستراتيژيک اسرائيل،انتشارات موسسه فرهنگی مطالعات وتحقيقاتي بين المللی ابرار معاصر،تهران،۱۳۸۱،جلد اول.

د غرب د مفکورې خلاف دي د همدغه سره سیند له لارې یاد غورځنگونه مهار کړي، د بېلگې په ډول د سودان هېواد.[۱۳۲]

اسرائیل دا تلاش لري چې د ایران د نظامي شتون څخه په سوریه کې مخنیوی وکړي،اسرائیل د عراقي کردانو سره په مخفي تماس کې دي، ترڅو د کردانو یو مستقل هېواد چې غیر عربي هېواد دی، د سوریې او اسرائیلو سره هم سرحد تاسیس کړي چې د سوریې سره په مخالفت کې قرار ولري ،ترڅو اسرائیل د سوریې په وړاندې یوه د خنډ وسیله وي.

په اوسني حالت کې امریکا د سوریې د کردانو د اردو د تشکیل سره چې د اسرائیلو سره په سرحد کې قرار لري، د همدغې موخې لپاره امریکا نظامي مرسته ورسره کوي.

اسرائیل د ایران او سوریې په وړاندې د عربستان د هېواد څخه په خپله گټه استفاده کوي، ترڅو د اسرائیلو او ترکیې د اړیکو اهمیت لږ شي.[۱۳۳]

د جنوبي سوډان څخه د اسرئیلو هېواد د مصر او سوډان په راتلوونکي سرحدي اختلافونو کې او هم د اوبو پر سر د مصر ،سوډان او حبشې په منځ کې اسرائیل غواړي اختلاف پیدا کړي چې سوډان په دې لوبه کې د اسرائیلو په گټه رول لوبوي، ترڅو د مصر لپاره یو جنجال جوړ کړي او په راتلوونکي کې د اسرائیلو په سرحدي سیمه کې یو غیر عربي نوی هېواد تشکیل شي.[۱۳٤]

د دوهم نړیوال جنگ څخه وروسته فرانسې او المان نېکې اړیکې درلودې د فرانسې لپاره ملي اهداف د یوې مستقلې اروپا او د المان لپاره د دواړو جرمني هېوادونو یوالی او وحدت ملي اهداف وو چې فرانسې او المان په یادو اهدافو توافق سره درلود.

خو دا هم ممکنه وه که هریو یاد هېواد خپلې ټاکلې موخې ته ورسېږي د مقابل هېواد تعهد ته به خدای په اماني وایي،دا ځکه چې د المان دیوالي په صورت کې دا له امکان لرې وه چې جرمني هېواد به د فرانسې اقتدار تر المان لوړ مني.[۱۳۵]

[۱۳۲] جعفري والداني،اصغر،اسرائیل وحوزه دریا سرخ،فصلنامه مطالعات خاوری میانه،سال پنج،شماره شانزده،۱۳۷۷.

[۱۳۳] ملکي، محمد رضا،روابط ترکیه واسرائیل واثارآن در اسیا مرکزی وقفقاز،فصلنامه مطالعات اسیا مرکزی وقفقاز،شماره چهل هفت،۱۳۷۷.

[۱۳٤] جورج آنری،سوتر،اتحاد نامطمئن روابط سیاسی ستراتیژیک فرانسه والمان(۱۹۵۴ـ۱۹۹٦)،انتشارات فایارد،فاریس،۱۹۹٦.

[۱۳۵] پیربهار،اصول روابط فرانسه والمان وبه قدرت رسیدن جنرال دوگل تا اتحاد دو المان،انتشارات دژنگر،فاریس،۲۰۰۰م.

د وارسا د تړون په له منځه تلو سره فرانسه هم د ناټو له تړون څخه بهر شوه، د المان د هېواد څخه یې چې اتیا میلیونه نفوس یې درلود، په ویره کې وه هر وخت یې د المان په هکله خپل سیاست ته بدلون ورکاوه.

نو ځکه المان اړ شو چې د امریکا اړخ ته پاملرنه وکړي، خو وروسته فرانسه هم د ناټو سره وصل شوه او هم یې د امریکا سره خپلې اړیکې نېکې جوړې کړې، ښه بېلګه یې د خیلج په لومړي جنګ کې د امریکاسره د عراق په ضد جنګېدل وو.

په ۱۹۹۰ میلادي کال کې د فرانسې او المان په منځ کې کومه ځانګړې اړیکه موجوده نه وه ،ترڅو چې د نیس تړون په ۲۰۰۰م کال کې د فرانسې او المان دنېکو اړیکو لامل شو چې د اروپایي اتحادیې دوه فعال غړي شي.۱۳۴

**شپږم: د اسرائیلومهم جنګونه:**

۱ـ په ۱۹۴۸ م کال کې د عربو او اسرائیلو جنګ.

۲ ـ په ۱۳۳۵ هـ ش کال کې د مصر سره د سویس کانال جنګ.

۳ـ په ۱۹٦۷ م کال کې د ګاونډي ملکونو سره شپږ ورځنۍ جګړه.

۴ـ په ۱۳۵۲ هـ ش کال کې د اسطکاک جګړه.

۵ـ په ۲۰۰٦ م کال کې د حزب الله د لبنان او اسرائیلو جګړه.

٦ـ په ۲۰۰۹ م کال کې د اسرائیلو او د غزې جګړه.

۷ـ په ۲۰۰۹ م کال کې د سوریې،لبنان او فلسطین سره پاشلې جنګونه.

فلسطین اوس د اسرائیلو څخه هغه ځمکې غواړي چې د ملل متحد د ویش مطابق په ۱۹۴۸ میلادي کال کې یې د فلسطین حق بللی وو.

خو د ۱۹٦۷ م کال د شپږ ورځنۍ جګړې په ترځ کې اسرائیلو یادې سیمې د عربي هېوادونو د یرغل په پایله کې د فلسطین څخه اشغال کړې، چې د سینا دښته یې د مصر څخه اشغال کړه ،د

غزې تراړه او د اردن د سیندغربي ساحل يې د لبنان څخه او د جولان غونډۍ يې د سوريې څخه اشغال کړې، چې تر اوسه اسرائيل حاضر شوي نه دي چې، يادې سيمې بېرته خوشې کړي.

يوازې د سينا دښته چې؛ د مصر د هېواد څخه يې اشغال کړې وه، د کمپ ډيويډ د تړون په پايله کې يې بېرته مصر ته وسپارله، چې د مصر د وخت د جمهور رېيس انور السادات او د اسرائيلو او امريکا د جمهورو رېيسانو له خوا دا تړون لاسليک شو، چې د مصر له خوا د اسرائيلو غير قانوني دولت په رسميت وپېژندل شو او اسرائيلو د امريکا په منځګړيتوب سره د سينا دښته مصر ته خوشې کړه.

همدا مسئله وه، چې د مصر د جمهوررېيس انور السادات د وژنې سبب شوه، چې د يوه نظامي افسر له خوا په نظامي رسم ګذشت کې انورالسادات ترور کړ.

دا بايد وويل شي چې؛ انور السادات د اسرائيلو په پارلمان کې بيانيه ورکړې وه او وروسته يې د کمپ ډيويډ تړون لاسليک کړ چې د نورو عربي هېوادونو دغضب او قهر سبب شوه او په پايله کې يې مصر د عربي هېوادونو د اتحايې څخه ووېست.

د عربي هېوادونو اتحاديې د مصر سره خپلې ډيپلوماتيکې اړيکې پرې کړې، د کمپ ډيويډ تړون په ۱۹۷۸ م د سپتمبر په يولسمه لاسليک شو.[۱۳۶-۱۳۷]

د مصر او اردن سوله د اسرائيلو سره چې د اوږد مهاله تر اوسه په خپل ځای پاتې ده ،فلسطين او اسرائيل تر اوسه نه دي توانيدلي چې په خپل منځ کې يوه دائمي يالنډ مهاله سوله راولي.

د اسرائيلو او فلسطين په منځ کې د اختلاف اساسی مسائل په لاندې ډول خلاصه شوي دي.

۱ـ د يوبل دولت په رسميت پېژندل.

۲ـ د سرحداتو او پولو نه مشخص کېدل.

۳ـ د امنيت نه شتون او خرابوالی.

---

[۱۳۶] زيد ابادی،احمد،دين ودولت در اسرئيل،نشر روزګار،تهران،۱۳۸۱.

[۱۳۷] لوموند،ډيپلوماتيک،فارسي،صدای عدالت،شمارهای ۱۲-۱۳،

۴ـ د اوبو د وېش په سر کړکیچ.

۵ـ د بیت المقدس د کنټرول په سرجنجال.

٦ـ د اسرائیلو له خوا په اشغالي سیمو کې د ښارګوټو جوړول،چې د فلسطینیانو د عکس العمل سبب ګرځېده

۷ـ په اشغالي سیمو کې د فلسطین د خلکو په تګ راتګ باندې شدید بندیز.

۸ـ د اسرائیلو له خوا څخه د فلسطینیانو د دعوې نه حل او د بې ځایه شویو فلسطینیانو د راتګ څخه ممانعت .

۹ـ په هغه سیمه کې چې فرهنګي،تاریخي او مذهبي اثار موجود دي، د یادو اثارو د ملکیت په سرکړکیچ.

یهودیان اوصیهونیستیان د فلسطین لومړي اوسیدوونکي نه وو، بلکې مخکې له دې چې یهودیان فلسطین ته راشي د فلسطین خاوره د نورو عربو له خوا تصرف شوې وه.

د کنعان په نامه عربي خلکو فلسطین ته ځانونه رسولي او ځای پر ځای شوي وه،زر کاله مخکې له میلاده یو قوم د فلسطین په نامه چې د آژه د سیند څخه راغلی وو ،په فلسطین کې یې د کنعانیانو عربو ځای ونیوه.

ډېر وختونه وروسته بیا د فلسطین خاورې ته د بني اسرائیلو قوم د حضرت موسی ع سره یوځای په فلسطین کې مېشت شول چې د مصر څخه راغلي وو، نو ځکه ویل کېږي چې د فلسطین خاوره د یهودیانو او صیهونیستیانو لومړنی او اصلي ټاټوبی نه دی.

فلسطین د افریقا،اسیا او اروپا د براعظم د اتصال نقطه ده، د تاریخ په اوږدو کې امپراطورانو د فلسطین د ستراتیژیک موقعیت په سبب دا سیمه اشغال کړې ده ،چې تجارتي اهمیت یې ډېر وو، ترڅو چې د دوهم خلیفه په وخت کې فلسطین د مسلمانانو په لاس فتحه شو، یهودیان چې دوهم نوم یې بني اسرائیل دي د حضرت یعقوب (ع) له نسل څخه دي.

د فلسطین سیمه د تمدن لس زره کلن تاریخ لري، له میلاد څخه ۳۵۰۰ کاله مخکې د سامي د سامي قوم چې د حجاز څخه کوچیدلي وو، د فلسطین ساحې ته راغلي دي، همدغه سامي قومونه دمصر،عراق،سوریه او لبنان لور ته هم کوچیدلي دي، چې په فلسطین کې یې د کنعاني اعرابو قوم ځای نیولی وو.

د اسرائیلو خاوره چې نن یې صیهونیستان د اسرائیلو په نوم یادوي د فلسطین د هېواد مربوطه ده.

د اسلام د دین په راتلو سره ډېر یهودیان او مسیحیان چې په فلسطین کې مېشت وو، د اسلام په مقدس دین مشرف شول.

د فلسطین خاوره د تاریخ په اوږدو کې د نړۍ د سترو قدرتونو سره لاس په لاس شوې ده .

د اسلام د دوهم خلیفه حضرت عمر رض په وخت کې د مسلمانانو په تصرف کې راغله.

بني اسرائیل چې دوهم نوم یې یهودیان دي، د حضرت یعقوب ع د نسل څخه دي، د فلسطین د خاورې لومړني تمدن درلودونکي خلک، کنعاني اعراب دي.

دغو اعرابو د میلاد څخه دوه پیړۍ مخکې په فلسطین کې د کنعانیه په نوم دولت تشکیل کړی وو او فلسطینیان له میلاد څخه زر کاله مخکې فلسطین ته راغلل او د کنعانیانو ځای یې خپل کړ.

ډېر وخت وروسته بیا اسرائیل د حضرت موسی ع سره په فلسطین کې مېشت شول، وروسته له هغه حضرت داوود ع او حضرت سلیمان ع په فلسطین کې دولت تشکیل کړی دی.

له میلاد څخه ۲۵۰۰ـ ۳۵۰۰ کاله د جزیرت العرب څو قومونه د مدیترانې جنوب ساحل خوا ته وکوچېدل.

له دغو خلکو څخه ځینې یې په فلسطین کې مېشت شول او د گنبت او کروندې له لارې یې خپل ژوند او معیشت مخ ته وړه.

د یاد قوم خلکو ته د کنعانیانو نوم ورکړل شوی دی، چې له همدې کبله یې فلسطین ته د کنعان د ځمکې لقب ورکړی دی.

یو شمېر له دغوګډوالوپه لبنان کې مېشت شول، چې د بېړۍ ګرځولو او چلولو له لارې یې خپل ژوند مخ ته وړه چې د فنقیانو په نامه یاد شوي دي.

د کنعانیانو یوه مهمه ډله بیا د یابوسیون په نامه یادیدله ،چې په بیت المقدس کې یې ځای نیولی وو، له همدې کبله یې پخوا زمانو کې بیت المقدس ته یبوس خطاب کاوه.

وروسته له سلګونو کلونو حضرت ابراهیم خلیل الله د عراق د اورکلدان د سیمې څخه د کنعان یا فلسطین سیمې ته راکوچیدلی دی، چې د حضرت اسحاق ع او حضرت یعقوب ع او وروسته د حضرت یعقوب له کورنۍ څخه د بني اسرائیلو سلسله پیدا شوه.

ځکه نو مخکې د یهودو اوبني اسرائیلو له پیداښت څخه،کنعانیان او یبوسیان په فلسطین کې مېشت وو ،تمدن یې جوړ کړی وو ،وروسته حضرت ابراهیم ع او زامن یې فلسطین ته راغلي دي.

له دې وروسته یو سلسله پېښې او اتفاقات په دې سیمه کې واقع شوي دي،ترڅو چې حضرت عیسی ع د فلسطین د ناصریې په ښار کې په نبوت مبعوث شو.

له دې وروسته بني اسرائیل په دوه ګروپونو ووېشل شول، چې د یهودي او عیسوي په نومونو یادیږي.

یو شمېر یې په حضرت عیسی ع باندې یې ایمان راوړ او مسیحي شول، خو نورو یې په حضرت عیسی ع باندې ایمان نه دی راوړی او له مسیحیانو سره په جګړو بوخت شول، نو ځکه ویل کېږي چې ټول بني اسرائیل یواځې یهودیان نه دي.

د روم د امبراطورۍ د دړې وړې کېدلو وروسته په ۳۹۵ م کال فلسطین د شرقي روم د بیزانس د عیسویانو ځای وو.

د اسلام د دین د ظهور سره په ٦۳۸ میلادي د حضرت عمر رض د خلافت په دوران کې بیت المقدس د مسلمانانو لاس ته ورغی.

مسلمانانو د فلسطین د اوسیدونکو سره د سولې تړون لاسلیک کړ او د دین په قبلولو کې یې ازاد پرېښودل.

ځکه د اسلام د دین منل په رضایت سره حکم شوی دی، چې وروسته ډېرو مېشتو خلکو د اسلام دین قبول کړ چې کاملا په رضایت سره دا کار ترسره شو، یعنې د بل ځای څخه فلسطین ته مسلمانان نه دي ورغلي ،د فلسطین بومي او اصلي اوسیدوونکي وو چې وروسته مسلمانان شول.

د اوومې میلادي پېړۍ وروسته په فلسطین کې د دریو ادیانو پیروانو شتون درلود(اسلام،یهودیت،عیسویت) ډېری یې مسلمانان وو، چې تر پنځه سوه کالو یې دوام وکړ ترڅو چې اروپایانو په ۱۰۹۹ میلادي کال کې د صلیبي جګړو په ترڅ کې فلسطین اشغال کړ، چې ډېر مسلمانان یې شهیدان کړل.

د اروپایي تاریخ لیکوونکو په قول تر شپیته زره مسلمانان یې په فلسطین کې په شهادت ورسول چې د بیت المقدس په ښار کې اوسیدل.

۸۸ کاله وروسته فلسطین د عیسویانو په قبضه کې وو، ترڅو چې په ۱۱۸۷ کال کې صلاح الدین ایوبي په صلیبي جګړو کې عیسویانو ته سختې ماتې ورکړه چې فلسطین او بیت المقدس بیا ځل د مسلمانانو لاس ته ورغلل.

خو صلاح الدین ایوبي د یهودیانو او عیسویانو سره ډېر اسلامي او انساني چلند وکړ،هیڅ ظلم اوستم یې پرې ونه کړ.

د اسلام د دین په منلو کې یې کاملا ازاد پرېښودل چې ډېر مسلمانان،لږ عیسویان او ډېر کم شمېر یې یهود د نولسمې پېړۍ تر اخره په فلسطین کې مېشت پاتې شول.

په ۱۸۸۰ میلادي کال پنځه سوه زرو د فلسطین د ملت د وګړو څخه یواځې څلرویشت زره تنه یهودي مذهب پاتې شوي وو.

په ۱۸۹٦ کال کې یو ژورنالیست چې اتریشی یهودي وو، تیو دور هرتزل نومیده یو کتاب یې ولیکه چې یهودیانو ته یې د یوه یهودي دولت د جوړېدلو او تشکیل انګیزه ورکړه چې د همدغه مقصد لپاره یې هندوستان، ارجنټاین،قبرس او څو نورې سیمې د فلسطین په شمول د یهودو د یو مستقل دولت د جوړېدلو په منظور په نظر کې نیول شوې وې.

تر څو چې یو کال وروسته په ۱۸۹۷ میلادي کال کې د صیهونیزم کنګره د سیویس د بازل په ښار کې جوړه شوه، نقش او پلان یې طرحه کړ ،چې د یهودیانو د هجرت او کډوالۍ په اثر باید د یهودو او فسطینیانو د نفوذ تناسب ته بدلون ورکړی.

یهودیان چې په ۱۸۸۰ میلادي کال کې په فلسطین کې یواځې پنځه فیصده وو، د همدې پلان په اثر په ۱۹۱۴ میلادي کال کې یې کچه یولس فیصدو ته ورسېده ،یعنې د اووه سوه پنځوس زرونفوس له جملې څخه یې پنځه اتیا زره یهودیان تشکیل کړي وو.

د لومړي نړیوال جنګ په ترڅ کې د برتانیه د بهرنیو چارو وزیر بالفور د یوې اعلامې په ترڅ کې د برتانیې د دولت ملاتړ د یوه یهودي د جوړښت سره اعلان کړ چې په فلسطین کې به تاسیس کیږي.

په ۱۹۱۸ میلادي کال فلسطین د انګلیستان تر اشغال لاندې راغی چې د لومړي نړیوال جنګ پای وو او مخکې له دغه تاریخ څخه فلسطین د عثماني ترکیې ترحاکمیت لاندې وو.

یو کال وروسته یعنې په ۱۹۱۹ کې د یهودیانو د کډوالۍ لړۍ د فلسطین په لور پیل شوه، چې تر ۱۹۲۳ میلادي کال پورې پنځه دېرش زره یهودیان فلسطین ته راغلل او د ۱۹۳۲ میلادي کال بیا تر ۱۹۳۵ میلادي کال پورې یو سلو او پنځه څلوېښت زره تنه یهودیان د انګلیستان د دولت په اجازه فلسطین ته رسما راغلل اوپه لسګونو یهودیان په غیر رسمي ډول په فلسطین کې د نړۍ د هر ګوټ څخه مېشت شول.

په ۱۹۳۸ میلادي کال کې د فلسطین نفوس یو میلیون پنځه سوه زره وو، چې له دې جملې څخه یې څلور سوه پنځوس زره یهودیان تشکیل کړي وو ،یعنې د کډوالۍ د سیاست په اثر یې د یهودیانو پنځه فیصده نفوس دېرش فیصده ته لوړ کړ.

په ۱۹۴۵ میلادي کال کې انګلیستان او امریکا په همغږۍ سره د اروپا او امریکا یهودیان چې شمېر یې سل زره تنو ته رسېدو ټول یې فلسطین ته ولېږل.

په ۱۹۴۷ میلادي کال کې د فلسطین نفوس شاوخوا دوه میلیونو ته ورسېد چې له دې جملې څخه شپږ لکه پنځلس زره یهودیان وو،یو لک نوي زره مسلمانان وو او یو لک پنځوس زره یې عیسویان وو.

په ۱۹۴۸ میلادي کال یهودیانو په مسلمانانو یرغل وروړ،ځمکې ،مال او ملکیت یې ترې غصب کړل په سلگونو زره یې بې کوره کړل چې دا پېښې د انگلیستان د دولت د قیمومیت په دوران کې په فلسطین کې واقع شوې.

کله چې یهودیان په فلسطین کې ځواکمن شول دانگلیستان دولت د فلسطین د قیمومیت څخه لاس په سر شو او د فلسطین څخه ووتل.

یهودیانو د ډیویډ بن گوریون په تل ابیب کې یهودي دولت تشکیل کړ چې وروسته د بېلابېلو جگړو سبب وگرځېده یو حدیث شریف دی چې (هر چا چې شپه سهار کړه او د مسلمان په باره کې یې همت ونه کړ،مسلمان نه دی)(بهارالانوار ج ۷۴ص ۱۶۴)

اسرائیل د امریکا د ټولو نړیوالو مرستو له جملې شل فیصده جذبوي، چې همدغه کومکونه دي چې اسرائیل یې په نړیوال اقتصادي نظامي قدرت بدل کړی، ناخالص کورنی تولید یې یو سلو شل مېلیاره ډالروو او د سړي سرکلنی عاید یې شل زره ډالره دی.

اسرائیل د غذایي موادو او کرنیزو محصولاتو له نقطې نظره په ځان بسیا هېواد دی.

اسرائیل په خپل تاریخ له میلاد څخه دولس سوه کاله مخکې معتقد دي، کله چې یهودیان د مصر څخه فلسطین ته کوچېدل او د حضرت داوود ع او حضرت سلیمان ع سلطنت په فلسطین باندې د خپل تاریخ پیل بولي.[۱۳۸]

په ۱۹۴۸ میلادي کال کې د مې په څوارلسمه د انگلیستان وروستي سرتیري د وتلو سره ،چې د ملل متحد فیصله وه ،اسرائیلو خپل دولت په فلسطین کې رسما اعلان کړ او مرکز یې تل ابیب ښار وټاکه.

خو عربي هېوادونو د اسرائیلو دولت په رسمیت ونه پېژانده،د بل اړخه مصر ،سوریه،لبنان او اردن په اسرائیلو نظامي یرغل وکړ که څه هم عربي هېوادونو په هغه وخت کې د اسرائیلو په اردو باندې لوړتیا درلوده خو دا چې عربي فوځونود یوې خوا په خپل منځ کې همغږي نه درلوده او د بله جانبه یې خپل ټول نظامي قوت استعمال نه کړ نو ځکه ناکامه پاتې شول.

[۱۳۸] طلوعی،محمود،فرهنگ جامعه سیاسی،چاپ گلرنگ یکتا،تهران،۱۳۸۵،ص،۱۷۰-۱۷۱.

اسرائيلو په دې جگړه کې د امريکا او د چکوسلواکيا د هېوادونو څخه پرمختللي او مډرنې سلاح گانې په لاس راوړې چې د اسرائيلو د کاميابۍ سبب وگرځېدې او شپږ زره کيلو متر مربع ساحه يې نور هم تر خپل حاکمت لاندې راوسته چې تر سرې بحيرې يې خپل حدود ورسول.

په ۱۹۵۷ ميلادي کال کې چې د مصر له خوا دسويس کانال ملي اعلان شو د انگليستان او فرانسې د شديد عکس العمل سره مخامخ شو،چې وروسته يې په مصرباندې نظامي يرغل پيل کړ،اسرائيلو په ياه جگړه کې برخه واخېسته او د مصرد سينا دښته يې تر تصرف لاندې راوسته.

په ۱۹٦۷ ميلادي کال کې اسرائيلو په مصر يرغل وکړچې د اسرائيلو د بېړيو په وړاندې د مصر د عقبې د خليج تړل او ممانعت وو،خو د مصر په ملاتړ سوريه او اردن هم په جگړه کې ورگډ شول.

د اسرائيلو هوايي ځواک د مصر ټول هوايي ډگرونه او درې سوه جنگي الوتکې يې په يوه شپه ويجاړې کړې دا په داسې حال کې ده چې د مصر د هوايي ځواک د ټولو جنگي جېټ الوتکو شمېر څلور سوه ته رسيده.

چې ياده جگړه په شپږ ورځنۍ جگړه مشهوره شوه او اسرائيلو په دغه جگړه کې مصر، اردن، لبنان او سوريه مات کړل،وروسته د ملل متحد په منځگړيتوب جگړه پای ته ورسېده.

اسرائيلو د عربي هېوادونو ډېرې سيمې تصرف کړې چې د مصر دسينا دښته،د سورې د جولان غونډۍ او د اردن دسيند غربي سواحل او بيت المقدس د ښار پخوانۍ برخه شامل وو.

په ۱۹۷۳ ميلادي کال کې د مصر جمهور رېيس انور السادات د سينا د دښتې د بيا لاس ته راوړلو په مقصد په اسرائيلو بيا يرغل وکړ، چې د يهوديانو د اختر لومړۍ ورځ وه چې د کيپور د ورځې د جگړې په نامه ياده شوه(کېپور ديهوديانو د اختر ورځ ده)

مصريانو ځينې سيمې ونيولې خو د امريکا په مداخله ياده جگړه د اسرائيلو په گټه تمامه شوه او دسينا دښته په هغه ډول د اسرائيلو په لاس کې پاتې شوه.

سوريه د جولان د ارتفاعاتو او غونډيو په اميد جگړې ته داخله شوه خو کاميابه نه شوه چې يادې سيمې ونيسي.

انور السادات په ۱۹۷۷ میلادي کال د یوه غیر منتظره سفر په ترڅ کې د اسرائیلو هېواد ته ولاړ او د اسرائیلو په پارلمان کې یې یوه بیانیه ورکړه چې د ټولو عربي هېوادونو د خواشینۍ او قهر سبب شوه چې په پایله کې یې مصر د عربي هېوادونو د اتحادیې څخه بهر کړ.

په ۱۹۷۹ میلادي کال په کمپ ډیویډ کې د امریکا،مصر او اسرائیلو په ګډون یو درې اړخیزه کنفرانس جوړ شو چې د کمپ ډیویډ د تړون په نامه یادیږي چې د جمهور رییس انور السادات او جیمي کارتر او بېګین له خوا لاسلیک شو.

اسرائیلو تر ۱۹۸۲ میلادي کال پورې دسینا دښته مصر ته پرېښودله او مصر د اسرائیلو دولت په رسمیت وپېژانده چې همدغه موضوع وروسته د انور السادات د ترور سبب شوه.

د دوه نړیوالو جګړو په منځ کې چې د اروپا څخه یهودیان امریکا ته ګډوال شول، شمېر یې تر هغو یهودیانو ډېر وو چې فلسطین ته تللی وو.

د امریکا یهودیان په اقتصاد او سیاست کې ډېره پرمختیا وکړه، چې اوس همغه علت دی چې امریکا د اسرائیلو د یهودیانو سر هر اړخیزه مرسته کوي.

د بل اړخه د اسرائیلو لابي ګري او جذب هم د امریکا د کانګرس د غړو په هکله چې د ټاکنو په وخت کې یې لري او یهودیان کوښښ کوي چې د کانګرس غړي په مادي ډول په ټاکنو کې کامیاب کړي او هم د هر امریکایي جمهوررییس د ټاکنو په وخت کې لابي ګري ورته کوي.

د امریکا د صیهونیستي ټولنې د پام وړ ګرځې چې د اسرائیلو سره بې دریغه مرستې د صیهونیزم د پراختیا او مستقل هېواد د درلودلو په منظور کوي.[۱۳۹]

**اووم: د اوسني یهودیت یو لړ اعتقادات په لاندې ډول دي:**

یهوه؛چې د یهودیانو خاص خدای دی یواځې د یهودیانو لپاره یې خدای بولي او د نورو خلکو سره نومړی خدای د یهودیانو په عقیده دښمني لري .

---

[۱۳۹] طلوعی،محمود،فرهنگ جامع سیاسی،ص،۱۷۳-۱۷۶.

یهودیان حضرت اسحاق ع ذبیح الله بولي، دا په داسې حال کې ده چې په حقیقت کې حضرت اسماعیل ع د خپل پلار حضرت ابراهیم ع خلیل له خوا د خدای په امر باید قرباني شوی وای.

یهودیان ځانونه مقدس خلک بولي او نور ټول خلک ناپاک او لکه حیوانات (سپي یاخوګ)تصور کوي چې د دوی په وړاندې هر ډول خیانت او ظلم د اجر سبب ګرځي او دخدای ج د نږدیوالي وسیله یې ګڼي.

دیهودیت دین یواځې دیهودیانو لپاره دی او د شنبې ورځ پڼ پاکه ده ،باید هیڅ کار په کې ترسره نه شي،حضرت عیسی ع مور څخه په غیر مشروع ډول تولد شوی دی، د بیت المقدس زیارت په کال کې دوه ځلې په هر بالغ نارینه یهودي باندې لازم دی.[۱۴۰-۱۴۱]

دیهودیانو عقیده ده چې د یهوه په میثاق او تړون کې چې د خدای ج او حضرت موسی ع ترمنځ خبرو څخه عبارت ده ، د خدای ج له خوا ورته هدایت ورکول کېږي چې زما قوم یا یهود د مصریانو څخه خلاص کړم ا وبیا یې د کنعانیانو او یبوسیانو ځای ته چې فلسطین دی بوځم.[۱۴۲]

**اتم: د برلین دیوال:**

د برلین دیوال چې د شرق او غرب د اختلاف مظهر وو، د ساړه جنګ په وخت په **۱۹۶۱** کال کې د پنځه څلوېښت کیلو مترو په اوږدوالي اعمار شو.

د برلین دیوال د ساړه جنګ په ختمېدو سره په **۱۹۸۹** میلادي کال کې د دواړو جرمني هېوادونو دیوالي په پایله کې ویجاړ کړل شو.

یاد دیوال د شرقي المان له خوا ځکه اعمار شو، چې د شرقي المان څخه خلک د غربي المان لور ته تښتېدل، د غرب له خوا د برلین دیوال د شرم د دیوال په نامه یادیده.

---

[۱۴۰] نورزای،محمد ابراهیم،ادیان جهان وچگونه گی مقارنه انها،مطبه رسالت،کابل،۱۳۹۰،ص،۱۷۵-۱۷۸.

[۱۴۱] زابلی،زلمی،د نړۍ ستر ادیان،مطبعه سید،کابل،۱۳۹۶،ص،۱۶۰-۱۶۱.

[۱۴۲] بایرناس،جان،تاریخ جامع ادیان،ژباړه علی اصغر حکمت،انتشارات رسالت، تهران،۱۳۸۶،ص،۴۹۱-۴۹۶.

د اسرائیلو د تاسیس څخه تر شلو کلونو پورې د اسرائیلو د سلاح تمویل کوونکی هېواد فرانسه وه ،همدا رنګه فرانسوي ټکنالوجیستان وو، چې د اسرائیلو هستوي ریکټور یې جوړ کړ چې په پایله کې یې اټوم بم ورته جوړ کړ.

خو دا حالت د شپږ ورځني جنګ په پیل سره په ۱۹٦۷ میلادي کال کې د جنرال دو ګول له خوا بدلون وموند، چې ټولې سیمې ته یې د اسلحې خرڅلاو بند کړ.

د امریکا د وخت جمهور رییس جان ف کېنیډي د ۱۹٦۷ م کال د جنګ مخکې د اسرائیلو وغوښتل چې د اټومي تاسیساتو څخه یې لیدنه وشي، خو اسرائیلو اجازه ورنکړه، یعنې تر هغه وخته د امریکا او اسرائیلو سیاسي اړیکې ښې نه وې.

د ساړه جنګ په جریان کې کله چې د فرانسې اړیکې د اسرائیلو سره کمزورې شوې، امریکا په سیمه کې اسرائیلو ته د یوه ستراتیژیک هېواد په سترګه ځکه کتل چې؛ د شوروي اتحاد په وړاندې یې وکاروي.

په ځانګړي ډول کله چې سوریې او مصر په ښکاره ډول د شرقي بلاک او شوروي خوا ته میلان پیدا کړ، د ساړه جنګ په ختم او د شوروي اتحاد په وېشلو سره د امریکا او اسرائیلو د اړیکو کمېټې ډېره زوروره لابي ګري وکړه چې د ۱۹۹۰ م کال په پیل کې دا مناسبات نور هم ټینګ شول.

د فارس د خلیج د جنګ په جریان کې چې عراق د اسرائیلو په خلاف ګواښونه وړاندې کړل بوش د اسرائیلو د دفاع په منظور خپل هر اړخیز ملاتړ اعلان کړ.

د اسرائیلو د تاسیس په لومړۍ لسیزه کې د امریکا اسرائیلو ته مرسته او کومک ډېر لږ لېږدول کېده خو د جمهور رییس نیکسن په دوره کې د اسلحې د خرڅلاو او میلیاردونه ډالرو مرستې سره دا اړیکې ټینګې شوې.

که څه هم نیکسن د یهودیانو د همکارۍ پرته جمهوري ریاست ته رسیدلی وو، نیکسن لومړنی جمهور رییس وو چې؛ په منځني ختیځ کې یې اسرائیل خپل یو ستراتیژیک ملګری عنوان کړ او د عربو په مقایسه یې ورته ارجعیت ورکړ او د فرانسې هېواد په عوض یې اسرائیلو ته دسلاح کومک پیل کړ چې د کلني کومک کچه یې درې سوه میلیونو ډالرو څخه دوه میلیارده ډالرو ته لوړه کړه

چې په همدې ډول د اسرائیلو طرفداران په واشنګټن کې په مهمو لوبغاړو بدل شول او د یهودیانو د لابی ګرۍ زمینه یې د اسرائیلو په ګټه ډېره مناسبه کړه.

خو په ۱۹٦۷ میلادي کال کې د شپږ ورځنۍ جګړې په جریان کې د امریکا یهودیان ځېر شول او سخت ټکان یې وخوړ چې باید د اسرائیلو څخه د عربي هېوادونو په وړاندې سخت ملاتړ وشئ.

د امریکا د دولت له خوا د نازي جنایتګرو توقیف او نیول او په پایله کې د امریکا څخه وېستل ،د شوروي څخه امریکا ته دیهودیانو رواستل،د اتوفیا او سوریه څخه د یهودي کډوالو د اېستلو په منظور د امریکا مالي کومک،د نازي جنایتګرو په وړاندې د یوه موزیم جوړل چې د یهودو په وړاندې د جنایتونو مرتکب شوي وو،دا هغه کړنې دي چې د ۱۹۷۰ او ۱۹۸۰ لسېزو په ترڅ کې د امریکا د دولت له خوا اجرا شول او د دې لامل وګرځېدل چې د یهودي ټولنې رول په امریکا کې بدلون ومومي او برجسته شي.

په ۱۹۷۴ کال کې د امریکا د جکسن وانیک د قانون تصویب وو، چې د امریکا اړیکې د شوروي اتحاد سره په دې شرط باید تامین شي چې شوروي اتحاد د یهودي لږکیو سره مناسب قانوني چلند وکړي.

یاد قانون د شوروي د وېشل کېدو وروسته هم په خپل ځواک سره پاتې دی،چې د امریکا یهودیانو ته یې د وېټو حق ورکړ، چې د روسیې سره سوداګریزې اړیکې د یاد شرط په نظر کې نیولو سره دوام وکړي.

اسرائیلو په ډېرې کامیابۍ سره په تېرو لسېزو کې وکولای شول، چې د عربي هېوادنو د راډیکال او نېشنلېست غورځنګونو د کامیابۍ مخه ډپ کړي، د بېلګې په ډول لبنان، اردن، فلسطین ، یمن اوسوریه کې چې شتون لري.

د اسرائیلو هوایي پوځ د سیمې د عربي هېوادونو په پرتله ډېر ځواکمن پوځ دی، استخبارات یې په نړیواله کچه ښه شهرت لري چې د موساد په نامه یادیږي.

د امریکایي سلاح د ازماېښت په منظور د روسیې د اسلحې په وړاندې په سیمه کې د اسرئیلو شتون ،د امریکا د ګټو د خوندي کولو لپاره دوې ګټې لرلې دي.

چې لومړی یې د پخواني کمونیزم د مفکورې او فلسفې د نفوذ او انتشار مخنیوی وو او دوهمه ګټه یې د روسي سلاح په وړاندې د امریکایي اسلحې ازمایښت وو، چې امریکایانو خپله سلاح په ځانګړي ډول جنګي جبهې الوتکې او رهبري شوي توغندي وازمایل چې ښه مثبته نتیجه یې ترې واخیسته.

دریمه ګټه یې د اسرائیلو له ملاتړ څخه په اوسنیو شرایطو کې دا ده چې د یوې خوا یې د یهودیانو د صیهونیزم یا د اسرائیلو د دولت جوړښت او دوام تضمین کړ او د بله اړخه یې د سیمې د اسلامي افراطیت په ضد اسرائیل ښه ملاتړ دی.(لیکوال)

د ساړه جنګ د ختمېدو سره د اسرائیلو ستراتیژیک اهمیت په سیمه کې لږ شوی نه دی، دا ځکه چې امریکا د عربي او اسلامي بنسټپالنې څخه په سیمه کې په تشویش کې ده.

په هغه اندازه چې پخوا د کمونیزم د نفوس څخه په تشویش کې وه، ځینې نور عوامل هم شتون لري چې د امریکا او اسرائیلو اړیکې یې په سیمه کې ټینګې ساتلي دي،لکه نفتو ته د امریکا اړتیا، د ترووریزم مسله د ایران او عراق مهار کول، د اسرائیلو د نظام ملاتړ د دیمکراسۍ او لبرالیزم څخه دا ټول هغه مهم عوامل دي چې د اسرائیلو اړیکې د امریکاسره د ساړه جنګ مخکې او وروسته نږدې ساتي.

که څه هم د یهودو لابي ګري په امریکا کې خپل نقش او رول لري، چې اساس یې د امریکا او اسرائیلو د اړیکو کمېټه جوړوي.

د اسرائیلو دولت د امریکا د هر جمهور رییس او د کانګرس د غړو د ټولټاکنو په وخت کې هر اړخیز ملاتړ کوي چې دا خپله یوه مهمه لابي ګري ده.

د دوو نړیوالو جګړو په منځ کې چې اروپا څخه یهودیان امریکا ته کډه شول، شمېر یې تر هغه یهودیانو ډېر وو چې فلسطین ته له نورې نړۍ څخه راغلي وو.

د امریکا یهودیانو په اقتصاد او سیاست کې ډېره پرمختیا وکړه ،چې اوس همغه لامل دی چې امریکا د اسرائیلو د یهودیانو سره هر اړخیزه مرسته کوي.

د بل اړخ څخه د اسرائیلو لابي ګري هم د امریکا د کانګرس د غړو په هکله چې د ټاکنو په وخت کې یې کوي اوهم د هر امریکایي جمهور ریېس لابي ګري د یهودیانو په غاړه ده،د امریکا د صیهونیستي ټولنې د پام وړ ګرځي چې د اسرائیلو سره بې دریغه مرستې د صیهونیزم د پراختیا او د اسرائیلو د مستقل هېواد د درلودولو په منظور کوي.[۱٤۳]

د امریکا نظامي سیاسي ملاتړ د اسرائیلو څخه د امریکا لپاره بله ګټه دا لرلی شي، چې د امریکا نظامي شتون په سیمه کې غیر اړین کوي، ځکه چې اسرائیل په سیمه کې پخپله د دفاع وړتیا لري. که څه هم امریکا په منځني ختیځ کې د ځینو عربي هېوادونو سره چې محافظه کار رژمونه لري لکه عربستان،قطر،دعربو متحده اماراتو سره ستراتیژیکې اړیکې لري او امریکا خپل بهرنی سیاست د اسرائیلو او عربي هېوادونو په وړاندې په بشپړ ډول بې طرفه ښکاره کوي خو تر اوسه یې یوه فیصله هم د ملل متحد د امنیت په شورا کې د اسرائیلو په خلاف د امریکا له اړخه نه ده ویټوشوې چې د اسرائیلو د نارضایتۍ سبب وګرځي، چې دا ثبوت د دې ادعا دی چې د امریکا بې طرفي یو مصنوعي بې طرفي ده.[۱٤٤]

د فرانسې ،انګلیستان او امریکا یهودیان په خپل نوبت د اسرائیلو د دولت د ځواکمن کېدو لپاره یو اساسي علت دی، چې د یادو غربي سترو هېوادونو په حیث چې د دولت په مهمو پوستونو کې یې یهود نژاده خلک په کار ګومارل شوي دي،داسرائیلو سره په اقتصادي،سیاسي،استخباراتي،نظامي او فرهنګي ساحو کې هر اړخیزه مرسته کوي.

د امریکا رسنۍ ،بانکونه،تجارت،استخبارات چې ډیری یې د یهود نژادو امریکایانو تر ولکې لاندې دي ،د نېشنلیستي احساس او تفکر له نظره هر وخت د اسرائیلو د دولت ملاتړ کوي.(لیکوال)

د امریکا پالیسي جوړونکي د اسرائیلو څخه د دوی د ستراتیژیکو او جغرافیایي موقعیت پر بنسټ غواړي چې؛ د عربي هېوادونو د بنسټ پاله او بنیاد ګرایي د رژمونو په ضد مبارزه وکړي او اسلامي افراطیت مهار کړي.

په ځانګړي ډول د سیمې هغه عربي هېوادونه چې مخکې د شوروي اتحاد ملاتړ او ملګرتیا یې درلودله.

---

[۱٤۳] طلوعي،محمود،فرهنګ جامعی سیاسي،ص،۱۷۳-۱۷٦.

[۱٤٤] مهدی پیشوایی،مجله درس های از مکتب اسلام،شماره،۱۰..۱۳۷٦

که چېرې امریکا خپلې اړیکې د اسرائیلو سره ټینګې نه کړي، په هغه صورت کې د اسرائیلو له دولت څخه داسې توقع کول امکان لري، ځکه چې د اسرائیلو هېواد د اسلامي بنیاد ګرایانو د دولتونو په واسطه محاط شوی دی.

اسرائیل په سیمه کې د شوروي د نفوذ څخه په کلکه مخنیوی کوی، چې امریکا د شوروي په خلاف د اسرائیلو پوځ په مډرنې اسلحې سره د همدغه هدف د لاسته راړلو په موخه مجهز کړی دی.

د امریکا داسې سیاست او پالیسې په سیمه کې د اسرائیلو او عربي هېوادونو ترمنځ د اسلحې د سیالۍ سبب وګرځېده، چې اسرائیلو ته یې دا جرات ورکړ چې د عربي هېوادونو سره څو جګړې وکړي.

امریکا په داسې پالیسۍ سره ، نه یوازې دا چې عربي هېوادونه د ځان لور ته جذب نه کړل بلکې په شوروي اتحاد پورې یې نور هم متکې کړل.[۱۴۵]

ځینې یهودیانو د تاریخ په اوږدو کې دا هیله او امید درلود چې یو واحد هېواد ولري او په یوه سیمه کې سره راټول شي.

په نولسمه پېړۍ کې د یهودیانو د مذهبي ایډیالوژي د باورونو په بنسټ د صیهونیزم جریان رامخ ته کړ.

په ۱۸۹۷ میلادي کال کې د یو اتریشي یهودي (تیو دور هرتسل) تر نظر لاندې یو کنفرانس په سویس کې جوړ شو، چې د لومړني صیهونیستي کنفرانس تر عنوان لاندې په تاریخ کې مشهور دی.

په دې کنفرانس کې یوسلو اولس مختلفو یهودي ډلو شتون درلود، چې بلاخره یو صیهونیستي نړیوال سازمان یې تاسیس کړ.

لومړی یې د یو مستقل هېواد جوړښت په ارجنټاین،یوګاندا،قبرس یا تګساس کې وړاندیز وکړ، خو په اخر کې یې د فلسطین هېواد وټاکه.

که څه هم د فلسطین وګړي له ۹۳ څخه تر ۹٦ فیصده غیر یهودي وو، یعنې مسلمانان او عیسویان وو، چې ۹۹ فیصده د فلسطین خاوره د مسلمانانو ملکیت و.

---

[۱۴۵] Neft,pillars,۱۷,edward tivan,the lovvy,gaewish political power and american foreign policy(ny,simon and schuster,۱۹۸۷)

خپله د یهودیانو تاریخ لیکوونکود فلسطین په هکله داسې لیکلي چې (ښایسته ناوې ده خو واده شوې ده) او د صیهونیستي نړیوال سازمان فیصله دا وه ،چې یا د پیسو په ورکولو او یا په زور او جبر باید فلسطینیان له خپل هېواد څخه ووېستل شي.
یو مشهور یهودي (ماکس ناردو) چې د صیهونیزم د بنسټ اېښودونکی او د هرتسل د نږدې ملګرو د جملې څخه وو وایي: د صیهونیزم یواځینی امید او هیله د امریکا د صیهو نیستیانو څخه ده ،خو هغه وخت کې د امریکایهودیانو د صیهونیزم د مسئلې سره علاقه نه درلوده حتی ځینویې مخالفت هم کاوه.

**نهم: صیهونیزم څه مفهوم لري؟**

د صیهونیزم مفهوم دا دی چې ټول یهودیان په دې تلاش کې دي چې خپل یو مستقل ازاد هېواد د فلسطین په خاوره کې تشکیل کړي.
خو د امریکا یهودیان بیا د صیهونیستیانو ترفشار لاندې راغلل او خپل ملاتړ یې د صیهونیزم څخه اعلان کړ چې یوه یهودي تاریخ لیکوونکي(ناهومی یکوهن) په ۲۰۰۳ میلادي کال کې ولیکل چې؛ که د امریکا د یهودیانو سیاسي فشار او مالي ملاتړ شتون نه درلود، د اسرائیلو هېواد په ۱۹۴۸ میلادي کال کې هیڅ جوړ شوی نه وی.
همدا دلیل وو چې د امریکا هر جمهور ریېس به په عثماني ترکیه کې د امریکا سفیر حتما یهودي انتخاب کاوه.
په امریکا کې په ۱۸۹۸ میلادي کال کې د صیهونیستیانو امریکایي فدراسیون تشکیل شو چې په ۱۹۱۰ میلادي کال یاد فدراسیون شل زره غړي درلودل چې د کانګرس په غړو باندې ډېر اغیز ناک نهاد وو.
په ۱۹۱۸ میلادي کال کې د یاد فدراسیون د غړو شمېر دوه سوه زره تنو ته ورسېد او په ۱۹۴۸ میلادي کال کې یې شمېر یو میلیون غړو ته ورسېد.

**لسم:لاندې نهادونه د یهودیانو د ملاتړ په خاطر په امریکا کې تشکیل شوي او فعال دي:**

**۱ـ د امریکا او اسرائیلو د عمومي چارو کمېټه:**

یاده کمېټه تر ټولو ځواکمن نهاد دی، چې د یهودیانو د لابي ګرۍ لپاره فعالیت کوي او د اسرائیلو د سیاست ملاتړې ده.

د امریکا په سیاسي جوړښت باندې ډېر زیات اغیز ناک ارګان دی، چې وړاندیزونه یې د کانګرس د جمهوري غوښتونکو او ډیموکراتانو له خوا همېشه د قبول وړ دي.

**که یاده کمېټه د هر جمهور ریېس د ټاکنې څخه ملاتړ وکړي د هغه جمهور ریېس کامیابي حتمي ده.**

**۲ـ د اسرائیلو طرفداره سیاسي کمېټه:**

دا سازمان د ۳۰ نورو کمېټو څخه تشکیل دی چې د اسرائیلو څخه سیاسي ملاتړ لري.

**۳ـ د امریکایي اصلي یهودي سازمانونو د رېیسانو مجموعه:**

دا جوړښت د ۵۱ یهودي امریکایي سازمانونو څخه جوړه دی، چې د لابې ګرۍ دنده لري ټول مدیره هېئت یې په امریکایي اسرائیلي کمېټه کې غړیتوب هم لري.

**۴ـ د امریکا ـ اسرائیلو د زده کړې بنیاد:**

د کانګرس د نمایندګانو د سفرونو مصارف او مدیریت په غاړه لري.

۵ـ د نږدې شرق د سیاست لپاره د واشنګټن موسسه د امریکایي سیاسیونو په منځ کې د یوه مبتکر فکر او خلاق ذهنیت په حیث فعالیت کوي.

د بېلګې په ډول د ایران په وړاندې د امریکا نظامي پالیسي د همدې نهاد دنده ده.

**۶ـ د اتهام او تور خلاف لیګ:**

د یهودیانو او عیسویانو بین المللي یووالی یا په بل نوم (د یهودیانو لپاره ولاړ یو.)

**۸ـ د اسرائیلو لپاره متعهد عیسویان:**

د یوه عیسوي میلیونر تر ملاتړ،قیادت او رهبرۍ لاندې فعالیت کوي، چې د انجیل د ارشاد په بنسټ باید له اسرائیلو څخه ملاتړ وکړو، که چېرې په کانګرس کې هره طرحه یا لایحه د اسرائیلو په خلاف تصویب کېږي د کانګرس استازي د سیاسي فشار لاندې راولي.

**۹ـ د سامون ویسینتال مرکز.**

۱۰ـ په رسنیو کې د اسرائیلو پروژه د اسرائیلو په ګټه تبلیغات کوي.

**۱۱ـ د اسرائیلو د دفاع لپاره ورونه:**

دا نهاد هرکال په سلګونو اسرائیلي د اردو سرتیري امریکا ته د تبلیغاتو لپاره دعوت کوي.[۱۴۶]

---

[۱۴۶] Nur mas al ha, expulsion of Palestinians,the concepts of transfer in Zionist political thought,۱۸۸۲_۱۹۴۸.

# اووم څپرکی

## د برتانیه بهرنی سیاست

**اول: د برتانیې لنډه پېژندنه:**

انګلیستان یو مشروطه سلطنت او یو پارلمان لري چې د کامن ویلټ یا د ګډو ګټو د هېوادونو رهبري لري، په اوسني وخت کې یې دوهمه الیزابت مشري کوي د کامن ویلټ ( COMMON wealth) هېوادونه په لاندې ډول دي:

واحده پاچاهي( United kingdom)، استرلیا ،کاناډا ،نیوزیلینډ، توالو، سنټلوسیا، انتیکوا، باربودا،جامایکا،باربادوس،پاپوګینه نو، ګرناډا ، باهاما، د سلمان جزیری ، سینټ وینسټ ، ګرنادین ، بلیز،سیټ کیش او نویس چې ټولټال نولس هېوادونه کېږي چې په راس کې یې دوهمه الیزابته قرار لري.

انګلیستان تر ۱۷۰۷ میلادي کال پورې مستقل هېواد وو، خو وروسته له ۱۷۰۷ د سکاټلینډ هېواد ورسره یوځای شو، چې د لویې برتانیې پاچاهي یې تشکیله کړه چې د (United kingdom) په نامه یادیږي.

د شمالي اطلس په بحر کې موقعیت لري او سل جزیرې ورپورې مربوطې دي، د جرمن یوه قبیله چې د انګل په نامه یادیده په پنځمه او شپږمه مېلادي پیړیو کې یې په انګلیستان کې ژوند کاوه د انګلیسان نوم د همدغې قبیلې د نوم څخه اخېستل شوی دی.

په انګلیستان کې صنعتي انقلاب په اتلسمه پېړۍ کې پیل شو، چې انګلیستان یې لومړنی صنعتي هېواد جوړ کړ،پخواني انسان چې په انلګیستان کې یې ژوند کړی د ۷۸۰زره کاله مخکې دی.

اوس انګلیستان مستقیما د پارلمان په مټ اداره کېږي، نفوس یې تر ۶۴،۵میلیونو پورې رسیږي د برتانیه متحده پاچاهي د څلورو برخو څخه تشکیل شوېده،چې عبارت ده له ؛ انګلیستان ، ویلز ، سکاټلینډ او شمالی ایرلینډ.

د شلمې پېړۍ په پیل کې د نړۍ ابر قدرت  او د یوې امبراطورۍ درلودونکی وو، وروسته د دوو نړیوالو جګړو څخه د انګلیستان هېواد مقام هم تنزیل وکړ.

نظامي او اقتصادي قدرت لرښو، د ملل متحد د امنیت د شورا دائمی غړی دی ، هر وخت په نړۍ کې فرهنګي او سیاسي اغیز لري، بشپړ نوم یې د متحدې لویې برتانیې پاچاهي او شمالي ایرلینډ دی.[۱۴۷]

غربي رسنۍ په دوامداره ډول وایي: چې برتانیه د اروپایي اتحادیې د پرېښودلو سره، د نورې نړۍ څخه ګوښه پاتې شوې ده باید دا حالت د سخت اقتصادي بحران سره پرتله شي.

امریکا ډاډمنه نه ده ، چې اروپا به په اروپایي اتحادیې کې همغږې وساتي،په همدې ډول د برتانیې څخه هم ډاډمنه نه ده، چې د هغه نظامي تړون څخه چې په ۱۹۴۱ میلادي کال کې یې په همدې اړه تعهدات کړي دي ترسره کړي.

ځکه چې د اتحادیې د رهبرانو د خبرو په خلاف،د انګلیستان وتل، د اروپایي اتحادیې څخه د انګلیستان د انزوا او ګوښه کېدلو سبب نه کېږي،بلکې د چین او روسیې سره په تازه ډول خپلې اړیکې تامین کولای شي.

امریکا او انګلیستان تعهد کړی وو، چې د اتحایې غړي به تشویقوي چې د ناټو بودجه د خپلو ناخالصو ملي تولیداتو تر دوه فیصده پورې پراخوي.

همدا رنګه د روسیې په سرحداتو کې د نظامي قوتونو ځای پرځای کول، د یاد تړون یوه برخه ده چې ناټو او اروپایي اتحادیه به په ګډ ډول نوموړي تعهدات سرته رسوي ،چې د یادو نظامي ځواکونو په تشکیل کې هلیکوپټرونه، جنګي بېړۍ او سپوږمکۍ شتون لري.

انګلیستان تر اوسه د اروپایي اتحادیې د ناټو د سازمان پنځلس فیصده دفاعي بودجه تمویل کوي چې د انګلیستان وتل د اروپایي اتحادیې څخه دا تعهدات د انګلیستان په مټ د اجرا وړ نه دي.

انګلیستان هیله مند دی، چې خپلې اړیکې له روسیې او چین سره پراخه کړي دا په داسې حال کې ده چې د امریکا سره اړیکې به کوم زیان نه ویني.[۱۴۸]

[۱۴۷] حسن مفیدی،احمدی،روابط انګلستان وامریکا،فرصت ها چالش ها و ابهام ها ، شبکه مطالعات سیاستګزاری عمومی،تهران،۱۳۹۵،ص،۱۸۰او ۱۸۹.

[۱۴۸] Natos secret armies,operation gladio and terrorism in western europe daneile ganser cass,london,۲۰۰٤.

د دوهم نړیوال جنګ مخکې او همدا رنګه مخکې له دې چې امریکا په دوهم نړیوال جنګ کې شامله شي، د دواړو هېوادونو ترمنځ یو اتحاد رامنځته شو او یو تړون یې لاسلیک کړ چې د اتلانتیک منشور په نامه یادیږي.[149]

یاد تړون د بحري تګ راتګ او د راکړې ورکړې ازادانه عمل وو، چې دغه اتحاد یې د پنځو سترګو (Five eyes) په هوکړې سره تحقق وموند.

دا اتحادیه یوه اډه ده چې د اولسو استخباراتي مرکزونو څخه جوړه او په پنځو مختلفو هېوادونو کې شتون درلود، چې هغه هېوادونه عبارت دي له امریکا، انګلیستان، استرلیا،کاناډا او نیوزیلنډ.

د ایډوارډ سنوډن رسوا شوې دوسیې په ډاګه کړه چې د ابشي لون شبکه په اوسني ډول یو فرامیلي اژانس دی، چې استخباراتي دنده ترسره کوي چې آن د تشکیل کوونکو هېوادونو د قوانینو ځواب هم نه شي ورکولای، په نتیجه کې یاده شبکه په دې قادره شوه چې د ځینو شخصیتونو او نهادونو په چارو کې جاسوسي وکړي لکه د ملل متحد عمومي منشي او یاد المان صدراعظم.

په ۱۹۸۴ میلادي کال کې یادې شبکې په یو شمېر اروپایي هېوادونو کې کودتاوې او سیاسي بې نظمۍ منځته راوړي دي.

په ۱۹۸۲ میلادي کال کې استرلیا،انګلیستان او امریکا یوه بله استخباراتي شبکه تشکیل کړه چې په مختلفو هېوادونو کې یې د انقلاب په بڼه کودتاګانې په لاره اچولې.

د اتلسمې پېړۍ په پای کې چې امریکا د انګلیستان څخه ازادي واخېسته وروسته یې په خپل منځ کې دوستي سره ټینګه کړه.

دواړو دولتونو لومړی د هسپانیه په خلاف په کیوبا کې او وروسته د چین د استعمار په خلاف سره متعهد شول.

[149] The atlantic charter,by franklin delano rosevelt,winston churchell,voltaire network ۱٤ aug,۱۹٤۱.

په ۱۹۸۲ کال کې یې د فرا اتلانتیک انجمن جوړ کړ، چې د زیارت کوونکو د ټولنې په نامه یاد شو چې مدیریت یې د انگلیستان په لاس کې وو.[۱۵۰]

د دواړو هېوادونو نږدیوالی او دوستي په اساسي ډول په ۱۹۱۷ میلادي کال کې طرحه شوه، چې په فلسطین کې د یوه یهودي دولت په جوړښت سره نوره هم ټینگه شوه.

امریکا د انکلیستان سره یوځای په جنگ کې داخله شوه چې دواړو هېوادونو گډ نظامي امکانات تاسیس کړل چې د هغې له جملې څخه اتوم بم هم وو.

خو د اروپا د گډ بازار په جوړولو کې واشنگټن برخه نه درلوده، دواړو دولتونو په ځینو جگړو کې له یو بل سره نظامي همکاري کوله لکه د سویس کانال په قضیه کې د برتانیې یرغل، چې د مصر په هېواد کې د فرانسې انگلیستان او اسرائیلو له خوا په گډه یرغل وشو خو د ملل متحد او امریکا له خوا یې ممانعت وشو.

یا د ارجنټاین په جنگ کې چې انگلیستان د جنگ یو اړخ وو، چې د فالکلېنډ د جنگ په نامه یادیده یا د امریکا یرغل د گریناډا په هېواد باندې چې انگلیستان هم ورسره په جگړه کې گډ شو.

د ۲۰۰۸ میلادي کال په پیل کې انگلیستان ، د بارک اوباما انتخاباتي اردو د یوه عراقي او برتانیایي د اسلحې سوداگر په منځگړیتوب، مالي تامین وکړ.

د بارک اوباما په لومړنی دور کې د جمهوررییس ډېر زیات همکاران په مخفي ډول د زیارت کوونکو د انجمن له ډلې څخه وو، خو جمهوررییس اوباما د وخت په تېریدو سره واټن ونېوه د دې سرېېره اوباما په اتلانتیک یرغل کې په ډیویډ کامرون چې د انگلیستان د وخت صدراعظم وو نېوکه وکړه ،چې یاد عمل د اوباما او انگلیستان د اړیکو په منځ کې لږ واټن پید کړ.

د اروپایي اتحادیې څخه د انگلیستان په وتلو سره او د بل اړخه د امریکا سره د لږ واټن په لرلو ،انگلیستان نه منزوي کېږي، بلکې بېرته د اروپا د گډ بازار د هېوادونو څخه گټه اخلي لکه څنگه

[۱۵۰] America great game,the cia secret arabiests and the shaping of the modern middle east,huge wilford,basic,books,۲۰۱۳.

چې چرچل هم د اروپا د متحده ایالاتو نظریه د دوهم نړیوال جنګ وروسته طرحه کړې وه موخه یې همدغه د اروپا د ګډ بازار د هېوادونو وحدت دی.

د اروپا ګډ بازار (Commom wealth) یو سازمان دی چې؛ د درې پنځوس هېوادونو څخه تشکیل شوی دی چې په سیاسي ډګر کې په اساسي ډول په انګلیستان پورې تړوا لري یاد هېوادونه په خپل منځ کې ،قوي برابري،د قانون حاکمیت، د دولت د مصحلت په مقابل کې د بشرحقوق په نظر کې نیسي.

خو بیا هم له خپلو غړیو هېوادونو غواړي چې خپل فعالیتونه په هره ساحه کې همغږي کړي،لکه د ورزش او تجارت په برخه کې.

دوهمه ملکه الیزابت چې د شپاړسو غړو هېوادونو ملکه ده، د ګډ بازار د هېوادونو په سر کې قرار لري چې یو غیر میراثي چوکۍ ده.

د لندن له نظره دا امریکا وه، چې خپلې مخصوصې اړیکې یې د خپلې بې ځایه لویې ښکارونې سره د یوه قطبي نړۍ د رامنځته کولو لپاره ځان ته زیان ورساوه،په یوازیتوب سره یې مالي او بهرنی سیاست مخ ته وړي دا په داسې حال کې ده چې نور متحده ایالات نظامي او اقتصادي نړیوال قدرت نه دی.

له دې وروسته د انګلیستان ملي ګټې حکم کوي چې خپلې ټولې هګۍ په یوه بستره کې ونه شاربي چې په پایله کې هغه ګډ مسایل به د واشنګټن سره ساتي او په ورته وخت کې به خپلې اړیکې په مستقیم ډول د شانګهای د سازمان له لارې د چین او روسیې سره تامین کوي.

په ځانګړي ډول کله چې انګلیستان د اروپایي اتحادیې څخه بهر شو،د شانګهای د همکاریو د سازمان دوه غړي هېوادونه چې په ګډ بازار کې یې غړیتوب درلود، په خپل تشکیل کې یې ومنل.

یاد هېوادونه عبارت له هند او پاکستان څخه، چې اوس د شانګهای د همکاریو په سازمان کې غړیتوب لري.

دوې نقطې د ذکر وړ دي، چې د انګلیستان وتل د اروپایي اتحادیې څخه د انګلیستان په بهرني سیاست باندې په ښکاره ډول کوم اغیز نه ښکاري دا ځکه چې د انګلیستان په بهرني سیاست کې ډېر عناصرشامل دي.

د بېلګې په ډول که د انګلیستان د کار ګر ګوند په سیاسي قدرت کې راشي ،د انګلیستان په بهرني سیاست کې به هرو مرو بدلونونه واردوي.

بل عنصر د انلګیستان په بهرني سیاست کې د امریکا سره اړیکې دي او هم په اروپا کې د امنیتي جیوپولیټک بدلونونه یادولای شو، چې د انګلیستان په خارجي سیاست باندې ژور اغیز لري.

په لنډ وخت کې د انګلیستان متحد ساتل هم د کورنیو ستونزو د مهمو عناصرو څخه شمېرل کېږي، پوهېږو چې په سکاټلینډ او شمالي ایرلینډ کې د مرکز څخه د تېښتې تحرکات او ذهنیت وجود لري چې د انګلیستان د مثبتې رایې ورکولو وروسته د اخراج تر سرحده رسېدلې ده.

**دوهم: د انګلیستان د اروپایي برخې د سیاست کمزروتیا:**

د انګلیستان بهرنی سیاست په وروستیو څو لسیزو کې درې اساسي بنسټه لري:

۱ـ اروپایي بنسټ.

۲ـ اتلانتیک بنسټ.

۳ـ نړیوال بنسټ.

داسې برېښي چې د انګلیستان د وتلو وروسته،د انګلیستان بهرنی اروپایي سیاست،کمزوری شوی وي چې په بهرني سیاست یې ډېر اغیز درلودلی دی.

یو اغېز یې د اتلانتیک د بنسټ ځواکمنتیا ده ،چې په بهرني سیاست کې هم ښکاره شوې ده.

په دې چارجوب انګلیستان له امریکا سره خپل بهرنی سیاست ځوکمن کوي، چې په همدې موخه د څو ټکو یادول اړین دي:

۱ـ د انګلیستان د وتلو زیان انګلیستان ته د یو ډیپلوماتیک پل په حیث چې د امریکا او اروپا په منځ کې یې د پل حیث درلود، اوس انګلیستان دا رول نه شي لوبولای نو ځکه یې اهمیت کم شوی دی.

۲ـ په دې حساب د امریکا او انګلیستان ترمنځ د پیوند اصلي خنډ د انګلیستان د سیاست کمزروتیا ده، چې د انګلیستان د وتلو سره یې په نصیب شوې ده.

یعنې د انګلیستان د سیاست کمزروتیا د اروپا په هکله چې انګلیسان یې ډېر کمزروی کړی خو د امریکا په وړاندې د انګلیستان د سیاست د ځواکمنتیا لامل شوې ده.

د انګلیستان د دولت جهان بیني د ټرمپ د دولت د ستراتیژیو سره په ټولو اړخونو کې برابروالی نه لري، د بېلګې په ډول د غربي اسیا د اړیکو په وړاندې د روسیې دریځ ، یا د چین سره د اړیکو په هکله، د انګلیستان او امریکا اختلاف موجود دی خو د ناټو په هکله بیا انګلیستان موافق سیاست لري چې غواړي ناټو ځواکمنه شي، ترڅو انګلیستان او امریکا د ناټو له لارې په اروپایي هېوادونو کې خپله مداخله جاري وساتي.

د انګلیستان د اروپایي سیاست د کمزروتیا نور اثار د انګلیستان نړیوال دیدلوری ځواکمن کړی دی.

انګلیسان په خپل نړیوال سیاست کې اعلان کړی دی، چې د ازادۍ سوداګرۍ د رهبر په حیث په نړیوالو چارو کې خپل رول ولوبوي یعنې د دې نقطې نظره انګلیستان په جیوپولیټک او جیو ایکانومیک ساحاتو کې د نفوذ په لټه کې دی.

خو دا ګونګتیا او ابهام ممکن پاتې شي چې ایا د ګډ بازار هېوادونه به په یویشتمه پېړۍ کې په اسانۍ د انګلیستان د نفوذ ساحه پاتې شي او که خیر؟

که څه هم د ۲۰ جی هېوادونو په غونډه کې د اروپایي اتحادیې او جاپان د سوداګرۍ د هوکړه لیک د لاسلیک شاهدان هم وو ، چې د نړیوالې اروپا په معنی کېدلای شي او د انګلیستان نظر او موقف ته یوه ضربه ده.

د جاپان او اروپايي اتحادیې سوداګریز هوکړه لیک څرګنده کړه چې دا اورپا وه چې د نړۍ د درېیم اقتصادي قدرت سره یې سوداګریز هوکړه لیک لاسلیک کړ نه انګلیستان.

د انګلیستان بله کړنلاره په بهرني سیاست کې د ودې په حال کې د هېوادونو سره مرسته کول دي چې د خصوصي شرکتونو له لارې خپلې مرستې ورته رسوي.

ترڅو چې د انګلیستان شرکتونو ته د کار کولو زمینه برابره شي، د انګلیستان د روغتیا او زده کړو په برخه کې یادې مرستې تر اوسه پورې دوام لري.

د سوداګرۍ او نظامي مرستو لړۍ یې د خلیج هېوادونو ته پراخه کړې ده ،چې د اسرائیلو دولت ته یې هم په یادو شویو ساحاتو کې مرسته رسیږي.

وروسته له دې چې انګلیستان د اروپايي اتحادیې څخه بهر شو پاملرنه یې د خلیج او د اسرائیلو هېوادونو ته ډېره شوه په ځانګړي ډول د پانګوالې،سوداګرۍ اواقتصادي اړیکې.

تر ټولو ډېر مهم یې دا دی چې د اسلحې سوداګري یې یادو هېوادونو ته دوام لري.

که څه هم د انګلیستان په اقتصادي وضعیت یې منفي اغیز لرلای دی، خو انګلیستان په ځانګړي ډول د خلیج هېوادونو ته  د اسلحې د صادرولو او سوداګریزو چارو په مټ د انګلیستان اقتصاد ته مثبته ګټه رسولې ده.

بله مهمه نقطه دا ده، چې د اروپايي اتحادیې کمزروتیا او په وړاندې یې د ناټو ځواکمنتیا او هم د اروپا اړین والی په ناټو باندې ډېرې مهمې نقطې دي چې د انګلیستان د وتلو سره په اروپا باندې یې یاد اغیز کړی دی.

**درېیم:ولې د انګلیستان بهرنی سیاست د مخفي او پټو لوبو په اساس دی؟**

یو دلیل یې دا کېدلای شي چې د انګلیس او د متحدینو رول یې په هېوادونو کې نظامي مداخله وګنړو چې د میلیونونو انسانانو د وژل کېدو سبب شوې ده.

د زوړ استعمار گر،د انگلیس امپراطوري، د انگلیس استعمار هغه اصطلاحات دي چې د نړۍ د خلکو لپاره ډېر بلد او اشنا دي، که چېرې د انگلیس دولت ته اوس یو نظر واچو،د ملکي او د سلطنتي کورنۍ پرته، په یاد هېواد کې د استعمار کومه نښه نه لیدل کېږي.

مارکرتیس د هېرو شویو په نامه یو کتاب یا ( فراموش شده گان) د انگلیس په مټ د بشرد حقوقو تر پښو لاندې کېدل د خپل کتاب تر چاپ او نشر وروسته وویل چې، د انگلیس دولت وروسته له ۱۹۴۵ میلادي کال په مستقیم یا غیر مستقیم ډول د ۸،٦ څخه تر ۱۳،۵ میلیونو انسانانو په وژنه کې لاس لري.

د انگلیس دولت خپل خلک په بېلابېلو چلونو د تاریخ څخه محروم او بې خبره ساتلي دي، څه وخت مخکې د انگلیس گارډن ورځپاڼې لیکلی وو چې؛ انگلیسي زده کړیالان او زده کوونکي په ښوونځي کې د انگلیس د امپراطورۍ په هکله هیڅ مطلب هم نه شي زده کولای او نه هم ورته تدریس کېږي، دا په داسې حال کې ده چې د انگلیس یو مشهوره او پراخه امپراطوري وه چې لمر په کې غروب نه کاوه.

د نړۍ د ۲۲هېوادونو څخه په استثنی، انگلیس نور په ټولو هېوادونو کې استعمار ظلم او استثمار کړی دی او بله امپراطوري یې د ځان په څېر د امریکا په نامه تاسیس کړې ده.

انگلیستان په خپل بهرني سیاست کې په ځانگړي ډول د نوي لسېزې وروسته د سختو گړکیچونو سره مخامخ دی.

د یوې خوا د خپل پلرني ټاټوبي په نظر کې نیولو سره چې اروپا ده او د بله اړخه د امریکا سره ستراتیژیکې اړیکې چې د ملي گټو د تامین لپاره یې په بین المللي ډگر کې ورته اهمیت لري.

د انگلیستان سیاست،یاد هېواد د یوې داسې دوه لارې پر سر راوستلی دی چې په ډېرو مواردو کې انتخاب ورته ستونزمن دی.

یو دلیل یې په اروپا کې د انگلیس جیوپولټیک موقعیت دی او د بله اړخه یې فرهنگي، نژادي گډې ځانگړتیاوې د انگلو ساکسون د هېواد یعنې امریکا سره لري چې د اتلانتیک بلې خوا ته موقعیت لري او د فرا اتلانتیک په نامه یادیږي.

ملي بينڼ چې د انګليستان د وخت د بهرنيو چارو وزير وو، په دې عقيده دی چې؛ د برتانيې د بهرني سياست موخې بايد د هغو بدلونونوسر ه متناسب وې چې د نړيوالو قدرتونو د توازن څخه حاصل کېږي او د نړيوالو ګواښونو د لرې کولو لپاره د صنعتي هېوادنو او مخ پر وده هېوادونو ترمنځ همکاري ده.

ملي بېنڼ عقيده لري چې؛ انګليستان د خپلو موخو د لاس ته راوړلو په منظور د نرم او سخت قدرت څخه ګټې اخېستنې ته اړ دی.

ياد هېواد د هېوادونو په منځ کې د پولو په غلط تعين سره د تل لپاره د هېوادونو سرنوشت خراب کړی دی لکه د پاکستان او هندوستان په منځ کې د کشمېر موضوع،د منځني ختيځ هېوادونه چې د سايکس پيکو د هوکړه ليک په اساس وېشل شوي دي،د نايجريا او جنوبي افريقا په منځ کې کړکيچ،د ډيورنډ د کرښې مشکل.

د انګليستان په ښوونځيو کې د لومړي او دوهم نړيوال جنګ ،د تيو دور سلسله ، پخوانی مصر ، د روم امپراطوري،صنعتي انقلاب او سوړ جنګ تدريس کېږي،خو خپلو زده کوونکو ته د استعمار او مستعمرې په هکله هيڅ معلومات نه ورکوي.

د انګليس د ښوونځيو فارغ شوي زده کوونکي د خپل هېواد د پخواني حقيقي تاريخ په هکله هيڅ معلومات نه لري.

د تاريخ د رېشتې زده کړيالانو ته يوازې د افريقا د استقلال په هکله موضوعات تدريس کېږي او بس.

دا ځکه چې په افريقايي هېوادونو کې د فرانسې د هېواد مداخلې هر وخت شتون درلود، نو ځکه يې خپلو زده کوونکو ته په نصاب کې شامله کړې ده،

يوازې د جورج مک ډوناله فريزر د رومان په مطالعه کولو سره کولای شي چې د ځينو جنګونو په مورد معلومات په لاس راوړي.

د بلېګې په ډول د انګليس او افغانستان لومړنی جنګ(۱۸۳۹ـ۱۸۴۲)، په هند کې د سيکانو او انګليس جګړه(۱۸۴۵ـ۱۸۴٦)، د هند د استقلال غوښتونکو د غورځنګ جګړه(۱۸۵۷)،په چين

باندې د فرانسې او انګلیس ګډه حمله چې د تاریاکو دوهمه جګړه وه (۱۸۵٦ـ۱۸٦۰)، او په حبشه باندې یرغل ( ۱۸٦۸) .

که څه هم د فریزر رومانونه د انګلیس د استعمار سره تړاو نه لري، خو لوستونکي ته دا جوتوي چې د رومان په اصلي پټ شوي هدف پوی شي او د انګلیس د نولسمې پیړۍ په جنایاتو خبر شي.

په اخرو لسیزو کې پرته له فرایزر او څو محدودو لیکوالانو نور هیڅ لیکوال د انګلیس په امپراطورۍ انتقادي لیکنې نه دي کړي، داسې معلومیږي چې د انګلیس پخواني مستعمرات او امپراطورۍ د نړۍ له حافظې څخه وتلي وي.

یوازې هغه ځای چې په لندن کې د حقیقي تاریخي اثارو له کتابونو سره اشنا کیدلای شي هغه د لندن د جنګ سلطنتي موزیم دی.

بله مهمه خبره دا ده چې د نړیوالو اړیکو په هکله په انګلستان کې د بهرني سیاست په مورد په تېر او معاصر وخت کې بهرنی سیاست هیڅ تشریح شوی نه دی او نه هم په ښوونځیو کې تدریس کیږي.

داسې معلومیږي چې لویې برتانیې په نړیوالو کشالو کې هیڅ رول نه درلود ، نه د جی ۸ ګروپ غړی ده او نه هم د ملل متحد د امنیت شورا دائمي عړیتوب لري،داسې فکر کیږي چې انګلیس تل خپل ژوند په انزوا کې تېر کړی دی.

بله د تعجب وړ موضوع دا ده چې، د امریکا د بهرني سیاست په هکله ډېرې انتقادي مقالې مصاحبې،تالیفات او نورې لیکنې لیکل شوي او نشر شوي دي.

خو د انګلیس د بهرني سیاست په هکله هیڅ هم نه نشر کیږي، یوازې د امریکا د بهرني سیاست په هکله انتقادي نشرات نه بلکې د اروپایي هېوادونو په مورد هم انتقادي تالیفات او نشرات لري ،داسې معلومېږي چې د انګلیس د بهرنیو چارو د وزار ت په هکله نشرات جواز ونه لري.

د انګلیس د جنګ سلطنتي موزیم د عبرت لپاره نه دی، بلکې یوه وسیله ده چې جنګ ته یې ښه بڼه ورکړې او د انګلیس د قدرت او برم ښکارندوی دی، دا په داسې حال کې ده چې د انګلیس د بهرنیو چارو وزارت بشپړ نوم د بهرنیو چارو وزارت او مشترک المنافع دی، چې په هغه اندازه د

امریکا او اروپایي هېوادونو په هکله نشرات لري باید په همغه اندازه د اتګلیستان په هکله یې هم معلومات نشر کړي وای.

د انګلیستان لپاره د تحقیق په ساحه کې هم د بهرني سیاست په مورد ستونزې او خنډونه شتون لري، چې د انګلیس د خلکو د ناپوهۍ یو اساسي عامل د خپلې تاریخې سابقې څخه همدا دلیل هم دی، خو دا چې د انګلیس خلک د نړۍ مختلفو هېوادونو ته سفر وکړي او د انګلیس د منفي استعمارې امپراطورۍ له ظلمونه څخه خبر شي.

یو انګلیس ترڅو چې د منځني ختیځ هېوادونو ته سفر ونه کړي او په دې هکله یې مطالعه بشپړ نه کړي ډېره ناممکنه ده څو پوی شي چې د قطر، بحرین، متحده عربي امارات په ۱۹۷۱ میلادي کال او کویټ په ۱۹۶۱ میلادي کال کې د انګلیس څخه ازادي او استقلال حاصل کړی دی.

ممکن خبر اوسي چې د انګلیس نظامي اډه په قبرس کې شتون لري، خو دا چې قبرس په ۱۹۶۰ میلادي کال کې د انګلیس څخه ازادي اخېستې ده هیڅ خبر نه دي.

همدا رنګه یوګاندا ،تانزانیا او هانګ کانګ هېوادونه چې په ۱۹۶۲ م ،۱۹۶۳ م او ۱۹۹۷ میلادي کلونو کې یې ازادي اخېستې ده، یو انګلیس هیڅ خبر نه لري که څه هم ډېرې پخوانۍ پېښې نه دي.

آن دا چې زده کوونکي او زده کړیالان یې د نقشې په مخ د انګلیستان پخواني مستعمرات نه شي په نښه کولای او کاملا بې خبره یې ساتلی دي، دا ځکه چې د خپل تاریخ په لوستلو یې له نوي نسل څخه شرمیږي.

ځکه همدغه بهرنی استعماري او مستعمراتي سیاست وو چې د میلیونونو انسانانو د مرګ ژوبلې سبب شوی وو.

کرتیس په خپل کتاب کې چې د محرمو اسنادو څخه یې په کې ګټه اخیستې او یوازې یوبل شخص یادو اسنادو ته لاس رسی درلودلای دی،د انګلیس د بهرني سیاست څخه پرده پورته کړې ده چې د روسیې ، چیچن،اسرائیل،یوګاندا،شیلي،ویتنام،نایجریا او منځني ختیځ په هکله یې لیکلي دي.

نوموړي لیکوال د خپل یو کتاب(چټل جنګ )په شرحه کې لیکلي دي چې؛ انګلیس په ۱۹٦۰ میلادي کال په شمالي یمن کې جنګ پیل کړ چې لس کاله یې دوام وکړ او له امله یې دوه سوه زره تنو خپل ژوند له لاسه ورکړ.

په ۱۹۵۷ میلادي کال د عمان په پېښو کې د انګلیس مداخله ، د انګلیس ملاتړ د شارجې د کودتا څخه په ۱۹٦۵ میلادي کال کې ،ابوظبی په ۱۹٦٦ میلادي کال او په ۱۹۷۰ میلادي کال په عمان کې د انګلیستان نورې پېښې دي چې ډېره لږه اشاره ورته شوې ده.

لندن د صدام حسین په هغه یرغل کې لاس درلود، چې کیمیاوي اسلحه یې د عراقي کردانو په خلاف وکاروله.

تروریزم د ګواښ په ستره کچه ښودل د انګلیس لپاره سیاسي او اقتصادي موخې لري،په همدې دلیل ده چې د برتانیې خلکو ته د دولت له خوا د تېرو پنځوسو کلونو له پېښو سره لازمه اشنایي نه ورکول کېږي.

د تاریخي جنایتونو او د انګلیس د سیاست څخه د خلکو بې خبره ساتل ، د انګلیس د حکومت لپاره طلایي چانس دی چې هر څه یې زړه غواړي د ملت څخه یې په پټه ترسره کړي.

**څلورم:د یو او بل په وړاندې د انګلیستان او امریکې بهرنی سیاست:**

د انګلیستان او امریکې نظامي امنیتي اړیکې د یوې پېړۍ راهیسې دوام لري، چې د دوهم نړیوال جنګ،سوړ جنګ،د افغانستان،عراق او ایران په موضوعاتو کې د انګلیستان پالیسي د امریکا د دریځ په اړخ وه.

د یولسم سپټمبر راوروسته چې انګلیس خپل قدرت دفرا اتلانتیک یا امریکا په تعهد کې لېده په همدې دلیل د امریکا سره د خاصې اړیکې په نامه یادې شوي دي.

کریستوفر هیل استدلال کوي چې؛ د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د انګلیستان امنیتي بهرنی سیاست د چرچل د قدرت په درې حلقو ولاړ دی.

د چرچل دا نظريه چې متمرکزه په درې حوزو ده (مشترک المنافع هېوادونه،امريکا او اروپايي هېوادونه)د انگليستان دستر قدرت مقام ته د رسېدلو په منظور او په نړيوال نظام کې د يو ټاکوونکي او ابر قدرت په حيث دا نظريه مطرح شوې ده.

د کرستوفر په نظر د انگليستان دا سياست په افغانستان کې په مداخله باندې منجر شو او د يوه ټا کوونکي هېواد په حيث چې بايد داسې موقف ته ورسيږي، انگليستان او امريکا له يو بل سره مخصوصې اړيکې ټينگې کړي دي.

دا په دې معنی ده چې، د امريکا سره اړيکې او همکاري په هستوي، امنيتي، دفاعي، او استخباراتي ډگرونو کې محسوس ده، د انگليستان له اړخه ورته د يو اصل په سترگه کتل کېږي.

جيمز سوپر لينگ د داسې همکاريو د ښکاره کولو په هکله وايي چې انگليستان د امپراطورۍ د وضعيت په بايللو سره نړۍ ته لاس رسی لږ شوی،اوس ځان د نړۍ په نظم ساتلو کې مکلف گڼي تر څو مخکيني قدرت ته ځان ورسوي.

اوليور دادو عقيده لري چې؛ د چرچل څخه راوروسته(انتوني ايډن،هارولډ،مک ميلان،ټوني بلير،گوردن براون)ټولو د قدرت د حلقې نظر درلود، هغه داسې چې هر صدراعظم په خپل نوبت د دندې دتصدۍ په دوران کې د انگليستان په بهرني سياست کې داسې ځان ښکاره کاوه چې انگليستان يو نړيوال ستر قدرت دی چې د افغانستان ماموريت د انگليستان لپاره ډېر اوږد او بد ماموريت دی خو د نړيوال ستر قدرت د پلټنې يو تلاش دی.

د همدې اړيکې او همکارۍ په بنسټ وه، چې د امريکا او انگليستان مداخله په افغانستان کې د نړيوال تروريزم سره د مبارزې او د هستوي سلاح د زياتوالي سره سيالي وه،يو اړين امر وڅو مداخله وکړي.

اتحاد يو عکس العمل دی چې د ځواکونو د توازن په وړاندې د موجوده وضعيت د ساتنې لپاره صورت نيسي.

جورج ليسک اتحاد د دوو حکومتونو اړيکه د دريېم حکومت د گواښ په وړاندې چې ځواکمن دی ، تعريف کړی ده.

اول هولستیو ټرنیس هوکمن او جان سولیډان د اتحاد بل تعریف کړی دی(د دوه یاڅو ملتونو او حکومتونو توافق دی چې د ملي امنیت د موضوعاتو په هکله همکاري کوي)

په همدې منظور انګلیستان د امریکا سره د مخصوصې اړیکې په درلودلو سره چې انګلیستان ته اولویت لري په خپل بهرني سیاست کې ورته لومړیتوب ورکړی دی،د امریکا سره د نړیوالو ګواښونو په مقابل همکاري ده چې ایساف او وروسته د ناټو په چوکاټ کې د امریکا سره یې همکارۍ ته دوام ورکړی دی.

د یولسم سپټمبر پېښې چې د امریکا ستر طاقت ته یې د یوه قطبي ستر ځواک یا هژموني په حیث زیان ورساوه دا یوه مناسبه بهانه جوړه شوه چې خپل اتحاد نړۍ ته ور ښکار کړي چې په داخل کې انګلیس د خپلو اقداماتو د قانوني ښکاره کولو په منظور د تروریزم سره مبارزه، جنایت او د امنیت قانون یې تصویب کړ.

ترڅو خپلو اقداماتو ته قانوني بڼه ورکړي چې نوموړی قانون یې د سپټمبر له پېښې دوه میاشتې وروسته تصویب کړ.

**سمال او سنګر درې ډوله اتحاد په دې هکله په لاندې ډول شرحه کړی دی.**

۱ـ په عدم تجاوز باندې د بې طرفۍ توافق:

دولتونه متعهد کېږي چې د یوه دولت د یرغل په صورت کې ، نور ګډ هېوادونه بې طرفه پاتې کېږي.

**۲ـ د ښو اړیکو قرارداد:**

که چېرې یو د شرکانو څخه تر یرغل لاندې راشي، یوازې کولای شي چې د نورو شریکانو د مشورې او همکارۍ څخه استفاده وکړي.

**۳ـ دفاعي قرار داد:**

دولتونه مکلف دي چې، د یرغل په صورت کې ټول شریک هېوادونه باید نظامي مداخله وکړي.

د ناټو د تړون پنځمه ماده ده چې؛ په **۱۹۴۹** میلادي کال کې تصویب شوې ده ،د ناټو غړو هېوادونو توافق کړی چې د اروپا یا شمالي امریکا په یوه غړي هېواد یرغل ،داسې معنی لری چې د ناټو په ټولو غړو هېوادونو یرغل شوی وي.

په کوزوو او افغانستان کې چې د اروپا بهر هېوادونه دي، پنځمه ماده پلي شوې ده چې د انګلیستان شراکت په افغانستان کې د اجبار په حد تلقي کېدلای شي.

په افغانستان کې د ناټو د هېوادونو شمېر او د نظامي پرسونل تعداد نظر هر هېواد ته توپير لري.

وروسته له امريکا انګليستان ډېر شمېر سرتېري افغانستان ته رالېږلي دي چې؛ د افغانستان په جنوب کې ځای پرځای شوي دي ،لګښت يې له ۲۰۰۱ تر ۲۰۰۹ ميلادي کال پورې تر ۹،۹ ميليارده پونډو ته رسېدلی دی چې د انګلستان په دولت پورې اړه لري.

خو دا لګښت تر ۲۰۱۳ ميلادی کال پورې تر ۴۰ ميلياردو پونډو پورې رسېدلی دی.

پورتنی شمېر پروفيسور چلمرز چې د برتانيه د سلطنتي خدماتو غړی دی،ورکول شوی دی.

په افغانستان کې د انګليستان لګښت په ۲۰۱۰ او ۲۰۰۹ ميلادي کال کې تر شپږ ميلياردو ډالرو ورسېده ،دا په داسې حال کې ده، چې د فرانسې لګښت په ياد کال کې پنځه سوه ميليونه ډالر،د جرمني لګښت اته سوه ميليونه ډالر او ايټاليې درې سوه پنځوس ميليونه ډالر مصرف کړي دي.

فرانک لېډ ويج د پانګوالي(په وينه کې پانګواله)د کتاب ليکوال په مرکه کې په ۲۰۱۳ ميلادي کال د ګارډان ورځپاڼې ته ويلي چې؛ د انګليستان لګښت په اقل حد کې اووه دېرش ميليارد پونډو ته رسېدلی او دا به تر ۲۰۲۰ ميلادي کال پورې تر څلوېښت ميليارده پونډو ورسيږي.

دا چې د انګليستان او امريکا مخصوصه اړيکه د طالبانو په تسليمېدو او د افغانستان د جنګ په ختمېدلو کې تراوسه پاتې راغلې ده.

دا مخصوصه اړيکه  د ناکامۍ په مفهوم منل کېدای شي، چې کېدلای شي په دريو سطحو کې ارزيابي شي:

**۱ـ د جنګ پراخوالی او وسعت:**

دا جنګ د وسعت او پراختيا له نظره منتشر او پراخ شو چې د طالبانو ډېر دوامداره مقاومت سبب شوی دی چې د جيوپوليتيک موقعيت له نظره د افغانستان جغرافيايي موقعيت د طالبانو د ګوريلايي جنګ په ګټه دی.

د انګليس د اردو ځيني جنرالان خپله اعتراف کوي، چې د افغانستان په جنګ کې کاميابي اوس ناممکنه ده چې دا نظريه د جنرال ګارلي ټون سمت له خوا وړاندې شوې ده.

یو الماني جنرال په ۲۰۱۳ میلادي کال کې وویل: چې ناټو په افغانستان کې ماتې خوړلې او یاده موضوع د شپیګل ورځپاڼې په المان کې نشر کړې هم ده.

د ناټو ماتې او ناکامي یوازې د طالبانو په سخت او دوامداره مقاومت پورې اړه نه لري،بلکې د هغو ډلو او ګروپونو چې د طالبانو سره همکاري او خواخوږي لري ، یو غیر قابل تحمل دریځ لري،سپینه ماڼۍ هم په همدغه نظر ده چې؛ په خپلو ګزارشونو کې یې ویلي دي، چې د افغانستان جنګ په کامیابۍ نه تمامیږي.

خو دا چې د غیر ایډیالوژیکو طالبانو سره خبرې اترې وشي او د القاعدې د ملاتړ څخه لاس واخلي او قانون اساسي ومني.

د انګلیستان پارلمان هم د طالبانو په منځ کې د تفکیک او وېش خبره یوه د حل لاره بللې ده، چې یوه ډله یې ایډیالوژیک طالبان دي او بله ډله یې د اقتصادي ستونزو په اساس د طالبانو سره یوځای شوي دي.

د غرب دا پالیسې هم ناکامه ده، دا ځکه چې افغانستان د تاریخ په اوږدو کې بهرنی استعمار نه دی منلی.

په ۲۰۱۲ میلادي کال کې نیویارک ټایمز ورځپاڼې لیکلي وو، چې امریکا د طالبانو سره د سولې په هکله نا امیده شوي ده، امریکایي نظامیانو د کامیابۍ ، امید او هیله له لاسه ورکړې ده او د یاد ګروپ سره سیاسي توافق ممکن نه دی.

د بله اړخه د افغانستان څخه د غرب وتل طالبانو او تروریستانو ته د تسلیمۍ په معنی ده.

**۲ـ د بهرنیو او کورنیو ځواکونو د همغږۍ نه شتون:**

په لومړۍ درجه کې د ناټو د غړو هېوادونو په منځ کې همغږي لږ ده، او په دوهمه درجه د افغانستان د حکومت د نظامي ځواکونو او ناټو په منځ کې د عملیاتو د څرنګوالي په هکله همغږي شتون نه لري.

د ناټو ځینو غړو هېوادونو د نشه یي توکو په ضد مبارزه او هوایي عملیاتو ته زور ورکول یوه د حل لاره بللې ده.

خو د انګلیستان ځینې نورو پلټوونکو بیا د امریکا د هوایي عملیاتو په پایله کې د ملکي تلفاتو لوړه کچه د جنګ د دوام عوامل بللي دي.

د انګلیستان د پارلمان دفاعي کمېسیون نظر ورکړی، چې د جنګ لپاره ټاکلې ستراتیژي شتون لري، په پولیسو کې اصلاحات شتون نه لري، امریکا غواړي چې پولیس مسلح کړي او یو نظامي ځواک ترې جوړ کړي.

خو د جرمني هېواد د پولیسو څخه یو مدني نهاد جوړول غواړي، امریکا د قوتونو په کمیت تاکید کوي ،خو جرمني د کیفیت په برخه کې کار کول غواړي.

د جنګ د پراخوالي او د ځواکونو کمزروتیا یوې خوا ته او مالي بحران درېیم عامل دی چې د جنګ دوام یې د طالبانو په ګټه تمام کړی دی.

د افغانستان شمال لور ته د طالبانو انتقال د حامد کرزي له خوا هغه وخت مطرح شوه چې په ۲۰۰۹ میلادي کال په ټاکنو کې د حامد کرزي او امریکا په منځ کې اختلاف پیدا شو.

کرزي تور پورې کړ چې ؛امریکا غواړي حامد کرزی ناکام کړي چې په پای کې دا عمل د غرب او د افغانستان د دولت ترمنځ د همغږۍ د نه شتون لامل شو.

**۳ـ د بودجې مشکلات او مالي بحران:**

د انګلیس په دفاعي بودجه کې کسر بل عامل شو، چې د امریکا او انګلیس په منځ کې د اختلاف ټکی پیدا کړي.

انګلیستان د بهرنیو چارو وزیر وویل چې د لسو څخه تر شل فیصده دفاعي بودجه د کسر سره مخامخ ده،نور موږ ته کومک کول ستونزمن کار دی.

ویلیم فاکس بیا د انګلیس د بهرنیو چارو وزیر د بودجې یاد کسر د امریکا د وخت د دفاع وزیر ته ښکار کړ ،ویې ویل: چې په هیڅ ډول په نظامي عملیاتو کې ګډون نه شي کولای د ناټو عمومي منشي هم د انګلیستان  د دې اقدام سره ناخوښي وښوده.

د ناټو عمومي منشي راس موسن وویل: چې د انګلیستان دا اقدام، نه یوازې د افغانستان د جنګ د کامیابۍ په هکله بلکې د فرا اتلانتیک په اړیکو هم منفي اغیز لرلای شي.

د انګلیستان د وخت صدراعظم ګولډن براون، د پارلمان له خوا ترانتقاد لاندې راغې، چې ولې یې د افغانستان د جنګ لپاره هلیکوپټرونه او نور تجهیزات بند کړي دي؟

په ۲۰۱۳ میلادي کال کې سټنلی مک کریسټل د امریکایي ځواکونو ستر قوماندان د افغانستان په مورد د انګلیستان د بودجې د کسر په هکله انتقاد وکړ، چې دا عمل د دواړو هېوادنو په مخصوصو اړیکو منفي غیز لري.

# اتم څپرکی

## د روسيې بهرني سياست

د شوروي اتحاد د پاشل کېدو او سقوط سره د منځنۍ اسيا پنځلس هېوادونه ازاد شول او د شرقي اروپا جمهوريتونه په مستقل ډول منځته راغلل،له دې جملې څخه د روسيې فدراسيون يوازينی نړيوال قدرت دی چې ۷٦،۲ فيصده د پخواني شوروي خاوره او د شوروي اتحاد نيمايي نفوس د روسيې په فدراسيون کې قرار لري.

نوي فيصده نفت،اتيا فيصده طبعي ګاز،اويا فيصده طبيعي سرچينې او طلا چې په پخواني شوروي اتحاد پورې يې اړه درلوده اوس په روسيې پورې مربوط دي.[۱۵۱]

د ۱۹۹۰ ميلادي کال راهېسې روسيه غواړي چې بيا له سره يو نړيوال ځواک شي، ولاد مېر پوتين،بوريس يلسين او ديمتري مدوديف درې واړو په بهرني سياست کې د څو اړخو اصولو څخه ګټه اخېستې ده، ترڅو خپلې ملي ګټې تامين او ملي موخې په لاس راوړي.

د شوروي اتحاد تر سقوط او پاشنې وروسته،د حکومت مطلوب موډل يې ليبرال ډيمکراسي وه چې؛ د بوريس يلسين په دوره کې پياده شوې وه او دوه کړنلارېي په ملي ستراتيژۍ کې نغښتې وې چې عبارت دي له:

الف ـ د روسيې د اقتصادي ودې په منظور بين المللي اقتصادي نهادونو ته په درنښت کتل او باور پرې کول.

ب ـ د بهرني سياست په هکله د غرب د پاليسيو سره همغږي او باور ورباندې کول.

پورتنۍ ستراتيژي د بورېس يلسن د دورې تر پايه دوام وکړ،روسان نااميده وو خو بيا يې هم د مجبوريت له مخې غرب ته د ښه نيت او نيکو مناسباتو او اړيکو هيله درلوده او د پخواني کمونيستي سياست کينه يې په زړونو کې نه درلوده.

---

[۱۵۱] کولايي،الهه وعلى رضا نوري،عملگرايى پوتين وتغير در سياست خارجى روسيه،فصلنامه سياست،دوره چهل،شماره دو،۱۳۸۹،ص ، ۲۰۹ـ۲۲۸.

روسانو د غرب د ډیموکراسي پلوي هېوادونه خپل طبیعي متحدین بلل او د روسیې لپاره یې اوسنی نړیوال نظام هیڅ ګواښ او خطر نه باله.

وروسته د روسیې په بهرني سیاست کې بدلون وارد شو چې باید ناټو د شرق د هېوادونو لوري ته نفوذ ونه کړی، د کوژو او عراق په هکله یې د امریکا سره متقابل موقف ونېوه.

د یویشتمې پېړۍ په پیل کې دوو سترو پېښو د روسیې او غرب او هم د روسیې او په خانګړي ډول د امریکا اړیکې کړکیچنې کړې،لومړۍ پېښه د ولاد مېرپوتین راتګ وو چې د روسیې په بهرني سیاست کې یې ځای خپل کړ.

دوهمه پېښه د سپټمبر یولسمه وه چې؛ بین المللي نظم یې په بشپړ ډول بدل کړ، وروستۍ پېښه د روسیې او امریکا د اړیکو لپاره یوه ښه زمینه وه روسیې د امریکا نظامي اډو ته پرته له هر ډول تشویش د منځنۍ اسیا په هېوادونو کې اجازه ورکړه ترڅو د تروریزم په وړاندې دواړه هېوادونه ګډه مبارزه وکړي.[۱۵۲]

**لومړی د روسیې بهرني سیاست په څلورو دورو کې مطالعه کېږي.**

**الف ـ له ۱۹۹۲ـ ۱۹۹۴م کال:**

روسیه د غرب سره په خپل بهرني سیاست کې نږدې شوه د ختیځې اروپا هېوادونو سره یې د ناټو د پیمان د یوځای کېدلو په هکله هیڅ مخالفت ونښود او د بوزنیا د کړکیچ په هکله یې د غرب سره ډېره همکاري وکړه.

**ب ـ له ۱۹۹۴ـ۲۰۰۰ میلادی کال پورې :**

دروسیې بهرني سیاست لږ کړکیچ پیدا کړ له یوې خوا روسیې د غرب سره همکارۍ او مرستې ته دوام ورکړ ،له ناټو سره یې د ګډې پانګوالې موافقه لاسلیک کړه او له بل اړخه روسیه د غرب د قواو د توازن د خرابولو په لټه کې وه،د بیلګې په ډول د بالکان د قضیې ویټو کول د روسې له خوا یادولای شو.

[۱۵۲] واعظي،محمود،الگوی رفتار امریکا وروسیه در فرایند تغیرات سیاسی در جمهوری های شوروی سابق،معاونیت پژوهشهای سیاسي،مرکزتحقیقات ستراتیژیک،مجموعه تشخیص مصلحت نظام،۱۳۸٦،ص،٦.

**ج ـ له ۲۰۰۰ـ ۲۰۰۴ میلادي کال پورې:**

روسیې د غرب سره پراخه همکارۍ ته دوام ورکړ چې د یولسم سپټمبر په پېښه کې د مسکو همکاري ښه منعکسه شوه.

**د ـ د ۲۰۰۴ـ ۲۰۰۷ میلادي کال پورې:**

د روسیې او غرب په منځ کې مخالفت او کړکیچ واضح ښکاره شو چې؛ بېلګه یې د ناټو سره د اوکراین او ګرجستان دیو ځای کېدولو موضوع وه .

روسیې کلک مخالفت ښکاره کړ او همدا رنګه په اروپا کې د توغندیو د پرمختګ طرحه وه چې روسیې د غرب د تصمیم سره مخالفت څرګند کړ.

په لنډ ډول ویلای شو چې؛ په لومړۍ دوره کې د ایډیالیزم تفکر،په دوهمه دوره کې د جیوپولیټک واقعیت لېدنه،په درېیمه دوره کې د جیو ایکانومیک د واقعیت د لېدنې تفکر او په څلورمه دوره کې د جیوسټراټیژیک فرهنګي بهرنۍ سیاست په روسیه کې حاکم وو.

**دوهم: د روسیې د بهرني سیاست په وړاندې اغېزنانک عوامل:**

د جیمز روزنا د لید لوري پر بنسټ، د روسیې په بهرني سیاست کې ډېر مهم متغیرونه په لاندې ډول دي:

**۱ ـ شخصي یا فردي متغیر:**

د روسیې د جمهور رییس ځینې ځانګړتیاوې او خصوصیات باید مطالعه شي لکه ارزښتونه،تجربې،روحیات ،روانشناسي اوشخصیت،ځکه جمهور رییس د روسیې په سیاسي سیستم کې د بهرني سیاست په هکله عمده او غوځ تصمیم نیونکی شخص دی.

د روسیې درې جمهوررییسان چې تر اوسه ټاکل شوي دي(بوریس یلسین،ولاد مېرپوتین،دیمتري مدودیف )د شخصي متغیر د مطالعې لپاره باید د جمهور رییس ځانګړتیاوې او خصوصیات مطالعه کړای شي ،چې اوس د درې جمهورو رییسانو له ډلې یوازې د ولاد مېر پوتین لنډ خصوصیات معرفي کوو.

ولاد مېر پوتین په ۱۹۵۲ میلادي کال د اکتوبر په ۷ په سن پېټرز برګ یا اوسني لینن ګراد کې زېږېدلی دی.

په ۱۹۷۵میلادي کال کې د حقوقو له پوهنځي څخه فارغ شوی دی او وروسته یې په اقتصاد کې د دکتورا سند ترلاسه کړ .

وروسته له هغه د کی جی بی له خوا استخدام شو،له ۱۹۸۵ بیا تر ۱۹۹۰ م کال پورې په جرمني هېواد کې په ماموریت بوخت ووترڅو چې په مختلفو اداراتو کې یې ماموریت ترسره کړ.

په ۱۹۹۹ میلادي کال د بوریس یلسین د استعفا وروسته د لنډ مهاله جمهور رییس په صفت او په ۲۰۰۰ میلادي کال کې د ټاکنو له لارې په رسمي ډول جمهور رییس وټاکل شو،چې دوه دورې جمهور رییس پاتې شوی دی.

د امریکا د یو اړخه سیاست پر وړاندې پوتین مقاومت وکړ د امریکا د توغندیو د سیستم د ځآی پر ځای کولو سره یې چې په چیک او پولینډ هېوادونو کې تر پلان لاندې وو،سخت مخالفت وښود.

ولاد مېر پوتین یو مثبت، رېښتونې دید لوری درلود ،خو په روسیې کې د نظامي وړتیا کموالی، اقتصادي ضعف او د روسیې ټیټ سیاسي موقف چې په بین المللي ډګر کې یې خپل کړی و،موجود وو.

د پوټین یوه ځانګړیتا دا ده چې؛ د روسیې د راتلوونکي او مخکینۍ سابقې په هکله ټاکلی لید لوری لري ،دا چې روسیه د کومه راغلئ او ولئ؟ کورني او بهرني سیاست ته یې پاملرنه کول بله مشخصه ده.[۱۵۳]

یوتین خپل ټول متحدین او طرفداران په حکومتي موقف کې ساتلي دي ،له هغې جملې څخه دیمتري مدودیف دی چې یوه دوره جمهورریېس هم پاتې شو.

د مدودیف سیاست د پوټین سره لږ توپیر هم لري څکه نوموړی د فقر،کورني ارزښتونو،سنت ،کلتور او اخلاق باندې متمرکز دی.

همدا رنګه ډېر وخت د دولت په ستراتیژي کې د اقتصاد په برخه کې د پوټین نظریه او د سیاست په برخه کې د د یمتري مدودیف نظریات متبارز دي.

د د یمتري مدودیف اهداف په لاندې څلورو انګلیسي (I)حروف کې خلاصه کېږي

[۱۵۳] The rebuildinj,of,greater,rusia,۲۰۰۸,p.۳۷

الف ـ تجدد یا نوښت یا Innovation.

ب ـ بنیاد،نهاد،موسسات یا Institutes.

ج - زېر بنا یا Infrastructure.

هـ ـ پانګوالی یا Investment.

**۲ ـ د نقش متغیر :**[١٥٤]

د روسیې په سیاسي فرهنګ کې ډېر وخت د شخص یا د فرد لومړیتوب نسبت ونهاد ته، هر وخت ښکاره وه چې د پوتین په هکله همدا سنت ډېر واضح دی چې په بهرني سیاست کې د جمهور رییس تصمیم د بهرني سیاست په هکله نهایي او ټاکونکی دی.

د روسیې د حکومت په سیاسي جوړښت کې دوه اجرایېوي رییسان شتون لري چې، یو جمهوررییس او دوهم یې صدراعظم دي چې ریاستي نظام ته ورته والی لري دواړه مقامونه کولای شي د اساسي قانون په رڼا کې فرمان صادر کړي.

جمهور رییس د ۱۹۹۳م کال د اساسي قانون مطابق د بهرني سیاست په اساسي لیکو کې نظارت کولای شي.( ۸۰ماده څلورم فصل)لکه د بهرنیو هېوادونو سره د اړیکو پراختیا، د اړیکو پرېکول او جوړول،د بین المللي معاهداتو انعقاد،د بین المللي تغیراتو او بدلونونو په وړاندې د هېواد موقف نیول شامل دي.

جمهوررییس د بهرني سیاست په تنظیم کې د رسمي او غیر رسمي نهادونو څخه مشوره اخېستلای شي لکه د جمهوري ریاست نهاد او د ملي امنیت شورا.[١٥٥]

صدراعظم دوهم ستر سیاسي مقام دی چې مستقیما د جمهور رییس له خوا منصوب کېږي د روسیې د سیاسي فرهنګ په بنسټ د صدراعظم سیاسی قدرت تر ډېره حده د صدراعظم په

[١٥٤] سازمند،بهاره،سیاست قدرتهای بزرگ،چاپ باقری،تهران،۱۳۹۰،ص ،. ۴۸ ـ ۴۹.

[١٥٥] کولایی،الهه وعلي رضا نوري،عملګراي پوتین وتغیر درسیاست خارجی روسیه،فصلنامه سیاست،دوره چهل،شماره دو،۳۸۹،ص،۳۴.

شخصي ځانګړتیاو پورې اړه لري، د پوتین په دوره کې د صدراعظم نقش اورول په اقتصادي ډګر کې نسبت سیاسي ډګر ته ډېر وو، دا ځکه چې پوتین د اقتصاد په رشته کې دکتورا لري.

### ۳ـ د ادارې متغیر یا د بېوروکراټیک متغیر:

د نورو هېوادنو په څېر په روسیه کې هم ځینې نهادونه په نېغ ډول په بهرني سیاست کې نقش او رول لري،د بېلګې په ډول د بهرنیو چارو وزارت،د ملي امنیت شورا او پارلمان چې په مستقیم ډول او ځینې نور نهادونه په غیر مستقیم ډول سره په بهرني سیاست کې رول لري لکه د جمهوري ریاست نهاد،د دفاع وزارت،امنیتي ادارې او ساحوي ادارې.

د روسیې پارلمان له دوه مجلسونو څخه جوړ دی چې لومړی مجلس یې دوما او دوهم یې د فدراسیون شورا په نامه یادیږي، چې په ټوله کې د فدرال د مجموعې په نامه یادشوی دی.

دوما یو تقنیني نهاد دی چې، د بهرني سیاست د لوایح اوطرحو د رد یا تاېید صلاحیت لري، په روسیه کې په اوسني وخت کې څلور سیاسي ګوندونه فعالیت کوي؛د کمونیست ګوند دی چې د پرګنو غوځ ملاتړ هم ورسره دی او دوهم یې د یابلاکه ګوند دی چې د خلکو ملاتړ نه لري آن په دوما کې استازی هم نلري،درېیم د اتحاد ګوند دی چې د روسیې په سیاسي ګوندونو کې ښه موقف لري او د دولت د ملاتړ څخه برخمن دی په دوما کې اکثریت لري د پوتین له ملاتړ څخه هروخت برخمن دی.[۱۵۶]

### ۴- ملي متغیر:

په ملي متغیر کې د ملي اقتدار عنصر په بهرني سیاست کې ډېر اغیز لري چې عبارت دی له اقتصادي توان،نظامي او سیاسي وړتیاوو څخه.

### الف ـ اقتصادي توان:

په ۱۹۹۰ لسیزه کې د تولیداتو سطحه ټیټه او کورنۍ او بهرنۍ پانګونه خپلې ټیټې کچې ته راغلې وه،علمي او ټکنالوژیکه وړتیا ټیټه وه،کرنه د رکود په حال کې وه،په مالي سیستم او د پیسو په نظام کې بې نظمي موجوده وه، خو ولاد مېر پوتین په خپل بهرني سیاست کې اقتصادی وده او پرمختګ

---

[۱۵۶] سازمند،بهاره،همغه اثر،ص ،۵۵.

خپل هدف وټاکه او لومړیتوب یې ورکړ او په بهرني سیاست کې یې د روسیې د اقتصاددي ودې په منظور درې اصلو ته لومړیتوب ورکړ.

۱ـ په بهرنۍ نړۍ کې د روسیې اقتصادي ګټو ته لومړیتوب ورکول.

۲ ـ په نړیوال اقتصاد کې د روسیې د ځنډې کېدلو سره سیالي کول.

۳ ـ په نړیوالو اقتصادي فعالیتونو کې د روسیې فعاله ونډه درلودل.

چې د همدې بهرنۍ اقتصادي پالیسۍ په مټ،پوتین وکولای شول چې اقتصادي وده او پراختیا ۶،۴ فیصد ته لوړه کړي.

کورنۍ او بهرنۍ پانګونه یې ۱،۵ فیصده لوړه کړه چې؛ اتلس مېلیاردو ډالرو ته ورسېده،د تورم نرخ یې په ۲۰۰۶ میلادي کال کې ۹،۸ فیصد ته راټیټه کړه،د روسیې د مرکزي بانک د زېرمو اندازه یې یو سلو پنځه اتیا میلیارده ډالره اعلان کړه.

چې له دې څخه یې پنځوس میلیارده ډالره د ثبات د صندوق لپاره چې د انرژۍ د قیمت د نوساناتو او بدلون په وخت کې به ګټه ځینې اخېستل کېږي،د انرژۍ او د سون د موادو نرخ به ثابت وساتل شي.[۱۵۷]

فډرال بودجه یې دوه سوه پنځوس میلیارده ډالرو ته ورسوله، د کورنیو ناخالصو تولیداتو کچه یې په ۱۹۹۹ میلادی کال کې ۱،۳ ډالره وه، په ۲۰۰۷ میلادي کال کې یې ۸،۹ ډلرو ته لوړه کړه.

د نفت ګاز او پیټروشیمي محصولاتو د خرڅلاو له اړخه یې چې په ۱۹۹۸ میلادي کال کې یې اته وېشت میلیارده ډالره وه په ۲۰۰۷ میلادی کال کې یې دوه سوه اوولس میلیارده ډالرو ته ورسوله او د صادراتو اندازه یې چې په ۱۹۹۸ میلادی کال کې اووه دېرش فیصده وه،په ۲۰۰۷ میلادي کال کې یې یو شپېته فیصده ته لوړه کړه.

[۱۵۷] کولای،الهه وعلي رضا نوري،همغه اثر،ص،۴۴.

په اوسني وخت کې روسیه د جی اته ګروپ هېوادونو په قطار کې شتون لري،روسیه د اروپا لپاره د ګازو د اساسي صادروونکو هېوادونو له جملې څخه دی چې ټولې اروپا ته خپل طبیعي ګاز صادروي، په بین المللي کچه د روسیې هېواد یو اقتصادی قدرت شمېرل کېدلای شي.

**ب ـ سیاسي نفوذ او توان:**

د ۱۹۹۰ لسیزه چې د جیو پولیټک،جیو ستراتیژیک او جیو ایکانومیک له نظره یې پیلامه د روسیې لپاره منفي وه ،په سیاسي ډګر کې یې هم پرمختګ نه درلود.

روسیې د مللل متحد د امنیت په شورا کې خپل عضویت وساته خو په بین المللي مسائلو او موضوعاتو کې یې یوه غیر فعاله ونډه درلوده.

خو د پوټین په راتلو سره روسیه اوس تلاش کوي چې په نړیواله کچه د نړۍ په ټولیز مدیریت کې یو عمده او اساسي پایه او ونډه ولري.

پخواني شوروي اتحاد د خپلې سیاسي او ایډیالوژۍ په مټ وکولای شول چې د ختیځې اروپا،افریقا،امریکا او په یو شمېر اسیایي هېوادونو کې د مارکسیزم لیننزم یا پخوانی کلاسیکه د کمونیزم ناسمه مفکوره ولېږدوي.

چې د کمونیزم مفکوره او ایډیالوژي د ټولو سوسیالیستي هېوادونو یوه ګډه ملي قبوله شوې ایډیالوژي وه، چې د همدغې ایډیالوژۍ د نفوذ او انتشار له امله د غرب د لبرالیزم د ډیمکراسۍ او پانګوالې د سیستم مفکوره د مخالف قطب په حیث ولاړه وه .

د ساړه جنګ اساسي عامل د همدغو دوو ایډیالوژیو د اختلاف پایله وه چې؛ له ۱۹۴۵ م کال بیا تر ۱۹۹۰ میلادي کال پورې یې دوام وکړ چې د شوروي اتحاد او د کمونیزم د سیستم د پاشل کېدو په پایله کې اوس د روسیې هېواد یوه داسې ملي ایډیالوژي نه لري چې نورو هېوادونو ته یې د یوې منل شوې بین المللي ایډیالوژۍ په صفت ولېږدوي ،نو همدا سبب دی چې اوسمهال په نړۍ کې د اسلام د مقدس دین فلسفه د غرب د لیبرالیزم ا وډیموکراسۍ په وړاندې سد او مانعه ده ترڅو په اسلامي هېوادونو کې د غرب د ایډیالوژۍ د نفوذ او د غرب د فرهنګ له خپراوي څخه مخنیوی وکړي.(لیکوال)

### ج - نظامي توان:

د روسېې د وسلې او نظامي تجهیزاتو صادرات په **۱۹۹۰** لسیزه کې عموما واړه تسلیحات، زرهي اقلام او پخوانۍ الوتکې تشکیلولې چې د غرب د اندېښنې وړ نه وه ،خو د پوتین په دوره کې د پرمختللو او پیچلو تسلیحاتو خرڅلاو پیل شو لکه جنګي پرمختللې الوتکې،رهبري شوې دقیقې اسلحې او د توغندیو د دفاع سیستم (s٤٠٠)چې د غرب د ډېرې اندېښنې سبب ګرځېدلې ده.

روسیه اوس په ځینو هېوادونو کې نظامي اډې لري لکه ارمنستان، قرغزستان، تاجکستان، ملداوي او ګرجستان.

په ځینو نورو هېوادونو کې نظامي قوة او تجهیزات لري د بېلګې په ډول ازربایجان،قزاقستان.[۱۵۸]

روسیه د **۱۹۹۰**م کال د اقتصادي،سیاسي او نظامي بحران څخه په بریالیتوب سره راوتلې ده ،کورنی نظم او ثبات یې جوړ کړ اوس د یوه نړیوال قدرت په حیث چې د بیا جوړښت په حال کې ده ځای پیداکړی دی چې؛لاندې دوه مهم سیاسي او اقتصادي عوامل یادولای شو:

۱ـ د انرژۍ د صادراتو له امله د عوایدو مخ په لوړېدلو حالت چې د نفت او ګازو نړیوال نرخ په هغه وخت کې مخ په جېکېدو وو.

۲ ـ د امریکا د متحده ایالاتو دومداره مشغولتیا د افغانستان او عراق او ځینو عربي هېوادونو په جګړو کې د دې لامل شوه چې روسیه خپل اقتصادي بنسټ ټېنګ کړي.[۱۵۹]

### ۵ ـ د بین المللي نظام جوړښت:

د اساسي لوبغاړو ضرورتونه ، اړتیاوې،ګټې او د ټولیز قدرت د وېش ډول د بین المللي نظام په جوړښت کې شامل دي.

په ۲۰۰۷ میلادي کال د فبروري په میاشت کې پوتین د مونیخ په امنیتي کنفرانس کې په شدیده لهجه وویل چې د امریکا کوښښ د یوه قطبي نظام د جوړېدو په هکله موږ ته د منلو وړ نه دی

[۱۵۸] کولای،الهه وعلي رضا نوري،همغه اثر،ص،۴۶ـ۴۷.

[۱۵۹] کیانی،داوود،جهت ګیری سیاست خارجی روسیه در برابر ناټو،مرکز تحقیقات ستراتیژیک ،مجموعه تشخیص مصلحت نظام،۳۸٦،ص،۳۸۷.

روسیه د داسې نړیوال نظم او سیستم غوښتونکي ده، چې د یو قطبي نظام پرځای د څو اړخه سیستم ولري.

ځکه روسیه تمایل لري چې د ټولو هېوادونو سره پرته له دې چې د یوه هېواد موقف په نظر کې ونیسي مرسته،همغږي او همکاري ورسره وکړي.

د روسیې موخه او مرام د امریکا سره د ضدیت او سیالۍ کولو په مفهوم نه ده، بلکې د اروپایي اتحادیي په څېر یو دریځ لري.

روسیه خپل نړیوال دریځ لري او د امریکا د یو اړخه دریځ څخه یې په ارامه لهجه انتقاد کړی دی.

روسیې اوسمهال په خپل بهرني سیاست کې دوه ډوله پالیسۍ او کړنلارې غوره کړي دي چې لومړنۍ یې د مثبت عمل پالیسي ده چې د روسیې له خوا د منفي او بدو تحولاتو او بدلونونو قبلول دي لکه د امریکا حضور په مرکزي اسیا هېوادونو کې او د ناټو پراخوالی او نفوذ د شرق لورته.

روسیه اوسمهال پوهیږي چې هغه مخالفت چې په قدرت یې پوره نه وي بې مفهومه تلاش دی چې پخوا د شوروي اتحاد په بهرني سیاست کې د غرب په وړاندې شتون درلود.

دوهمه کړنلاره یې د فعال عمل او پالیسي ده، چې د روسیې اړیکې د پخوانیو متحدینو سره څرګندوي چې څه ډول ګټه باید له اړیکو څخه واخېستل شئ؟په بین المللي ډګر کې د روسیې دریځ او موقف لوړ کړي مثلا د جی اته په کنفرانس کې روسیې د شمالي کوریا د توغندیو د پروګرام د پراختیا د مخنیوی طرحه وړاندې کړه، د یولسم سپټمبر پېښه د روسیې لپاره بل زرین چانس وو چې د روسیې بین المللي دریځ یې لوړ کړ.

دا د امریکا اړتیا وه، چې د طالبانو او القاعدې د بربادۍ لپاره د روسیې سره نږدې شي چې څلور مهمې ګټې یې د روسیې لپاره درلودلې.

۱ ـ امریکا اړه شوه چې د روسیې مبارزه د چیچنیانو په وړاندې تایید کړي.

۲ ـ د امریکې یرغل په طالبانو باندې د دې لامل وګرځېده چې د مرکز ی اسیا هېوادونه د طالبانو او القاعدې له شر څخه وژغوري.

۳ ـ روسيې داسې فکر کاوه چې د امريکا سره په نږدې والي به د (ABM)معاهده او د توغنديو د دفاع معاهده حل شي.

ABM چې د Anti ballistic missiles اصطلاح مخفف دی هغه معاهده وه،چې روسيې او امريکا غوښتل خپل توغندي په سيمه کې تر سل عدده راکم کړي خو امريکا نوموړې معاهده لاسليک نه کړه.

۴ ـ روسيې د خپلو پورونو د ادا کولو لپاره پوره اندازه وخت وموند او د نړيوال سوداګريزسازمان غړيتوب يې ترلاسه کړ.

# نهم څپرکی

**لومړی مبحث:**

## د چین بهرنی سیاست

چین یو ستر هېواد دی چې د سولې او مرستې طرف دار دی، د چین په فرهنګ کې په سوله، همکارۍ او مرستې باندې ډېر ټینګار شوی دی چې په اوسنیو شرایطو کې فرهنګ ډېر زیات رول لري لکه څنګه چې تولستوی ویلي دي چې د چین ټولنه په نړۍ کې تر ټولو سوله خوښوونکې ټولنه ده .

هغه وخت چې؛ د نړۍ نظام دوه قطبي وو د چین د بهرني سیاست مهم متغیرونه او لومړیتوبونه عبارت وو، د انقلابي تېورۍ او د ایډیالوژۍ وده او نفوذ، د امپریالیستي ضد خوځښتونو ملاتړ،خو نن ورځ نړیوال کېدل او د هېوادونو د اړیکو اړتیا او پرمختګ د چین د بهرني سیاست یوه مهمه برخه ګرځېدلې ده.

د چین اوسنی جمهور رییس د چین د کمونیست ګوند د ګانګریس له خوا تلپاتې جمهور رییس وټاکل شو او د چین د کمونیست ګوند د بنسټ ایښودونکي یعنې (ماو تسه تونګ)په څېر یې د شي جین پینګ نظریات د کمونیست ګوند په اساس نامه کې ورزیات کړل.

د شی جین پینګ د فساد پر ضد کلکې مبارزې په نړیواله کچه د چین سیاسي او اقتصادي دریځ لوړ کړ،په نړیواله کچه د چین د ګټو پراخوالی او خوندي کول د چین اقتصادي توان او وده په چټک ډول په نړیوال ډګر کې او د چین د انزوا یا ګوښه والي سیاست څخه خلاصون د یادولو وړ ده.

ماهو د چین د کمونیست ګوند بنسټ ایښودونکی دی چې چین یې د کورنۍ جګړې وروسته متحد کړ او د ۱۹٦٦ میلادی کال د فرهنګي انقلاب په بریالي کولو سره یې د چین هېواد یو ځل بیا سره یو موټی کړ.

دوهم شخصیت ډینګ شیاو پنګ دی چې؛ د چین هېواد یې د اقتصادي پلوه په پښو ودراوه او دریېم شخصیت یې شی جین پینګ دی.

په چین کې د کمونیزم په لاره کې زده کوونکو ته د بیرغ سور رنګ د قربانیانو د وینې د رنګ په ډول ورته اشاره کیږي خو دا هیڅ وخت نه ورته ویل کیږي چې کمونیزم د څو میلیونو انسانانو وینه تویه کړه.

د تور کمونیزم د کتاب په اساس د چین کمونیست رژیم د پنځه شپېته میلیونه انسانانو ژوند واخیست، چې په دوهمه درجه کې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند دی چې د شلو میلیونو روسانو ژوند یې تباکړ.

د چین د کمونیست ګوند بسټ ایښودونکی(ماهو تسه تونګ )د اقتصادي او سیاسي کمپاین په ترڅ کې پنځه شپیته میلیونه چینایان تلف شول ،چې د ځمکې مالکان،روڼ آندي،پانګوال او مذهبي شخصیتونه چې په هر دین پورې یې ارتباط درلود ټول یې د انقلاب ضد عناصر وبلل او وېي وژل حتی د کمونیست ګوند لس فیصده کدرونه یې د شته رژیم ضد وبلل او اعدام یې کړل.

په چین کې د دیموکراسي طرفداران په شدت سره ځپل کیږي، چې یوه بېلګه یې د دوه زره شپږ سوه زده کوونکو عام وژنه ده چې په ۱۹۸۰م کال کې یې د تیا نان من په څلور لارې کې د مرمیو ښکار کړل، چې د ځینو سرچینو په وینا نوموړی شمېر لږ تر لږه لس زره تنه قرباني شوي دي چې یوې معتبرې انګلیسي سرچینې هم دغه خبر نشر کړی دی چې د انګلیس سفیر په چین کې په خپل محرمانه تلګراف کې ترې یادونه کړې ده.

د چین د کمونیست ګوند بنسټ په ۱۹۲۱ میلادی کال کې کېښودل شو،د چین جمهوریت په ۱۹۱۲ میلادي کال کې تاسیس شو چې تر ۱۹۴۹ میلادی کال پورې یې دوام درلود.

په ۱۹۴۹ میلادي کال کې یې د کورنۍ جګړې په ترڅ کې خپل سیاسي قدرت له لاسه ورکړ او مشران یې تایوان ته تبعید شول،چې هلته وروسته د ملي ګرایانو په نامه مشهور شول او امریکا د تایوان هېواد د چین په ځای په ملل متحد کې د یوې چوکۍ په ورکولو سره په رسمیت وپېژانده.

په ۱۹٦٦ میلادي کال ماو تسه تونګ د فرهنګي انقلاب په لار اچولو سره چې تر همدې نامه لاندې یې خپل ټول سیاسي رقیبان له منځه یوړل او د کمونیست ګوند تصفیه یې پیل کړه.

په دې فرهنګي انقلاب کې تر یو نیم میلیون زیات شمېر چینایان مړه شول، چې یاد فرهنګی انقلاب تر ۱۹۷٦ میلادي کال پورې دوام درلود.

ماهو د سور گارد په جوړولو سره چې ټول چینايي کمونیست ځوانان وو، د فرهنگي انقلاب تر نامه لاندې یې یو نیم میلیون چینایان ورباندې ووژل،فرهنگي اثاریې ویجاړ کړل چې وروسته یاد کارډ د چین د اردو له خوا له منځه یوړل شو.فرهنگي انقلاب د چین یوه ستراتیژیکه اشتباه گڼل کیږي.

د چین د کمونیست گوند د بې تجربې حکومت په سبب په هغې وچکالۍ کې چې د ۱۹۵۸ میلادي بیا تر ۱۹۶۱ میلادي کال پورې یې دوام وکړ تر اته دېرش میلیونو پورې وگړې قرباني شول.

د چین حکومت په همدې وخت کې د بزگرانو کرنیز پیداوار د سیاسي ملاتړ په خاطر د شرقي اروپا هېوادونو ته لېږدول، غذايي مواد او پیسې یې د استعمار ضد غورځنگونو ته او کمونیستي خوځښتونو ته په اسیايي،افریقايي او لاتیني امریکا هېوادونو ته لېږدول چې دا یوه لویه تېروتنه او اشتباه وه.

د چین فرهنگي انقلاب چې یوه ستراتیژیکه تېروتنه وه یو نیم میلیون وگړي یې ووژل شول او د کمونیست حزب غړي هم په کې قرباني او یا د گوند څخه ووېستل شول.

د فرهنگي انقلاب رهبري او لارښودنه د شپږو تنو په لاس کې وه، چې عبارت دي له؛ماهو،د ماهو میرمن او څلور تنه نور نارینه وو،چې د سور گارد له خوا په زرگونه تاریخي،فرهنگي محلونه او ځایونه ړنگ شول،قومي او مذهبي لړکي یې ټول ووژل چې مسلمانان هم په همدې جمله کې شامل و.

د ماهو د مرگ سره په ۱۹۷۶ میلادي کال فرهنگي انقلاب پای ته ورسېد .[۱۶۰]

د ماهو لیکلي اثار چې عبارت دي له ( د ماهو منتخب اثار او دوهم اثر یې کتاب سرخ کوچک )په نامه یادیږي چې دماو د مرگ وروسته اول اثر ۲،۱ میلیارده ټوکه چاپ شو او دوهم اثر یې ۸،۴ میلیارده ټوکه چاپ شو،چې د هر چینايي وگړي په سر شپږ ټوکه رسېدل،هر چینايي وگړي اړ وو، چې کتاب سرخ کوچک یې چې په حقیقت کې د ماهو نقل قول او نظریات دیو هر چینايي تبعه اړ وو چې یاد کتاب په عمومي مراسمو کې له ځانه سره ولري چې په حقیقت کې یې ماویزم په یوه جبري دین بدل کړی وو.

[۱۶۰] جمهوري خلق چین وارزیابی تاریخی سوسیالیزم،دیالکتیک انقلاب،ماو وماوستها،د چین فرهنگي انقلاب د دغو څلورو سرچینو په روایت.

په ۱۹۸۱ م کال کې د کمونیست گوند د فرهنگي انقلاب څخه په رسمي ډول جلاوالی اعلان کړ اود ماهو ټولې تېروتنې يې يادې کړې.[۱۶۱]

د شلمې پېړې په پیل کې چین یو غریب او وروسته پاتې غیر صنعتي هېواد وو که څه هم یو د ستر نفوس درلودونکی پراخ،متمدن،مستقل،ازاد او تاریخي هېواد هم دی.

د شلمې پېړۍ په سرکې د چین نفوس څلور سوه پنځوس میلیونه تنه وو،چې نوي فیصده نفوس يې په کرنه او نور پاتې نفوس يې لکه کارگران په ښارونو کې په خدمت کولو بوخت وو،عسکر،د دولت کارکوونکي او د ځمکې مالکان هغه طبقه وه، چې دوه فیصده يې تشکیلول،اشراف،ارباب او د قومونو رېیسانو خپل تسلط په خلکو ټینگ کړی وو چې د فیوډالانو سره یوځای شوي وو.

د هرډول مډرن کېدلو او صنعتي کولو مخالف وو ،ترټولو مهمه دا ده چې د کنفوسیوس د دین فرهنگ، وکرنې ته ډېر اهمیت ورکړی وو نسبت وصنعت او تجارت ته.

خو هغه خلک چې د سوداگرۍ او صنعت له لوري به يې شتمني لاس ته راوړله وروسته به يې د تجارت او صنعت د ودې او پرمختیا پرځای د ټولنیزې ځانگړتیا په دلیل به يې ځمکه واخېسته همدا دلیل وو چې چین د چاپان په نسبت یو صنعتي هېواد جوړ نه شو.

د چین ټولنه د څلور طبقو له خلکو څخه جوړه وه( شتمن بزگران،منځني بزگران،غریب بزگران او بې ځمکې بزگران).

د تریاکو جنگ (۱۸۳۹-۱۸۴۲م) هغه وخت د چین او د انگلیس د قواوو ترمنځ ونښت چې د چین چای د انگلیستان په واسطه پلورل کیدلې، خو انگلیسیانو د چایو د قیمت په مقابل کې پیسې نه بلکې تارياک ورکول دغه تریاک دانگلیس په مستعمراتو کې کښت کېدل لکه هند او برما.

چین د تریاکو واریدول منع کړل، انگلیس خپلې قواوې د چین په طرف د یرغل په موخه برابري او د سوداگرۍ دازادولوپه نامه يې برغل وکړ او چین ته يې ماته ورکړه، انگلیسانو په چینایانو باندې مستعمراتي شرایط تحمیل کړل،چې انگلیس به ازاد وي ترڅو په چین کې تریاک وپلوري،دمسیحت تبلیغ به په ازاد ډول صورت مومي او د جنگ ، تاوان به انگلیستان ته ورکوي، په پایله کې د چین عام وگړي په تریاکو باندې معتاد شول چې له امله يې جسمي قوت ډېر کمزوري

[۱۶۱] ماهو وماوستها او (جمهوري حلق چین وارزیابی تاریخی سوسیالیزم.

شو، خلگو شورش وکړ خو د حکومت له خوا وځپل شول چې د میلیونو چینایانو د مرگ سبب وگرځید.

د کوریا په سر د چین او جاپان جگړه د چین د ماتې سبب وگرځید، د ۲۰ پیړۍ په پیل کې د بوکسرانو پاڅون را پیدا شو کلیساوې یې وسوځولې د رېیل پټلۍ یې ویجاړې کړې ،خلگ او حکومت ورسره یوځای شول، خو استعمارگرو دا مقاومت هم مات کړ.

وروسته انقلابي متحد انجمن په ۱۹۰۵ م کال د روڼ آندي له خوا جوړ شو چې سونساد سون نومیدی او د چین د ازادۍ پیغام یې له ځان سره درلود.

وروسته د خلگو د شورش په پایله کې یو جنرال چې یوانشیکای نومید د سلطنت ضد حرکت یې په ۱۹۱۱ م کې پیل کړ او ځان یې جمهور رئیس یاد کړ.

سونیادسون د غرب افکار ،د چین سنت، کلتور او شخصي تجربې یې سره یوځای کړل،چې درې اصله یې درلودل چې عبارت وو له نېشنلیزم،دیموکراسي او د خلکو هوساینه.

سون یات سون د کنفوسیوس په اصل باندې اعتقاد درلود چې په حقیقت کې د چینایانو دین دی چې ویل یې ( دولت باید د غریبۍ او فقر څخه ویره ونلري بلکې د ناعادلانه وېش څخه باید په ویره کې اوسي)نو ځکه سونیات سون د ملکیتونو تساوي او د پانگې د نابرابرۍ انحصار ته لومړیتوب ورکړ ،مالیې ته یې ډېره پاملرنه وکړه ترڅو عواید لوړ شي همدغه د سونیات سون افکاروو چې د امپرالیزم ډله یې په چین کې جوړه او رهبري کوله.

په ۱۹۱۴ میلادی کال کې یې پارلمان هم ړنگ کړ او ځان یې امبراطور اعلان کړ په ۱۹۲۱ میلادي کال کې کمونیست گوند تاسیس شو چې د شوروي اتحاد له خوا کومک او مرسته ورسره کېدله لینن هم د سونیات سون افکار او نظریات خوښول.

ماهو تسه تونگ په ۱۹۴۹ میلادی کال کې د چین د خلکو جمهوریت تاسیس کړ او د عمر تر پایه جمهور ریېس پاتې او په ۱۹۷٦ میلادی کال کې مړ شو.

ماهو د مارکسیزم څخه داسې اخېستنه درلوده، چې د بزگرانو او کلیوالو خلکو رول یې په کارگري انقلاب کې ستر او لوړ فکرکاوه او د فرهنگ رول یې په سوسیالیستي اقتصاد کې ډېر معتبر او اغیزناک باله.

په ۱۹۵۰ میلادي کال کې ماهو د چین جمهور رییس وټاکل شو په ۱۹۵۳ میلادي کال کې د جوزف ستالین د مرگ وروسته ماهو د کمونیستانو یو ستر رهبر وپېژندل شو.

په ۱۹۵۸ میلادي کال کې ماهو د گڼندي اقتصاد بدلون او د چین د اقتصادي کولو طرحه د ستر خوځښت په لور یعنې مخ په وړاندې د ستر بدلون او غورځنگ په لور طرحه یې وړاندې کړه.[۱۶۲]

په دې طرحه کې ټولې کرنیزې ځمکې دولت مصادره کړې له بلې خوا ماهو د ټولو کرنیزومحصولات او پیداوار د ختیځې اروپا هېوادونو ته د سیاسي او نظامي ملاتړ په بدل کې صادرول.

یعنې نظامي کومکونه یې ځینې اخېستل او غذایي مواد او پیسې یې کمونیستي نوي غورځنگونو ته په افریقا،لاتیني امریکا او ځینې اسیایي هېوادونو ته لېږدول.

دا طرحه وه چې څلور کاله وخت یې په برکې ونیوه ،اته دېرش میلیونه چینایان یې د غذایي موادو د کمښت له امله مړه شول.

وروسته ماهو له ۱۹٦٦ میلادي کال څخه تر ۱۹۷٦ میلادي کال پورې د چین فرهنگي انقلاب پیل کړ چې د چین په کمونیست گوند کې د کړکیچ دوره ده.

ماهو په ۱۹۷٦ میلادي کال کې د ۸۲ کالونو په عمر ومړ د ماهو فرهنگي فعالیتونه او کړنې په لاندې ډول خلاصه کولای شو:[۱۶۳]

د خلکو په شخصي ژوند کې د سرې اردو مداخله،د اوږدو وېښتانو درلودلو په کې جواز نه درلود، وېښتان به یې اصلاح او کمول،د تنگ پطلون اغوستل،نوک تېزه بوټونه یا هر ډول غربي فرهنگ به یې د سرې اردو د اخطار له لوري منعه کول چې ۷۲ ساعتونه وخت به ورکول کېده،په دیوالونو

[۱۶۲] مقایسه روسیه با چین.
[۱۶۳] مجموعه از گفتار های ماهو تستنگ.

باندې د کاتولیک، پروتستان،مسیحیانو او بودایي پیروانو په ضد شعارونه لیکل کېدل چې یاد مذهبیون یې فریبکاره د ماهو ضد او بېگانه خلک بلل.[۱٦٤]_[۱٦۵]

د ساړه جنګ وروسته چین د امریکا د ستر طاقت کېدلو او د نړیوال طاقت په حیث د څرګندېدلو په وړاندې په بېلابېلو ډګرونو کې په اسیا کې ودرېد لکه په اقتصادي،سیاسي او سایبري ډګر کې چې د دواړو هېوادونو په اړیکو یې ژور منفي اغیز وکړ.

د یولسم د سپټمبر د پېښتې وروسته د امریکا او پیکنګ په اړیکو او سیاست کې ژور بدلون څرګند شو.

چین د نړیوال تروریزم سره د مبارزې په هدف د امریکا د نفوذ سره مرسته وکړه، چین وغوښتل چې د نرم متوازن سیاست څخه د اسیا په سیمه کې د امریکا په وړاندې ګټه واخلي چې په درې ساحاتو کې یې یاد سیاست غوره کړی و.

د ماهو د وخت شعار( د ستر غورځنګ او حرکت په لور)،په کال ۱۹۵۸ میلادي تر ۱۹٦۲ میلادي کالونو پورې ماهو په چین کې په خلکو باندې ژوره قحطي راوستله چې په ډېره وړه تېروتنه به یې سخته سزا ورکوله.

د بېلګې په ډول هغه وخت چې یو ماشوم یو موټ غنم غلا کړل د ماشوم پلار یې اړ کړ چې خپل ماشوم زوی په ژوندي ډول په قبر کې پټ کړي او یا کله چې یوه ماشوم یوه پټاټه پټه کړه یو غوږ یې ځینې غوڅ کړ.

په یاده قحطۍ کې پنځه څلوېښت میلیونه انسانان په یوه روایت مړه شول چې په بل روایت باندې په دغه قحطۍ کې اته دېرش میلیونه انسانان مړه شوي دي چې د نړۍ ستره عام وژنه ده چې د هټلر او جوزف سټالین څخه هم لوړه کچه مړینه ښیي.

[۱٦٤] محور خلک چین وارزیابی تاریخی سوسیالیزم.
[۱٦۵] پیاده روی طولانی وحقیقت.

چین شپږ زره کاله مخکې مطلقه شاهي رژیم درلود، چین د اقتصادی اصلاحاتو څخه وروسته یو ماډرن او عصري سیستم اختیار کړ، چې تر ټولو ګړندی اقتصادي وده لري،د نړۍ ستر صادرکوونکی هېواد دی او د نړۍ په کچه د کالیو او نورو توکیو د واردولو دوهمه درجه هېواد دی.

چین د ملل متحد د امنیت د شورا دائمي غړی دی او همدا رنګه د نړیوال تجارتي سازمان،اوپک،د شانګ های د همکاریو د سازمان،جی ۲۰ او جي ۸ هېوادونوغړی دی.
چین د اټومي سلاح درلودونکی دی ، د نړۍ ستره اردو لري چې د امریکا وروسته دوهمه ستره دفاعي بودجه ورته ځانګړې شوې ده .
اساسي قانون یې په ۱۹۸۲م کال تصویب شوی دی، دولت یې د یوازیني ګوند (د چین کمونیست ګوند)تر رهبرۍ لاندې جوړښت موندلی دی.
د چین دولت د نړیوالې ټولنې له خوا په لاندې چارو کې د پاتې راتلو په سبب تر ټینګو او شدیدو انتقاداتو لاندې دی.
۱ـ د مطبوعاتو د ازادۍ نه درلودل.
۲ـ د ټولنیزو سازمانونو جوړښت او فعالیت ته جواز نه ورکول.
۳ـ دیني او مذهبي عقایدو ته درنښت نه درلودل.
۴ـ د بشر حقوق په نظر کې نه نیول په ځانګړي ډول د بندیانو څخه په جبري کارونو کې پرته له مزد څخه ګټه اخېستل.
د چین مشران خپل سیاسي نظام ته، د خلکو د دیموکراتیک استبداد، د چینایي خصوصیاتو سره سوسیالیزم او د سیوسیالیستي بازار اقتصاد، اصطلاحات ورته کاروي.
د چین ایالتونه په بشپړ ډول استقلال لري او د مرکز تابع نه دي، د کمونست ګوند پرته نورګوندونه هم په کې شتون لري چې د خلکو په ملي ګنګره او په سیاسي مشورتي کنفرانس کې غړیتوب لري.
هیڅ اپوزیسیون ګوند د کمونیست ګون په وړاندې وجود نه لري، د ۲۰۱۱ میلادي کال یوه سروې ښکاره کوي چې د حکومت څخه له ۸۰ څخه تر ۹۵ فیصدو پورې خلک راضي دي.
جمهور ریېس او صدراعظم د حکومت په راس کې قرار لري، صدراعظم پنځه معاوینین لري او تر ټولو لوړ سیاسي مقام یې پولیټ بېرو ده.
د استازو ملي مجلس لري چې پارلمان یې تشکیل کړی دي او د پنځو کالونو لپاره ټاکل کېږي خو په عمل کې مقننه قوه هیڅ اجرایي او عملي تصمیم نېونه نه شي کولای او صلاحیت هم نه لري.

چین د یو سلو یو اویا هېوادونو سره ډیپلوماتیکې اړیکې لري، چین د برازیل،روسیه،هندوستان او جنوبي افریقې سره چې ټولو اقتصادي ګړندۍ وده خپله کړې چین یې په قطار کې لومړی هېواد دی.

د چین بهرنی مډرن سیاست چې تر ډېره حده د پخواني صدرا عظم (چوین لای) له نظریاتو اخېستل شوی په پنځه اصولو سره استوار دی.

سوله یېزه یوځای اوسیدنه او هماهنګۍ پرته له یو رنګ والي مشهوره ده او د هغو هېوادونو سره د ډیپلوماتیکو اړیکو ټینګول چې مختلفې ایډیالوژۍ ولري همدغه سیاست د دې لامل شوی دی چې د چین دولت د شمالي کوریا،ایران او زمبابوی څخه ملاتړ وکړي چې د غربي نړۍ په نظر مخالف سیاست لري.

چین او روسیه د ملل متحد د امنیت په شورا کې تر ډېره حده یو شان رایې ورکوي او د وېټو د حق څخه د امریکا په نسبت چندان استفاده او ګټه نه اخلي.

چین د ماهو د اصلاح شویو نظریاتو سربېره چې د کمونیزم په هکله یې لري، د امریکا ستر دښمن بلل کېږي، که څه هم د بهرنیو اړیکو په هکله یې مثبت قدمونه اخیستي دي خو د غرب او پانګوالو هېوادونو په نزد تر اوسه د دښمنۍ پالیسي لري.

چین هر کال شل میلیونه تقلبي ډالر د امریکا اقتصادي مارکیټ ته تزریق او پیچکاري کوي د امریکا په اقتصاد کې د مافیایي ګنګسټرانو دودول او پیدا کول او د ډالرو د نرخ په نه ثبات کې د امریکا سره په سیالۍ کې ده.

**د پولې اختلافات او ترېګنی:**

چین د ټایوان خاوره خپل مطلق ملکیت بولي د څو نورو هېوادونو سره هم د سرحدي پولو نزاع د پخوا څخه لري د هند سره سرحدي پوله چې د همالیې په غرونو کې موقعیت لري د هند او چین د اختلاف سرچینه ده او دوهمه اختلافي نقطه یې د کشمیر په سرحد کې د هندوستان سره وجود لري چې د ۱۹۶۰ میلادی کال راهیسې د هند سره د چین د یوې ساحې په سر په جګړه کې ښکیل شوی دی.

چې د چین په کامیابۍ پای ته ورسېده او یاده غرنۍ سیمه یې خپله کړه، دغه سیمه د کشمېر په شمال کې غیر مسکوني سیمه ده، خو یوه ښه ارتباطي اړیکه او لاره ده چې سین کیانګ او تبت سره نښلوي.

چين د بوتان سره هم سرحدي اختلاف لري، چې تر اوسه يې سرحد مشخص کړی نه دی،چين د يو شمېر جزيزو په هکله د چاپان ،فلپين ،ويتنام اوتايوان سره سرحدي اختلافات لري چې لاهم حل شوي نه دي.

## چين راتلوونکی ستر طاقت:

چين د ځينې سياسي شنونکو په نظر په راتلونکي کې يو ستر نړيوال ځواک جوړېږي ځکه کړندی اقتصادي حرکت او وده،مخ په وړاندې نظامي پراختيا،ستر نفوس او بين المللي اغيز يې مثبې نښې دي چې په يويشتمې پېړۍ کې چين خپل کړي دي.
خو ځينې نور شنوونکي بيا په دې آند دي چې چين د امريکا په څېر د فرهنگي او ايډيالوژيک نفوذ او نظامي توان څخه برخمن نه دی نو د نړيوال ستر ځواک تصور يې پخ دی.
د بلې خوا چين يوه داسې ملي ايډيالوژي چې د نړۍ د نورو هېوادونو د خلکو له خوا د منلو وړ وي، نه لري د چين د کمونيست گوند نظريه او فلسفه پخوا لا د شوروي اتحاد د ړنگېدلو سره له منځه تللې ده.
په چين کې سياسي ازادي محدوده ده په دولت انتقاد او د بيان ازادي په کې په شديد ډول سانسور شوې ده ،د اپه داسې حال کې ده چې په اساسي قانون کې د بيان د ازادۍ د اصل څخه ملاتړ شوی دی.
چين د ۱۶۷ هېوادونو په منځ کې د مطبوعاتو او د بيان د ازادۍ له نظره په ۱۵۹درجه په ۲۰۰۵ ميلادی کال کې تثبيت شوی دی.
مالياتي او د ټيکس سيستم يې د فقېرې طبقې او قشر په زيان دی، پرته له محاکمې زنداني کول،په اجباري ډول د جنين ضايع کول،په جبر سره اعتراف،په زندانونو کې شکنجه او ځورونه،د اساسي حقوقو محدوديت او د اعدام د جزا ورکول په ستره کچه هغه موارد دي چې د بشري حقوقو د نقض او تر پښو لاندې کول په مستند شکل ښکاره کوي.
په چين کې هغه لاريون او غونډې چې د حکومت په ضد وي جواز نه لري چې يوه بېلگه يې په ۱۹۸۹ ميلادي کال د تيان ان من په ميدان کې خونړۍ پېښه وه ،چې تر لس زره انسانان په کې ووژل شول.

چې د پولیسو له خوا یاد لاریون کوونکي په بشپړ ډول د اسلحې په مټ سره ووژل شول د دغې غمیزې راپور په چین کې د انګلیستان د سفارت له خوا په محرم تګراف کې لندن ته مخابره شوی وو.[١٦٦]

دغه راز په تبت او سین کیانګ کې په وار وار سره د بشر د حقوقو تر پښو په لاندې کېدلو مرتکب شوی دي.

چین د ۱۹۴۹ میلادي کال بیا تر ۱۹۷٦ میلادي کال پورې یو متمرکز رهبری شوی اقتصاد د شوروي اتحاد په سبک درلود.

د ماهو له مرګ وروسته چې په ۱۹۷٦ میلادي کال د فرهنګي انقلاب وروسته واقع شو،بیا ډینګ شیا پینګ د چین اقتصاد، د بازار د اقتصاد نظام پلو ته رهبري کړ،ټولې کروندې خصوصي شوې او بهرني تجارت ته په ځانګړي ډول پاملرنه وشوه.

نن د چین اقتصاد د بازار اقتصاد دی چې په خصوصي ملکیت استوار دی دولت تر اوسه د انرژي په تولید او ستراتیژیکو زیربنایي پروژو او د درنو صنایعو ملکیت په لاس کې لري.

په چین کې خصوصي پانګونه په کړندیتوب سره مخ په پراختیا ده.

د چین د اقتصادي پراختیا فیصدي له ۲۰۰۷ میلادي کال تر ۲۰۱۱ کلونو پورې د اوو سترو صنعي هېوادونو د اقتصادي پرمختیا سره مساوې ده او د تولید لوړه کچه،د کار د بشري قوې ارزاني او د زېربنا شتون هغه عوامل دي چې چین یې د نړۍ په ګچه په یو ستر تولیدوونکي هېواد بدل کړی دی.

چین د نړۍ ستر انرژي مصرف کوونکی هېواد دی، خو ۷۰ فیصده خپله انرژي د ډبرو له سکرو څخه تامینوي په ۲۰۱۳ میلادي کال کې د نفتو تر ټولو ستر صادرونکی هېواد وبلل شو.

د چین کمونیست ګوند شپږ شپیته میلیونه غړي لري چې په نړۍ کې ستر ګوند نومول شوی دی،یاد ګوند د خلکو په مدرسو،تلویزیوني خپرونو،اشتغال،د اولادونو په شمېر باندې نظارت او نفوذ لري.

د یاد ګوند ۱۷ فیصده غړي ښځینه دي او په ټوله کې ۷۸ فیصده یې ځوانان دي.

د چین بهرنی سیاست د ۱۹۴۹ میلادي کال راهیسې ډېر بدلونونه او تحولات لیدلي دي د انقلاب په پیل کې په بهرني سیاست کې ایډیالوژیک انعکاس ،له ۱۹۵۰ تر ۱۹٦۰ میلادي کلونو کې د

[١٦٦] شاهنده،بهزاد،چین بعد از تین آن من،اطلاعات سیاسی واقتصادی،تهران،۱۳٦۹،ص،۱۱-۱٦ او ۳٦.

گوښه کېدلو سیاست،له غیر فعال حالت څخه فعال سیاست ته بدلون وکړ چې له ۱۹٦۰ تر ۱۹۷۰ کلونو په ترڅ کې یې نوموړی سیاست خپل کړ او د سوله یېز دوامدار سیاست خپلول چې د پویښتمې پېړۍ وروسته یې اختیار کړی د پورتنۍ ادعا ثبوت دی.

په یویشتمه پېړۍ کې د چین اقتصادي گړندی تگ او پرمختیا د سوله یېز مستمر او دوامداره بهرني سیاست زېږنده ده ،چې د متمرکز اقتصاد څخه ازاد اقتصاد ته بدلون، د ډېرو هېوادونو سره اقتصادي اړیکې،د بهرنۍ پانگې جذب د امنیت تامین او بهرنیو هېوادونو ته د انرژۍ عرضه کول، دغه ټول هغه عوامل دي چې د چین اقتصاد یې د بین المللي ټولنې مرتبط کړی دی، همدغه عوامل د دې لامل شوي دي چې د چین بهرني سیاست سوله یېز ووسي.

ځکه چین وبهرني مصرف کوونکي مارکیټ ته په دوامداره ډول اړتیا لري تر څو د چین اقتصادی وده او پرمختیا تضمین کړي.

د استقلال د اصولو او ناپیلتوب څخه د چین دوامداره پیروي ،د سترو او کوچنیو هېوادونو سره د نه اتحاد کولو سیاست، د هیڅ نظامي بلاک د تاسیس سره علاقه نه لري،په مسلحانه سیالیو کې گډون نه کول او د نظامي ځواک له پراختیا څخه ډډه کول د چین د بهرني سیاست اساسي ټکي جوړوي.

چین د نړیوالې سولې د ساتلو سره موافق دی او د هېوادونو د اشغال له سیاست سره مخالفت لري، د هېوادونو په منځ کې د کړکیچ حل په سوله یېز ډول غواړي او د نورو هېوادونو په کورنیو چارو کې ورته هیڅ ډول مداخله د منلو وړ نه ده.

په نړیوال اقتصادي سیاسي نوي نظم کې ونډه اخېستل او د سوله یېز گډ ژوند د پنځو اصولو څخه د پېروي ملاتړی دی چې هغه اصول عبارت دي له؛

۱ـ د هېوادونو حاکمیت او ارضي تمامیت ته درنښت.

۲ـ د ټولو هېوادونو سره متقابلې گټې،دوستي او همکاري.

۳ـ د تعارض نه کولو سیاست.

۴ـ د نورو هېوادونو په کورنیو چارو کې مداخله نه کول.

د چین بهرنی سیاست د خلاصو دروازو سیاست دی او د فعال څو اړخه ډیپلوماتیکو فعالیتونو څخه پیروي کوي.

د اروپایي اتحادیې او چین اړیکې په سیاسي اقتصادي او تجارتي ډګر کې د پاملرنې وړ ډېروالی موندلی دی.

د اروپایي اتحادیې تشویش د چین په هکله عبارت دي له ؛د تایوان د ازادۍ نه ورکول،د تسلیحاتي تحریم موضوع او د بشر د حقوقو نقض دی چې د اروپایي هېوادونو تشویش یې زیات کړی دی.

خو اروپایي اتحادیه تر هر څه وړاندې اقتصادي سیاست ته ډېر لومړیتوب ورکوي.

**دوهم مبحث: د چین په بهرني سیاست باندې اغیز لروونکي عناصر:**

**اول ـ شخصي یا فردي متغیر:**

یاد متغیر د تصمیم نیونکو او رهبرانو ایډیالوژي، باورنه،انډونه،ارزښتونه برداشت یا اخیستنه،شخصي ځانګړتیاوې، تصوراتو ته اشاره کوي.

د ساړه جنګ وروسته د چین دوه رهبرانو (جیانګ زمین او هوجن تاو)که څه هم د کمونیست ګوند مرام ته معتقد وو،بیا یې هم د ایډیالوژۍ مسئلې ته په بهرني سیاست کې لومړیتوب نه دی ورکړی، خو بیا جوړونې او اقتصادي پراختیا ته یې لومړیتوب ورکړی دی.

دواړو چینایي رهبرانو چې نومونه یې پورته ذکر شول د چین په مډرن بهرني سیاست کې یې اساسي رول لوبولی دی.

د چین د کمونیست ګوند رهبرانو د نسل په هکله وېشل راغلي دي، چې ماوو زدون د سلو رهبرانو له جملې څخه دی چې د اول نسل په رهبرانو پورې مربوط دی او ډینګ شاپینګ د دوهم نسل رهبر ورته ویل کېږي خو جیانګ زمین د درېیم نسل رهبر او اوجینتاوو د چین د څلورم نسل د رهبر په صفت پېژندل شوی دی.[۱۶۷]

[۱۶۷] سازمند،بهاره،سیاست خارجی قدرت های بزرگ،ص،۹۱.

د چین لومړنی رهبر د ساړه جنګ وروسته جیانګ زمین وو چې د دریېیم نسل د رهبر په صفت پېژندل شوی دی،عقیده یې درلوده چې د چین بهرنی سیاست باید درست درک شي،سوله یېز تعامل او د موقعیتونو سره برخورد او د فرصتونو،امتیازات درست پېژندل اړین دي، د شرایطو څخه باید مهمه ګټه واخېستل شي په بهرني سیاست کې باید په نظر کې ونیول شي،چې د ماهو د نظریاتو په خلاف یې عمل وکړ ځکه ماهو د غرب د سیاست سره په تقابل او مقابل قطب کې قرار درلود د شوروي اتحاد سره یې هم د کمونیست ګوند د اصولو په هکله د ماهو د نظریاتو په استناد،مخالفت درلود،چېن یې د انزوا یا ګوښه توب د سیاست څخه راوویست چې د چین د اقتصادي ودې او پرمختیا ضمانت یې په نړیوال ډګر کې وکړ په همدې دلیل یې خپل دوه عمده او اساسي ابتکارات په نړیوال سیاست کې په ۱۹۹۰ میلادي کال وړاندې کړل.

لومړی ابتکار یې د سترو قدرتونو د ډیپلوماسۍ د ایډیالوژۍ او مفکورې طرحه ده، دا په داسې حال کې ده چې چین په ۱۹۹۰ لسیزه کې یو اقتصادي ،نظامي او سیاسي نړیوال ستر قدرت نه وو،خو چین خپلې اړیکې د سیمې د قدرتونو سره ټینګې کړې لکه داسیا فاسفیک هېوادونه.
په ۱۹۹۰ میلادي کال کې د چین او امریکا په منځ کې خبرې اترې ترسره شوې چې توافق ته ورسېدل ترڅو په ۲۰۰۱ م کال کې چین د تجارت د نړیوال سازمان غړیتوب ترلاسه کړ چې دا د چین او امریکا د ښه نیت یو ښه بېلګه ده.[۱۶۸]
دوهم ابتکار یې هغه طرحه وه چې؛ د امنیت د نوي مفهوم په نامه یادیږي ، یادې ګډې ګټې د نظامي توان اوطاقت په ځای غوره وګڼل شوې چې یو مخکینی شرط د امنیت لپاره خوښ شوی و او د متقابل اعتماد لاره د نظامي توازن او د حذف د سیاست په ځای غوره شو، چې د امنیت د تامین لپاره مهمه وسیله وبلل شوه.

**دوهم ـ اداري یا بېوروګراتیک متغیر:**

د چین سیاسي نظام د یوازینی کمونیست ګوند تر حاکمیت لاندې دی، که څه هم د چین مقامات د مشورتي سیستم علاقمندان دي چې د څو ګوندونو شتون هم وجود ولري، خو زیاتره تصمیمونه د ګوند تر اقتدار لاندې صورت نیسي.
د چین د خلکو ملي ګنګره ستر دولتي ارګان دی، چې د کمونېست ګوند له مهمو غړو څخه تشکیل شوې ده په سترو مهمو تصمیمونو کې اساسي رول لري چې د ۱۹۸۲ میلادي کال اساسي قانون د

[۱۶۸] قند بر لو،عبدالله،مناسبات اقتصادي امریکا وچین واثار ان برامنیت ملی ایران،مطالعات رهبردی،تهران،۱۳۸۹،ص،۴۸ ـ ۱۱۳الی ۱۴۰.

٦٢ مادې پر بنسټ د جمهور رییس او د جمهور رییس معاوینین،صدرا عظم او مرستیالان یې ،وزیران،د مرکزي نظامي کمېسیون رییس او همدا رنګه د سولې او جنګ په هکله تصمیم نیول چې د بهرني سیاست په مورد مهم صلاحیت ورسره شته په غاړه لري.
د خلکو د ملي ګنګرې دائمي کمېټه د ۱۹۸۲ کال د اساسي قانون د ٦٥ مادې پر بنسټ د ملي ګنګرې سره په مشوره اوهمغږۍ، د بهرنیو سفارتونو په انتصاب،د معاهداتو ابطال او ردول او د جنګ اعلان په بهرني سیاست کې یاد شوي صلاحیتونه لري.
د خلکو د جمهوریت کابینه د ۸۹ مادې په اساس د بهرنیو چارو په هکله فعالیت کولای شي.

**دریېیم ـ ملي متغیر:**

د شخص د نقش او د اداري متغیرونو په څنګ کې ملي متغیر هم په بهرني سیاست کې رول لري چې لاندې عناصر په برکې نیسي؛د بیلګې په ډول طبیعي جغرافیایي موقعیت،نظامي توان ،اقتصادي وړتیا او نیشنلېزم یا ملت پرستي.

**الف ـ خاوره یا جغرافیایي حدود؛**

د چین اوسنی مساحت ۹۱٦ مېلیونه کېلو متره مربع دی د سرحداتو اوږدوالی یې ۲۲۸۰۰ کیلو متره او له ۱۸هېوادونو سره د وچې او اوبو سرحد لري،د مساحت له نظره د نړۍ دریېیم هېواد دی ډېر شمېر رودونه او سیندونه لري،په بحر کې د پنځه زره جزیرو د ملکیت خاوند دی چې د چین لپاره خاص ارزښت لري.
ب ـ د ۲۰۰٦ میلادي کال نفوس شمېرنه ښکاره کوي چې د چین نفوس یو میلیارد درې سوه دوه ویشت میلیونه دی چې د نړۍ د نفوسو دویشت فیصده جوړوي.
د سن منځنی یا متوسط اندازه یې د ۱۹۹۵ میلادي کال دد سروې له مخې ۲۷ کاله ټاکل شوي دي چې تر ۲۰۲۵ میلادي کال پورې به د سن منځنۍ کچه تر څلوېښت کاله پورې ورسیږي.

**ج ـ نظامي قدرت؛**

د چین اردو په ځینې بهرنیو جګړو کې برخه اخېستې ده چې د چین د اردو کامیابي ښکاره کوي د بېلګې په ډول په ۱۹۵۰ میلادي کال کې د کوریا سره جنګ، په ۱۹٦۲ میلادي کال د هندوستان سره د پولې په سر جنګ،په ۱۹٦۱ میلادي کال کې د شوروي سره د سرحداتو په سر جنګ او په ۱۹۷۹ م کال کې د ویتنام سره جګړه چې د چین دریځ یې په نړیواله کچه تثبیت کړ .

د ۱۹۵۰ په لیسزه کې د چین اردو پنځه میلیونو تنو ته رسېده، خو په ۲۰۰۷ میلادي کال کې دغه شمېر په بحري،فضایي، ځمکني ساحه کې،د چټک غبرگون ځواکونه او نظامي ته ورته ځواکونو په شمول ۲،۱ میلیونو تنو ته رسیږي چې ځمکنۍ اردو یې ۱،٦ میلیونه تنه دی.

د یاد تنقیص او کمبود لامل د چین د اردو د پرسونل د کیفیت لوړوالی دی.

د چین د خلکو اردو نور ځواکونه هم په تشکیل کې لري،لکه )

PAPیا Peoples armed police force

PMF(people militia forces)

MSS(Ministry of state security)

په کورني نظم او امنیت کې اغیز لري چین لومړي ځل په ۱۹٦۴ میلادی کال کې د اټوم بم ازماېښت کړ چې په سینگ کیانگ ایالت کې یې په کامیابۍ سره ترسره کړ .

وروسته له همدې ازماېښت څخه په ۱۹۷۰ میلادي کال کې چین په ملل متحد کې غړیتوب هم حاصل کړ.[۱٦۹]

دا په داسې حال کې ده چې د هندوستان اټوم بم په ۱۹۷۴ میلادي کال کې په کامیاب ډول ازمایښت شوی وو،نو ځکه ویلای شو چې د چین هېواد د اسیا په کچه لومړنی هېواد دی چې اټوم بم یې درلود.

د چین د ماهو په خبره چې امریکا یې د کاغذي زمري په نامه پېژندله هر وخت یې دا شعار ورکاوه چې اټومي سلاح باید د دښمن په مقابل کې لومړی ونه کارول شي.

(No first use) د اصل په نظر کې نیولو سره باید د نورو هېوادونو سره چلند وشي.

**د ـ اقتصادي وړتیا؛**

چین ځینې عوامل لري چې د بې ساري هېواد په بڼه یې بدل کړی د بېلگې په ډول د نړۍ د سترو هېوادونو له جملې څخه دی، اقتصاد یې په گړندیتوب او چټکۍ سره مخ په وده او پراختیا روان دی،تر ټولو ستر تولیدونکی هېواد دی،دوهم مصرف کوونکی هېواد دی، ترټولو ستر سپما کوونکی هېواد او د نظامي بودجې له نظره دوهم نظامي مصرف کوونکی هېواد شمېرل کېږي.

د چین کلنۍ اقتصادي پراختیا ۹ فیصده ده، چې هیڅ اقتصاد پوه د چین په مورد یادې تېزې او گړندۍ ودې وړاندوینه نه شوه کولای،د نړۍ ۱۷ فیصده توکي په ټوله کې تولیدوي.

---

[۱٦۹] نقیب زاده،احمد، همهغه اثر

د چين ګړندی اقتصادي پرمختګ او وده په بين المللي معادلاتو کې چين ته ځانګړی ځای ورکړی او د بل اړخ څخه يې په نړيواله کچه د چين د انرژۍ اړتيا يوه ډېره اساسه موضوع ګرځولې ده.

دا په دې معنی چې چين هر ډول انرژۍ ته اړتيا لري او همدا رنګه د غرب تشويش يې د چاپيريال د ککړتيا او د تجارتي انصاف په هکله ډېر کړی دی.

د ۱۹۷۰ ميلادي لسيزې په اوږدو کې د چين بهرنی سياست او ستراتيژي په درې محوره اتکا درلوده.

۱ـ د کورنيو موخو څخه ملاتړ چې؛ په ټوله کې د ماهو د وخت سياسي اقتصادي ثبات ته لومړيتوب ورکول کېده.

۲ـ د امنيت له نقطې نظره بايد بسيا شي ترڅو د شوروي اتحاد د يرغل پر وړاندې په امن کې ووسي.

۳ـ په نړيوال سياست کې د چين د نفوذ او توان څخه ملاتړ وشي.[۱۷۰]

دا چې د چين بهرنی سياست د انزوا طلبۍ يا ګوښه کېدلو څخه د څو اړخه سياست طرف ته د خوځښت په حال کې دی اود نسبي مربوط کېدلو سياست ته يې بدلون ورکړ.

دا د ۱۹۷۰ ميلادي کال څخه تر ۱۹۸۰ ميلادي کال پورې د چين بهرنی سياست وو،ځکه د ګوښه کېدلو سياست د يوه اوږده وخت لپاره نور د چين د ملي ګټو د تحقق لپاره اغيز ناک نه وو.

د يوه طرفه د چين امنيت په خطر کې وو او له بله اړخه يې د کورنيو اړتياو او سياسي بې ثباتي د دې سبب شوې وه چې په دې وخت کې امريکا د ويتنام سره په جګړه بوخته وه.

او امريکا له هرې نقطې نظره د شوروي اتحاد د پرمختګ څخه بې خبره پاتې شوي وه او د بل اړخه د شوروي اتحاد حرکتونه او نظامي خوځښتونه د چين په پولو او سرحداتو کې د چين لپاره يو بالقوه او بالفعل خطر وو،د جاپان صنعتي کېدل د چين لپاره بل خطر وو،چين د خپل انزوا طلبۍ د سياست پر بنسټ په غربي اروپا او دربيمه نړۍ کې کوم دوست هم نه درلود،د چين په داخل کې د فرهنګي انقلاب په ترڅ کې شورش رامنځته کړی وو چې د سياسي،اجتماعي او اقتصادي بې نظمۍ سبب وو.

[۱۷۰] قوام،ډاکټر سيد عبدالعلی،اصول سياست خارجی وسياست بين المللی،چاپ ګلها قم،۱۳۹۴،ص،۲۱۲.

په ۱۹۶۹ میلادي کال کې شوروي اتحاد چین ته ګواښ وکړ چې اټومي اسلحه ورباندې کاروي شوروي اتحاد خپل سرحدات د قوت له نظره څو برابره زيات تقويه کړل.
ياد کورني او بهرني فشارونه په چين زيات شول چې اړ يې کړ د خپلو يو شمېر سنتي او عرفي سياستونو څخه د امريکا او چاپان هېوادونو پر وړاندې لاس په سر شي،د چاپان او امريکا سره اړيکې له سره ورغوي ترڅو شوروي اتحاد د چين د بالقوه تجاوز او يرغل څخه اقلا په شا شي.
چين خپل ټول پخواني سفيران هغو هېوادونو ته واستول چې د ګوښه کېدلو په پايله کې يې د فرهنګي انقلاب په اوږدو کې د څو کالو راهيسې خپل هېواد ته رابللي وو،وروسته له همدې نېټې چين په بشپړ ډول په بهرني سياست کې د شوروي اتحاد ضد دريځ خپل کړ.[171]
مسکو هم د چين د يرغليزې ډيپلوماسۍ په وړاندې د چين ضد ډيپلوماسۍ ته زور ورکړ ترڅو په اسيا کې د چين تلاشونه کمزوري کړي ،چې ښې بېلګې يې د هندوستان سره د دوستۍ تړون په ۱۹۷۱ ميلادي کال،د ويتنام سره تړون په ۱۹۷۸ ميلادي کال،په سابيرياکې د نظامي قوت ډېروالی ديادولو وړ دی.
هـ ـ نيشنليزم:
د نولسمې پېړۍ راهېسې د چين ملي ګرايي احساس يا د مليت خوښونې احساس په نړيواله اړيکو کې اساسي رول درلودلی دی دا په داسې حال کې ده چې ځينو هېوادونو داسې نظر درلود چې د چين د سنت،عرف او فرهنګ څخه پيروي او احترام کول،چين هغه هيلې ته رسوي چې ديوه نړيوال قدرت په حيث يې توقع لري.
د نيشنليزم اثرات او اغيز د چين په بهرني سياست کې، درې کټګورۍ نېشنليستي ډلې د تميز وړ دي.

**۱ـ بومي خوښوونکي يا بومي ګرايان نېشنليستان:**

هغه ډله نېشنلېستان دي چې د کنفوسيوس د دين په اصولو ولاړ دي په ځان بسيا کېدل او چينايي سنت عرف او کلتورته عقيده لري د يوه ارزښت په حيث يې درنښت کوي، دچين کمزورتيا د غرب د مداخلې څخه بولي، د يادې ډلې د افکارو اوعقايد انعکاس د چين په بهرني سياست کې د بهرنيانو په وړاندې د عقدې او نفرت ښکارندوی ده.

[171] قوام، ډاکټر سيد عبدالعلی،همغه اثر،ص،۲۱۱ـ۲۱۳.

**۲ـ** د بومي خوښونکو پر وړاندې د سنت،عرف او کلتور ضد ډله وجود لري،دوی عقیده لري چې سنتي افکار د بېلګې په ډول د کنفوسیوس سلسله واره عقیده او باور، د چین د کمزروتیا سبب شوې ده.
یاده ډله د غربي فرهنګ د پیروی څخه ملاتړ کوي، سیاسي پراختیا، اقتصادي وده د چین د پرمختګ لپاره اړینه بولي.
په نړیوال نظام کې د بهرني سیاست په ډګر کې مصالحه او حرکت، توقع لري لکه په ۱۹۵۰ میلادي کال کې د شوروي مډل نظام چې د چین ملي ګټې یې تامینولې خو په ۱۹۷۰ میلادي کال کې د چین ملي ګټې او موخې د غرب په فرهنګ کې نعښتې دي.
**۳ـ** هغه نېشنلیستان دي چې په افکارو او عقایدو کې یې د بومي خوښونکو او د چینایي سنت ، عرف او فرهنګ ضد ډلې نظریه ،په ګډ ډول ځای لري.
که څه هم د غرب او دغرب د متحدینو په ضد افکار لري خو د چین د مرکزي حکومت د ځینو سیاستونو سره هم موافق نه دي لکه د شخصي ازادیو محدودیت او یا د سیاسي ګډون نشتوالی،د مرکزي حکومت په سیاست کې ، په واقعیت دغه ډله نېشنلیستان لبرال افکار لري چې وایي ( نه د بهرنیانو غلامان یو نه د دولت غلامي کوو) چېنایي نېشنلیزم یوه بالقوه ځواک دی چې د چین په بهرني سیاست کې شتون لري. په لنډ ډول دنېشنلېزم سیاست په لاندې اصطلاحاتو کې واضح شوې دی.

Anti traditionalism

Liberal nationalism

Inward looking culture

**څلورم ـ د بین المللي نظام جوړښت او اثر یې د چین په بهرنی سیاست:**

د چین د بهرنی سیاست دریځ او اطاعت په خاص ډول د ساړه جنک وروسته د بین المللی لوبډلو تراغیز لاندې هم دی.

له ۱۹٦۰ تر ۱۹۸۰ میلادي کلونو ترمنځ چین د شوروي اتحاد د اړیکو د پراختیا څخه برخمن وو او خپله د کمونیزم او کارګرې پرولتاریا ایډیالوژي یې مخ ته بېوله.

خو د ۱۹۷۰ میلادي کال څخه وروسته چې د شوروي اتحاد سره د ایډیالوژۍ د اختلاف له امله اړیکې کړکیچنې او خړې پړې شوې، د امریکا سره یې اړیکې دوستانه شوې.

د ۱۹۹۰ میلادي کال څخه وروسته چې نړیوال نظم بدلون وموند، د چین لپاره د شوروي اتحاد تر سقوط او پاشل کېدو وروسته د امنیت له نقطې نظره تر ټولو ښه موقع وه.

امنیتي نوی مفهوم،هغه طرحه ده، چې د جیانګ له خوا مطرح شوه چې د ناټو د پراختیا سره موافق وو چې د ختیځو هېوادونو لور ته وغځیږي.

بل مفهوم، دوه اړخه ډیپلوماسي وه چې لومړۍ طرحه یې د څنډې ډیپلوماسۍ یا د حاشیوي ډیپلوماسۍ په نامه یادیږي (Peripheral diplomacy) چې په ۱۹۹۰ کال او دوهمه د روښانه سیمه ییزې ډیپلوماسۍ طرحه وه، چې د اوجینتاوو په دوره کې مطرح شوې ده.

لومړۍ طرحه د چین بهرنۍ سیاست د سیمې د هېوادونو سره د کړکیچ د کموالي او د دوستۍ لاس غځول په برکې نیسي چې د چین اړیکې یې د سیمې د هېوادونو سره نېک کړل.

او دوهم مفهوم یا طرحه چې د چین ملي ګټې او موخې د اسیا دختیځ هېوادونو پرته د چین اړیکې د افریقا، منځنی ختیځ او لاتیني امریکا د هېوادونو سره نغښتې بولي.

د چېن د نظامي قوتونو مجهز کول د کیفیت له نظره او هم د اټومي زېرمو پراختیا د غرب د تشویش سبب شوې ده، چې د مارک لین ټین په نظر د چین د دې حرکت لپاره درې لاملونه شتون لري.

**اول ـ د نظامي ځواک ډېرول:**

د اقتصادي ودې یوه طبیعي پایله ده چې پیکنګ یې د کوژو په جنګ کې (۱۹۹۹)میلادي کال او هم د فارس خلیج په جګړه کې(۱۹۹۱) میلادي کال متوجه کړ چې چین اړتیا لري چې خپل نظامي قوت لوړ کړي په خاص ډول د (C٤I) سیستمونه باید چمتو کړي.

C١=COMMAND

C٢=CONTROL

C٣=COMMUNICATION

C٤=COMPUTERS AND INTELLIGENCE

په چين باندې د ګلخانه يي ګازونو د توليد موضوع هم يو انتقاد دی چې د صنعتي چين د کړنو په پايله کې د اوزون د لايحې يا طبقې د پراخوالي له سببه د اقليم د ګرمېدو او د چاپيريال د ککړتيا سبب ګرځيدلی دی.

چين انتقاد کوي چې امريکا هم د کيو ټو په تړون کې لاسليک نه دی کړی.[۱۷۲]

چين ◌په خپل بهرني سياست کې امريکا د خپل ستراتيژيک ملګري په حيث منلی دی، خو د امريکا هژموني يا د يوه ابر ځواک په حيث يې نه مني چې يوه بېلګه يې د سوريې قضيه ده. د چين بهرنی سياست اوس په قراره سره د ايډيالوژيک اړخ څخه فاصله نيولې او د چين د امنيت چټک خرابوالی او نازک حالت ته د چين په بهرني سياست کې ډېر ارزښت ورکول شوی دی.

په اوسنيو شرايطو کې د چېن امنيت چې پنځه شپېته کاله د چين د کمونېست جمهوريت څخه تېر شوی دي،بيا هم د چين د امنيت کمزروتيا د يوه بالقوه خطر په ډول شتون لري، جغرافيايي موقعيت او شرايط ،د نفوسو ډېروالی،سياسي تړلې فضا او اختناق،د بهرنيو دښمنانو لاس وهنه، هغه مهم عوامل دي چې د چين امنيت ته سخت ګواښ بلل کېږي.

**د چين د امنيت په وړاندې مهم ګواښونه:**

نوموړي ګواښونه چې امنيت ته متوجه دي، هغه عوامل دي چې د دولت اساسي عناصر تر ګواښ لاندې راولي لکه نفوس،خاوره يا جغرافيايي حدود،حکومت،حاکميت او په بين المللي ډګر کې د حکومت د منلو کچه.

په دې ترڅ کې د چين د دولت ستراتيژيکې موخې عبارت دي له؛د سياسي نظام ثبات،ملي هوساينه او ملي انسجام،همغږي او د بهرنيو تخريب کوونکو عناصرو د نفوذ څخه د دولت ساتنه ده.

ځکه د چين د دولت لپاره امنيتي نازک حالت تر بل هرګواښ ډېر محسوس دی چې د داخل او بهر څخه ورته ګواښونه بالفعل او بالقوه موجود دي او په لاندې ډول دي.

[۱۷۲] قوام،ډاکټر سيد عبدالعلی، اصول سياست خارجی وسياست بين المللي،نشر ګلها،قم،۳۹۴،ص،۰۹۰۱.

**۱ـ په سیاسي نظام کې د قدرت د همغږۍ نشتوالی** ، په چین کې له ډېر پخوا څخه د قدرت غوښتنه او د یوه شخص قدرت ته رسېدل او واک درلودل ، هغه دوه مهمې منفي ځانګړنې دي،چې په چین کې یې ځینې رهبران لري او د امنیت د نازک حالت په راوستلو کې رول لري.

د بېلګې په ډول یو مستبد پاچا د ټول سیاسي قدرت سره چې د استبداد پایله ده،چې حصومت او دښمني به د شخصیتونو په منځ کې د عقدې په شکل پاتې شي.

دا چې یو مستبد پاچا به هر هغه څه کول چې زړه به یې غوښتل هره خبره به یې د ملت لپاره قانون باله،نن ورځ په چین کې د یوه سیاسي نظام په شتون کې اوسپنیز اقتدار او نظم لري خو سیاسي رهبري یې، انفرادي او شخصي نه ده.

د کمونیست ګوند د سیاسي دفتر دائمي کمېټه چې اووه غړي لري په حکومت کې ستر مقام دی یعنې د ماهو د دورې په خلاف په چین کې کاریز ماتیک رهبرانو ته ځای نشته او ټولیزه رهبري دادمنه او سالمه ګڼي.

د کمونېست ګوند په آند او نظر، انفرادي ځواکمنه رهبري که انسجام او یوالی راوستلی شي ځینې کړکیچونه هم زېږولی شي، د بېلګې په ډول د شوروي اتحاد پخوانی رهبر د مېخایل ګورباچوف د رهبرۍ دورې ته اشاره کولی شو، ځکه نو د کمیونېست ګوند عمومي منشي یا جمهور رېیس نه شي کولای د ګوند د رهبري کمېټې د سرو لیکو څخه تېر شي،د خلکو ازادي بخښوونکي اردو چې ټول افسران یې د ګوند غړیتوب لري د ګوند په امر او فرمان عمل کوي چې په ۱۹۸۹ میلادي کال کې د تیان ان من په میدان کې اردو تر دولس زره لاریون کوونکي د ګوند په امر ووژل او د همدې ګوند په امر یې اووه میاشتې نظامي حکومت اعلان کړ.

د چین د خلکو ملي کنګره چې د اساسي قانون مطابق ورته اختیارات ورکول شوي دي د کمونېست ګوند په هدایت او امر خپلو ګړنو ته مشروعیت ورکوي.

د ګوند، اردو ، کنګره او دولت د همغږۍ سربېره هم سیاسي فساد په سیاسي نظام کې شتون لري چې یو اقتدار خوښوونکی نظام دی.

د چین د خلاصو دروازو سیاست د چین د خلکو په سیاسي بېدارۍ کې مهم رول درلودلی دی ځکه چین د خپل اقتصاد د پراختیا لپاره د نړۍ سره پراخې اړیکې او یوه با امنه نړیوال چاپیرال ته اړتیا لري.

بهرنۍ نړۍ ته د چینایانو تګ راتګ د سوداګرۍ او زده کړو په منظور ، همدا رنګه د چین صادراتي سوداګري ټولې نړۍ ته د ډینګ د اصلاحاتو پایله ده چې چین یې د نړۍ د سترو اقتصادي قدرتونو په قطار کې درولی دی چې په اوسنیو شرایطو کې د نړۍ لومړی اقتصادي قدرت بلل کېږي.

چې اساسي لامل یې د مارکسیزم لیننسم ا و ماهو د اصلاحاتي نظریاتو یوې خوا ته پرېښودل دي چې په پایله کې چین د نورې نړۍ سره همغږی شو خپل بهرنی سیاست یې د نورې مترقي نړۍ په وړاندې ازاد پرېښود او خپل د ګوښه کېدلو یا انزوا سیاست یې ترک کړ چې همغه د ماهو نظریه وه.

**۲ ـ د سرحداتو ګواښونه او د پولو ناندرې:**

د چین جغرافیایي پراختیا د ډېرو ګواښونو منشا ده، پولې یې اوږدې او ازادې دي ، قومي نژادي تنوع او څو رنګوالی، فرهنګي څو رنګوالی په دې هکله د چین د حکومت لپاره خنډ جوړ کړی دی چې د تا ریخ په اوږدو کې تریرغل لاندې راغلی دی،د چین دیوال یې یوه ښه بېګله ده چې د میلاد څخه مخکې بیا د مېنګ تر دورې پورې څو ځله بیا رغول شوی دی(۱۳۶۸ـ۱۶۴۴) په ماډرن عصر کې چین د ځینو قدرتونو د یرغل شاهد وو لکه برتانیه ، جاپان،روسیه ،فرانسه او جرمني.

د دوهم نړیوال جنګ څخه مخکې جاپان د چین د یرغل لپاره مهم ګواښ وو، د چین د خلکو جمهوریت د جوړښت څخه وروسته چې په ۱۹۴۹ میلادي کال د ماهو تسه دونګ په مشرۍ جوړ شو ،د چین د امنیت او دفاع نوی سیاست او پړاو پیل شو، چین د یوه نړیوال قدرت په حیث څرګند شو.

چین د ۱۸ هېوادونو سره ګډه پوله لري چې سرحدي شخړې به ضرور موجودې وي د چین د خلکو جمهوریت د هانګ کانګ او تبت سره سرحدي شخړې په سوله ییز ډول حل کړې خو د شوروي جاپان،هند او ویتنام سره یې د خپلو سرحدونو شخړې د نظامي لارو حل کړي دي.

سین کیانگ او تبت ، داخلي مغلستان،گوانگش او ننگیشیا هغه سیمې دي چې د یو لړ استقلال او ازادۍ د حقوقو څخه برخمن دي خو لږ او ډېر نارضایتي او بې امنیتي یې د بې امنیتي په بڼه کله ناکله څرګندیږي.

د بېلګې په ډول د تبت او سین کیانگ د جلا کېدلو اواستقلال غوښتونکو غورځنګونو فعالیتونه د چین لپاره امنیتي ګواښ دی.

په تبت کې اصلي ګواښ د بودایانو له امله دی او په سین کیانگ کې د اویغور د مسلمانانو ناخوښي ده چې ازادي غواړي ، د ۱۹۹۰ میلادي کال راهیسې دا غورځنګونه ډېر فعال شوي دي.

یادې سیمې د جغرافیایي موقعیت له نظره د شورش لپاره وړ سیمې دي، چې د چین د اوسپنیز سوک سیاست یې د نړیوالو د عکس العمل سبب هم شوی دی.

چین د تبت اوسین کیانگ جلاوالی ځکه نه غواړي چې د یوې خوا د تاریخي لرغونتوب له نظره او د بله اړخه د خاورې یوالی،په همدغو ساحاتو کې د نفتو او تېلو موجودیت او د جیوپولیتیک موقعیت درلودل یې دلایل دي.

د اویغور د مسلمانانو نړیواله کنګره د چین د عکس العمل په وړاندې هر وخت خپل د اعتراض او شکایت غږ پورته کړی دی .

د تبت د خلکو د اعتراض یو شکل د دوی ځان سوځونه ده چې د ۲۰۰۹ میلادي کال راهیسې یې سل پېښې لیدل شوي دي.

دولت یې په وړاندې د مقدسه ځایونو ورانولو ته شروع کړې ده چې د تبت د خلکو د لا زیات تحریک لامل یې برابر کړی دی چې؛ د لسو بېلابېلو سازمانونو نومونه د دولت له خوا افشا شول چې په تبت او سینگ کیانگ کې د استقلال تحریک فعاله ساتي چې د استقلال لپاره یو لړ تروریستي اعمال هم ترسره کوي.

هغه مهم تروریستي ګروپونه چې د چین دملي امنیت د وزارت له خوا په ۲۰۰۳ میلادي کال کې افشا او اعلان شول، څلور ګروپونه دي چې په ترکستان کې فعالیت کوي په لاندې ډول دي:

۱ـ د ختیځ ترکستان اسلامي غورځنګ.

۲ـ د ختیځ ترکستان ازادي غوښتونکی سازمان.

۳ـ د اویغور د ځوانانو نړیواله کنګره.

۴ـ د ختیځ ترکستان د استخباراتو مرکز.

چې د دې سره یې د څو تنو نومونه چې د اویغور مسلمانان وو هم نشر کړل.

په ۲۰۰۲ میلادي کال کې بوش د ختیځ ترکستان اسلامي غورځنګ د القاعده سره په تړاو او همکارۍ تورن کړ او یو تروریستي سازمان یې وباله.

یو شمېر محدودیتونه یې د یاد سازمان په فعالیتونو وضع کړ.

امریکا په چین باندې دا اعتراض هم لري چې ځینې وخت د خپلو سیاسي مخالفینو د ځپلو په منظور یادې ډلې د تروریزم تر نامه لاندې ځپي.

خو د چین دولت بیا عقیده لري چې د تروریزم د مقابلې په وړاندې د امریکا معیارونه دوګوني دي.

**۳ ـ د چین د بین المللي نفوذ په خلاف ګواښونه:**

د چین دولت د کنفوسیوس د زده کړې ، د تمدن لرغونتوب،د امبراطورۍ لرغونی تاریخ، ستر نفوس،جغرافیایي پراخوالی،اقتصادي ځواکمنتیا او د بهرنیو ځواکونو په وړاندې د چین اغیزمنتیا په درلودلو سره چین حاضر نه دی چې په نړیواله کچه د منځني قدرت په بڼه په نړیوال سیاست کې څرګند شي.

دا چې د کنفوسیوس زده کړې او تعالیم دسیاست او اخلاقو په برخه کې لري خو د شلمې پېړۍ په پیل سره چین غوښتنه لري چې لږ تر لږه چین باید د نړۍ د سترو قدرتونو په قطار کې وشمېرل شي او په سیمه کې د رهبرۍ د رول دعوه هم لري.

چین د ساړه جنګ څخه وروسته،د امریکا څرګندېدل د یوازیني ابرځواک په حیث د نظامي نقطې نظره ، دچین لپاره یو مهم خنډ او مانع بولي ترڅو د نړۍ په کچه خپل اهداف وڅاري او بین المللي مقام خپل کړي.

په دې برخه کې د امریکا نفوذ په اسیا پاسفیک سیمه کې، د ناټو پراختیا په شرقي اروپا هېوادونو کې او د چین نفوذ او پراختیا د نورو هېوادو اړخ ته د پیکنګ لپاره اساسي بالقوه خنډونه جوړ شوي دي.

په دې هکله د امریکا نږدې او تودې اړیکې د استرلیا جاپان، تایوان، جنوبي کوریا سره دیادولو وړ دي، چې د چین لپاره یې یو خنډ جوړ کړی دی او هم یې نفوذ د مرکزي او جنوبي اسیا اړخ ته مخ په پراختیا دی چې هندوستان یې د یادولو وړ یوه بېلګه ده.

په استرالیا او جاپان کې د امریکا نفوذ، د اسیا پاسفیک په شمال او جنوب کې دوه مهمې لنګرګاوې دي چې؛ د چین د مهارکولو لپاره یو ټاکنه ده چېن هم د امریکا جاپان او استرلیا د اتحاد څخه خپله نارضایتي څرګنده کړې ده .

انرژي ته په ورځني ډول د امریکا او چین اړتیا ، د امنیت او ملي قدرت په هکله ډېر اهمیت لري، افریقا د دې جملې د انرژي له نظره یوه مناسبه سرچینه ده چې چین ورته د راتلوونکي پلان لري چې نفت او انرژۍ د خپلو تجارتي کالیو او توکو د صادراتو په وړاندې د افریقا سره معامله کړي.

انګولا،سوډان،کانګو،نایجریا او ګېنیا هغه هېوادونه دي چې چین ته نفت صادروي د بله اړخه امریکا د چین سره په سیالۍ کې د یادو افریقایي هېوادونو سره د نفتو او تېلو د واردولو معامله پیل کړې چې هره ورځ د پراختیا په حال کې ده.

هغه موضوع چې د افریقا په هکله د چین لپاره د تشویش وړ ګرځېدلې ده هغه د امریکا سیاسي او نظامي شتون په افریقا کې دی،چې امریکا غواړي د خپل ملي قدرت، ملي ګټو او د امریکا د هژمونیزم د تثبیت لپاره په افریقا کې سیاسي او نظامي شتون پیدا کړي.

چین د امریکا د لاسوهنې څخه د تایوان په هکله هم تشویش لري چې چین یې په بشپړ ډول خپه کورنۍ موضوع ګڼي چې وروسته به د تایوان موضوع په بشپړ ډول په همدې فصل کې تشریح شي.

جورج بوش د نړۍ هېوادونه په دښمن او دوست هېوادونو باندې ووېشل او د ډیموکراسي د نفوذ او د خپرېدلو اړتیا یې عاجله بللې وه(زموږ په وطن کې د ازادۍ پاېښت تر ډېره حده د نورو هېوادونو د ازادۍ په وده او پراختیا پورې اړه لري.

د سولې د پراختیا لپاره تر ټول ښه امید زموږ په نړۍ کې او په ټوله نړۍ کې د ازادۍ خپرول دي.)

امریکا په چین کې په دیموکراسۍ او د بشر په حقوقو تاکید کوي او هر وخت د چین دولت له همدې زاویې څخه تر سیاسي فشارونو لاندې راولي، دا په داسې حال کې ده چې په ټوله **امریکا کې د بشر د حقوقو د ساتنې او ملاتړ هیڅ یو نهاد ته د امریکا حکومت په ملي او بین المللي کچه،د فعالیت جواز نه ورکوي.**

د امریکا په متحده ایالاتو کې د بشر د حقوقو نقض په بېلابېلو نهادونو کې په ډېر وحشیانه ډول شتون لري، د بېلګې په ډول د کلنیو اعدامونو کچه په امریکا کې په پټو او مخفي زندانونو کې تر بل هر هېواد په ډېر ظالمانه او لوړه کچه ترسره کېږي چې دا راپور د ملل متحد د بشر د حقوقو د کمېسیون له خوا خپور شوی دی.

د ساړه جنګ په دوران کې د چین ستراتیژیک هدف دا وو چې؛ د ستر حرکت په نامه(جهېش بزرګ)سره د ملي اقتدار او د بین المللي موقعیت سره  د امریکا او شوروي اتحاد په څنګ کې یو نړیوال قدرت اوسي.

په ۱۹۵۰ میلادي لسیزه کې د ماهو تسه دونګ په مشرۍ او تر رهبرۍ لاندې د شوروي اتحاد په همکارۍ د غرب فشارونه یې تر یوه حده شنډول.

په یاده لسیزه کې چین د شوروي اتحاد د بهرني سیاست پلوی وو،په دې وخت کې چین د شمالي کوریا په ملاتړ د امریکا او ملل متحد د پرمختګ مخه ډپ کړه ،دا هغه جګړه وه چې د چین او شوروي په ملاتړ د شمالي کوریا څخه او همدا رنګه د امریکا ملاتړ د جنوبي کوریا څخه په ۱۹۵۱ میلادي کال د کوریا هېواد د وېش په هکله او هم د ایډیالوژیکو اختلافونو دشتون په اساس،شمالي کوریا په جنوبي کوریا یرغل وکړ چې تقریبا ټوله جنوبي کوریا یې تسخیر کړه.

په دې وخت کې ملل متحد د امریکا په لارښوونه چې درې لکه یو څلوېښت زره نظامي پرسونل یې چې اته اتیا فیصده یې د امریکا او پاتې برخه یې د جنوبي کوریا اتباع وه، د ملل متحد تر چتر لاندې د شمالي کوریا په اردو باندې یرغل وکړ چې د شمالي کوریا فوځ یې د چین ترسرحداتو شاتګ ته اړ کړ.

د چین هېواد د شوروي اتحاد په ملګرتیا د شمالي کوریا په ملاتړ څو میلیونه اردو د ملل متحد د اردو په خلاف یرغل پیل کړ چې د عرض البلد تر اته دېرشمې درجې پورې یې د ملل متحد اردو شا تګ ته اړ کړه.

دا باید وویل شي چې د شمالي او جنوبي کوریا سرحدي پوله همدغه د عرض البلد اته دېرش درجې ټاکل شوې وه چې د دوهم نړیوال جنګه څخه وروسته د شوروي او امریکا د ځواکونو په مټ وېشل شوې وه.

د ملل متحد د مداخلې له امله د شمالي او جنوبي کوریا ترمنځ د خصومت د پرېښودلو فیصله وشوه، په دې جنګ کې درې میلیونه انسانان مړه، ژوبل،معیوب او ژوندي ژړند ورک شول، چې له دې جملې څخه درې سوه شپیته زره تنه د امریکا د اردو سرتیري مړه شول او نور چینایي اردو او د کوریا نظامي پرسونل ته تلفات واوختل چې د نړۍ د خونړیو جګړو له جملې څخه شمېر کېږي.[173]-[174]

په دې وخت کې چین د دریمې نړۍ د هېوادونو د رهبرۍ لپاره هم کوښښ کاوه، چې ښه بېلګه یې د ۱۹۵۵ میلادی کال کې د باندونګ(اندنوزیا) د عدم متعهدو هېوادونو په کنفرانس کې ګډون و.

د چین او شوروي اتحاد په اړیکو کې کموالی هغه وخت پیدا شو چې چین د مارکسیزم لیننسم د فلسفې په تفسیر کې او د چین د رهبر(ماهو تسه دونګ)انتقاد د جوزف ستالین په رهبرۍ کې، د بله اړخه ، د شوروي اتحاد مرسته نه کول، د چین د اټوم بم په جوړولو کې او همدا رنګه د شوروي مرسته نه کول د چین او د جاپان د سرحدي پولې د جګړې په وخت کې چې چین ورته ډېره اړتیا درلوده، د چین او شوروي اتحاد اړیکې یې کمزروې کړې.

چین د نیکیتا خروسچف اصلاح خوښوونکې تګلاره خوښه کړې وه، وروسته له هغه د شوروي اتحاد فشارونه په چین باندې پیل شول چې ښه بېلګه یې د شوروی اتحاد انکار وو، چې د چین د

---

[173] پال مر،ډاکټر رابرټ،تاریخ جهان نو،ترجمه محمود،۱۳۸۲،ص،۲۹۰.

[174] رابرت،شوزینګر،ډیپلوماسي امریکا در قرن بیستم،ترجمه حمید رفیعی مهر ابادی،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللي،تهران،۱۳۷۹،چاپ اول.

هېواد د اټومي پروګرام سره یې په ۱۹۵۷ میلادي کال کې د یوه هوکړه لیک په ترڅ کې تعهد کړی وو خو خپل تعهد یې عملي نه کړ.

همدا لامل د شوروي اتحاد او د چین د اختلاف باعث شو چې چین د دریمې نړۍ هېوادونو ته نور هم نږدې شي.

چین وروسته د هایدروجن بم په ازمایښت کې بریالی شو او د نړۍ د سترو هېوادونو په قطار کې وشمېرل شو.

په ۱۹۷۰ م کال کې د امریکا سره د چین اړیکې مثبت اړخ ته لاړې او چین د ملل متحد عضویت یا غړیتوب هم خپل کړ.

په ۱۹۷۴ میلادي کال چې د امریکا او شوروي اتحاد اړیکې مخ په ښه کېدلو وې ماهو دچین بهرنی سیاست (د درې نړۍ سیاست)په ترڅ کې اعلان کړ په درې نړۍ تیوري کې د ماهو له نظره نړۍ په درې ډوله هېوادونو وېشل شوې ده.

۱ـ لومړۍ نړۍ د شوروي اتحاد او امریکا څخه عبارت ده.

۲ـ دوهمه نړۍ د اروپایي هېوادونو، جاپان او کاناډا څخه عبارت ده.

۳ـ درېیمه نړۍ د چین او نورو پاتې هېوادونو څخه عبارت ده.

د درې نړۍ د تیوري ترڅنګ چین د انتي هژمونیزم تیوري هم طرحه کړه چې موخه یې د دریمې نړۍ د هېوادونو رهبري وه چې د چین په لاس کې ده په نورو قدرتونو پورې اړه نه لري.

**د درې نړۍ تیوري څو لاندې پیغامونه درلودل:**

۱ـ چین خپل ځان د درېیمې نړۍ په هېوادونو پورې تړلی بولي، چین د امریکا سره ښې اړیکې لري په دې معنی نه ده چې د دریمې نړۍ هېوادونه یې له یاده ایستلي دي.

۲ـ دا چې شوروي اتحاد د درېیمې نړۍ د هېوادنو په رهبرۍ کې ځای نه لري د چین څو ګوني خوښونکی سیاست د ساړه جنګ وروسته د چین له خوا څارل شوی دی، چې اصلي مخاطب یې امریکا ده .

د شوروي متلاشي او ټوټه کېدل ، د پخوانيو کمونېستو هېوادونو ميلان د غرب طرف ته،د امريکا په رهبرۍ نوی ائتلاف،د نوي نړيوال نظم د تيورۍ طرحه او د امريکا مداخله د درېيمې درجه هېوادونو په کورنيو چارو کې، ټولې هغه پېښې دي چې د امريکا رهبري د نړۍ په سطحه ثبو ت کوي.

چين دا احساس کړه چې؛ اوس د امريکا سره بايد د امريکا د هژمونيزم په هکله سرټمبگي ونه کړي، ځکه د امريکا مداخله او فشار به په هغو هېوادونو ډېر شي چې چين نفوذ په کې لري ،نو ځکه چين د سوله يېزې اوسيدنې او ځو اړخو اړيکو سياست غوره کړ.

د يوشتمې پېړۍ په پيل کې د امريکا يو اړخه تمايلات پيل شول چې؛ د درېيمې نړۍ د هېوادونو ملي حاکميت يې نقض کړ چې ځينې پلمې يې ورته وتراشلې، د بېلگې په ډول د بشر د حقوقو نقض، د ترور يزم څخه ملاتړ او د ټوليزې مړينې د سلاح د جوړولو په تور يې د يادو هېوادونو ملي حاکميت نقض کړ.

د بله اړخه څخه امريکا په ۱۹۹۸ ميلادي کال کې په کوژو کې او په ۲۰۰۳ م کال کې يې په عراق نظامي يرغل وکړ، د اپه داسې حال کې وه چې د ملل متحد د امنيت د شورا جواز ورسره موجود نه وو.

د چين او روسيې د مداخلې څخه چې د منځنۍ اسيا په هېوادونو کې يې کوي مخالفت ښودلی دی خو د چين او روسيې د نږدې کېدلو او ديوه واحد دريځ د نېولو په سبب چې په لاندې مواردو کې يې لري لکه (په عراق باندې د امريکا يرغل ، د شمالي کوريا هستوي بحران،د ايران هستوي بحران او د ناټو پراختيا د شرقي اروپا د هېوادنو لور ته د روسيې او چين واحد دريځ ښيي.)[۱۷۵]

خو د شانگهای د همکاريو کنفرانس يې د يوه گواښ گوونکي جوړښت په حيث د امريکا په خلاف نه دی معرفي کړی، ترڅو د امريکا د حساسيت سبب نه شي، حال دا چې حقيقت دا دی چې د سپټمبر د يولسمې د پېښې وروسته چې د ملل متحد تر چتر لاندې امريکا او ټولو غربي هېوادونو ديوه اتحاد او ائتلاف په جوړولو سره د نړۍ د نوي نسل تر عنوان لاندې په افغانستان او ټولو عربي هېوادونو کې د عربي پسرلي تر نامه لاندې يو په بل پسې يرغليز بريدونه وکړل.

---

[۱۷۵] واعظي،محمود،الگوی رفتار امريکا وروسيه در فرايند تغيرات سياسی در جمهوری های شوروی سابق،معاونيت پژوهشهای سياسي،مرکزتحقيقات ستراتيژيک،مجموعه تشخيص مصلحت نظام،۱۳۸۹،ص،۱۷۳-۱۷۷.

د يادو هېوادونو د رژيمونو د بدلون سبب وګرځېدل او د غربي ليبراليزم او د ټولنيزې ډيمو کراسۍ،ازاد بازار او خصوصي سکټور د ملاتړ تر نامه لاندې يې د يادو هېوادونو د ځو پېړيو جوړ دولتونه،نهادونه، فرهنګ او ارزښتونه د خاورې سره برابر کړل چې همدغه موضوع د دې ځرګندونه کوي چې روسيه او چين د خپلو هېوادونو د حريم د مشروع دفاع په منظور يو نظامي اتحاد د شانګهای د همکاريو د کنفرانس تر نامه لاندې په ۲۰۰۱م کال کې د امريکا په ضد جوړ کړ (ليکوال)

چين د دريېمې نړۍ هېوادونه دساړه جنګ د عصر په خلاف چې د ايډيالوژۍ د نقطې نظره او د انقلاب د صادرولو په سبب يې همکاري ورسره درلوده او د چين سره متحد هېوادونه وو .

خو د ساړه جنګ وروسته د چين سياست د دريېمې نړۍ د هېوادونو په هکله يوازې اقتصادي اړخ لري چې د يادو هېوادونو د خامو موادو څخه استفاده وکولای شي او نوموړي هېوادونه د چين د صادراتو لپاره يو ستراتيژيک عمق او مارکيټ اوسي چين د نړيوال نظام په وړاندې په تدريجي او سوله ييز شکل د سوله ييزې لارې سياست او کړنلارې دريځ خپل کړی دی،ترڅو په يو پر امنه چاپيريال کې خپل اقتصادي فعاليت ته دوام ورکولای شي.

تر هغه سرحده چې د امريکا د نظامي شتون سره په اسيايي هېوادونو کې چين هيڅ ډول منفي عکس العمل نه دی ښودلی.

چين د امريکا شتون په اسيايي هېوادونو کې د سيمې د ارامۍ اساسي لامل بولي،د چين او روسيې دريځ د سوريه په هکله ورته دی ،هغه داسې چې دواړه هېوادونه د ملل متحد د امنيت د شورا د هغې فيصلې سره مخالف دي چې د سوريې په هېواد نظامي فشار راولي،بلکې د خبرو اترو له لارې بايد دا ستونزه حل شي.

په ټولو پورتنیو مواردو کې چین د امریکا د ابر ځواکی او یو قطبي ښکاره کولو سره مخالفت کوي.[۱۷۶ـ۱۷۷ـ۱۷۸]

**دځینو هېوادونو په وړاندې د چین بهرنی سیاست**

**۱- د تایوان هېواد پر وړاندې د چین بهرنی سیاست**

چین د کمونیستي انقلاب ترکامیابۍ وروسته په **۱۹۴۹** میلادي کال، د چین ملي گرایان یا هغه ډله چینایان چې د کمونیستانو په وړاندې یې ماتې وخوړه وروسته له دې د تایوان د قرمز جزیرې ته وتښتېدل چې د چین د خلکو جمهوریت، تایوان له هغه وخته د خپلې خاروې یوه برخه یاده کړې ده خو امریکا د تایوان هېواد څخ د یو مستقل هېواد په څېر دفاع کړې ده.

ملي گرایانو په تایوان کې چې د چین څخه ور تښتېدلي وو، غیر کمونیستي نظام تاسیس کړ چې له **۱۹۴۹ـ ۱۹۷۱** میلادی کال پورې یې دوام وکړ او د چین چوکۍ یې په ملل متحد کې اشغال کړې وه ترڅو په **۱۹۷۰** میلادي کال د غرب په خاص ډول د امریکا اړیکې دوستانه طرف ته لاړې.[۱۷۹]

د تایوان موضوع تر یوه حده خپل ارزښت له لاسه ورکړ، خو پگینگ د تایوان له دعوې څخه لاس په سر نه شو چې یو اقدام یې د بېلوالي د ضد د قانون تصویب دی چې په **۲۰۰۵** میلادي کال کې یې تصویب کړی دی.

په دې ترڅ کې د چین له خوا ځو ځو ځلې د تایوان حکومت ته د چمتوالي اخطارهم ورکول شوی دی او همدا رنگه د چین د هېواد له خوا د تایوان د استقلال او حاکمیت په هکله د ریفرانډم یا (ټولپوښتنې) سره جدي مخالفت دی چې د چین هېواد ښودلی دی یعنې د تایوان خلکو ته د ټول پوښتنې حق نه ورکوي ترڅو په نړیواله سطحه دا اعلا ن کړي چې د تایوان خلک یو ازاد ملک غواړي.

[۱۷۶] قانع،حسن ومرتضی شجاع،بازی بزرگ چین وامریکا در افریقا با تاکید بر تامین انرژی،اطلاعات سیاسی اقتصادی،شماره ۲۴۶او ۲۴۵ ،۱۳۸٦ص ۷۲ـ۸۵.

[۱۷۷] طارم سری،مسعود،عبدالرحمن عالم وبهرام مستقیمی، چین سیاست خارجی وروابط با ایران،چاپ سوم،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللي ، تهران،۱۳۷۰،ص ،۵۷.

[۱۷۸] واعظی،محمود،اهداف ومنافع چین وروسیه در سازمان همکاری شانگ های،مطالعات اسیا مرکزی وقفقاز،تهران،۱۳۸۹،ص،۱٦۵.

[۱۷۹] **نقیب زاده،احمد، همهغه اثر**

خو امریکا د تایوان په هکله څرګند سیاست نه لري ځکه د یوه اړخه امریکایي مدرنه درنده سلاح په تایوان باندې پلوري چې له دې لوري په ملیاردو ډالر د امریکا بودجې ته ځي او له بله اړخه یې په چین باندې یې د اسلحې پلورل منع کړي دي.

خو امریکا د سپتمبر د یولسمې د پېښې وروسته چې د چین د دولت مرسته له امریکا سره ولیدل شوه، امریکا د تایوان په قضیه کې له ځانه نرمښت او انعطاف ښکاره کړ.

**۲- د شمالي کوریا په وړاندې د چین سیاست:**

د تایوان د بحران په خلاف چې؛ چین او امریکا سیالي او د تعارض سیاست لري د شمالي کوریا په هکله چین او امریکا دواړه هېوادونه د منطقوي کړکیچ په صفت د شمالي کوریا د بحران په حل کې مرسته سره لري.

د شمالي کوریا اټومي بحران چې په ۲۰۰۲ میلادي کال کې پیل شو د اوجنتاو د حکومت په وړاندې هغه وخت یوه ستونزه او بحران بلل کېده، ځکه د چین ایډیالوژیک نږدیوالی او نیکې اړیکې د پیونګ یانګ سره چې هر کله د شمالي کوریا سره یو ښه ملاتړی هېواد پاتې شوی وو، د شمالي کوریا د ګواښ له امله د روسیې او جاپان هېوادونه هم په یاد بحران کې راښکیل بلل کېږي.

روسیه او جاپان د منطقې هېوادونه دي چې هر وخت په خبرو اترو کې د چین، روسیه،امریکا ، جاپان او شمالي کوریا هېوادونه د شمالي کوریا په خلع سلاح کولو کې مشورې کړي دي.

**د شمالي کوریا اټومي بحران له څو اړخه کولای شي د چین ملي ګټو ته ګواښ پیدا کړي.**

۱ـ د شمالي کوریا لاس رسی اټومي سلاح ته ، ،په جدي ډول د جاپان او جنوبي کوریا د هېوادونو د تحریک سبب کېږي چې اټومي اسلحې ته لاس رسی پیدا کړي.

۲ـ د شمالي کوریا د بحران کړګیچن کېدل، د چین د دریځ او وضعیت لپاره چې سنتي، انزوا طلبي او ګوښه کېدلو دریځ غواړي، چې د مدرن چین لوري ته په چټکۍ سره قدمونه واخلي نو په نسبت د یوه جنګي چاپیریال یو پر امن او ارام نړیوال او سیمه ییز چاپیریال ته اړتیا لري.

نو ځکه چین د خپلې اقتصادي ودې او د خپلو سوداګریزو چارو د دوام،مارکېټ موندنه او یو پر امنه کوریا او جاپان غواړي.

۳ـ چین ځکه تشویش لري چې د شمالي کوریا د بحران او جنگ په پایله کې حتما د چین هېواد د بې شمېره کډوالو کوربه کېدلی شي.

د همدې له امله چین نړیوال او سیمه ییز سیاسي او نظامي وضعیت ته په کتو سره د امریکا سره یوځای د شمالي کوریا د بحران په کمولو او رامولو کې مرسته پیل کړې ده.

**۳-د روسیې په وړاندې د چین بهرنۍ سیاست:**

په ۱۹۲۰ لیسزه کې د چین ملي گرایانو او د چین کمونیست گوند یوځای سره فعالیت درلود، تر ۱۹٦۰ لسیزې، او مخکې له هغه چې ماهو د کمونیست گوند د ریېسه هېئت سره د کمونیست گوند د ایډیالوژۍ او فلسفې په مورد، د نظر اختلاف پیدا کړي،شوروي اتحاد په کې په مستقیم ډول ستر رول درلود چې د چین په سیاسي چارو کې همکاري وکړي،دواړه لوري یې ملي وحدت ته هم تشویقول.

کله چې د چین انقلاب په ۱۹۴۹ میلادي کال کې د ماهوتسه تونگ په مشرتوب او رهبري کامیاب شو، دغه مرسته او همکاري د چین د ملي ایډیالوژۍ چې همغه کمونیستي ایډیالوژي وه تایید کړه.

د چین ملي گټو سره همکاري او همدا رنگه د بیا رغونې سره کومک وو، چې په نظامي، اقتصادي،روغتیایي او کرنیز ډگر کې یې د مشاورینو په لېږدولو سره دوام ورکاوه.[۱۸۰ـ۱۸۱]

دې مرستې او کومکونو د ۱۹۴۹ میلادی کال د کمونیستي انقلاب د کامیابۍ وروسته ډېر دوام ونه کړ او د جوزف ستآلین په زوال سره په ۱۹٦۰ میلادي لسیزه کې د خروسچف د راتگ سره چې دروسیې سیاسي رهبر شو، د روسیې او چین اختلافات په ښکاره ډول ډېر شول،چې د مارکسیزم د ایډیالوژۍ په تفسیر کې یې اختلاف شتون درلود.

ماهو چې د روسي په نوې سیاسي رهبرۍ باندې یې انتقاد درلود او د غرب په وړاندې یې شاتگ د خروسچف منفي نقطه بلله، ترڅو د ستالین د اعمالو غندنه یې په ښکاره ډول سره کړې وي.

---

[۱۸۰] شاهند،بهزاد،انقلاب چین،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللي وزارت امور خارجه،تهران،۱۳۷۰،س،۲۴.

[۱۸۱] دار بی شر،پان،جمهوریت سیاسي جمهوري خلک چین،ترجمه عباس،هدایت وزیر،اموزش انقلابی اسلامی،تهران،۱۳٦۸،ص،۱۴۰.

د ماهو دغه انتقاد په حقیقت کې د ستالین له دریځ څخه دفاع وه، نو ځکه هغه غندنې چې د خروسچف له خوا په یوه مخفي حزبي جلسه کې د ستالین په ادرس ډېرې منفي خبرې یادې شوې وې، د ماهو د نفرت سبب ورگرځېدې.

ماهو د شوروي اتحاد هغه کوښښونه غندل چې د کمونیزم د کمپ د رهبرۍ لپاره یې کول، د شوروي اتحاد هغه د بې طرفۍ سیاست غوره کول یې وغندل چې د چین او هندوستان د سرحدي پولو په اوږدو کې یې جگړه نښتې وه ،ځکه ماهو غوښتل چې روسیه باید د چین د دریځ څخه د هندوستان په وړاندې ملاتړ وکړي.

دا چې شوروي اتحاد د چین د دریځ ملاتړ ونه کړ ،د ماهو د قهر عوامل یې برابر کړل او بالاخر بله ډېره اساسه او مهمه موضوع چې د ماهو د قهر او عضب سبب شوه، هغه د شوروي اتحاد سرغړونه وه، چې د چین هېواد د اټوم بم د پروژې د ورکولو څخه یې سرغړونه وکړه که څه هم په دې مورد کې یې یو هوکړه لیک هم لاسلی ککړ وو.

دا چې د چین هېواد اټومي سلاح ته ډېر اړتیا درلوده د خپل ستراتیژیک ملگري څخه یې هیله هم همدا وه، چې د اټوم بم په جوړولو کې همکاري ورسره وکړي خو شوروي اتحاد دا کار ونه کړ.[۱۸۲]

د پورتینو دلیلونو په نظر کې نیولو سره، شوروی اتحاد د چین څخه هغه مشاورین بېرته راوغوښتل چې؛ په نظامي اقتصادي،روغتیا او کرنیزو چارو کې یې د مرستې په منظور چین ته لېږلي وو او خپل کومکونه یې د چین په هېواد په ټپه ودرول چې دا حالت بیا د اړیکو د کړکیچ سبب وگرځېده.

همدا کړکیچنې اړیکې وې چې؛ چین د امریکا اړخ ته د اړیکو د جوړېدو تکل وکړ چې له ۱۹۷۰ میلادي کال څخه بیا تر ۱۹۸۰ میلادي کال پورې یې دوام وکړ.

ډېرو سیاسونو اعتقاد پیدا کړی وو، چې د چین او امریکا د اړیکو د نږدیوالي اساسي لامل د دواړو هېوادونو گډ دښمن یعنې شوروي اتحاد دی.

خو په ۱۹۹۰ میلادي کال کې د شوروي اتحاد ړنگېدل د چین او روسیې د اړیکو د بیا جوړېدلو اساسي عامل وو چې د دواړو هېوادنو د ښو اړیکو دلایل او نښانې په لاندې ډول دي.

---

[۱۸۲] داربی شر،پان،جمهوریت سیاسي جمهوري خلق چین ، ترجمه عباس هدایت،وزیری،تهران،۱۳٦۸،ص،۱۴۴.

۱ـ د دواړو هېوادونو د رهبرانو دوامدار ناسته ولاړه، چې بوریس یلسن په ۱۹۹۲ او ۱۹۹٦ میلادي کال کې پیکنګ ته سفر وکړ او په مقابل کې یې د چین د جمهور ریېس جیانګ زمین سفر ومسکو ته وو چې په ۱۹۹۴ میلادي کال کې یې سفر وکړ.

۲ـد تاریخي مسائلو د حل په منظور هغه کوښښونه وو، چې د سرحدي مسائلو په هکله موجود وو، یو هوکړه لیک د بوریس یلسن د سفر په ترځ کې په ۱۹۹۹ میلادي کال په پیکنګ کې لاسلیک شو.

بله موضوع د امر د جزیرو ستونزه وه، چې د یاد هوکړه لیک وروستی لاسلیک د پوتین او اوجنتاوو ترمنځ وشو چې د څلور زره درې سوه کیلو متره سرحدي پولې ستونزه یې حل کړه.

۳ـدواړو هېوادونو په نړیوالو مسائلو کې واحد دریځ خپل کړ، چې ځینې موافقت نامې یې لاسلیک کړي دي چې یو له دغو هوکړه لیکونو په ۱۹۹۲ میلادي کال کې په پیکنګ کې او دوهم هوکړه لیک په ۱۹۹۴ میلادي کال په مسکو کې لاسلیک شو چې د رغوونکي ګډون او مرستې تر نامه لاندې هوکړه لیکونه وو.

درېیم هوکړه لیک یې په ۱۹۹٦ میلادي کال کې د ستراتیژیکو همکاریو هوکړه لیک وو، چې په پیکنګ کې لاسلیک شو، یاد هوکړه لیک د دولت له دولت سره مرسته د ځینو متفکرینو په نظر مهمه وه ځکه چې:

الف ـ دواړه هېوادونه د امریکا د زبر ځواک غوښتنې له سیاست سره موافق نه وو په ځانګړي ډول چې امریکا په اروپا او اسیا کې ځان زبر ځواک باله.

ب ـ مسکو په داسې اساسو شرایطو کې نظامي تجهیزات ا ودرنده اسلحه د اقتصادي ستونزو په اساس خرڅوله، چې د چین هېواد یې د اخېستلو لپاره چمتوالی درلود.

دا په داسې حال کې وه چې؛ د چین هېواد یې د تولید قدرت نه درلود چې یادې معاملې د دواړو هېوادونو لپاره دوه اړخه ګټه درلوده.[۱۸۳]

[۱۸۳] واعظی،محمود،اهداف ومنافع چین وروسیه در سازمان همکاری شانگهای،مطالعه اسیایی مرکزی وقغقاز،تهران،۱۳۸۹،ص،۷۲و ۱٦۵ـ۲۰۰.

**۴-د چاپان په وړاندې د چین بهرنۍ سیاست:**

د چین او چاپان ډیپلوماتیکې اړیکې په اسیا کې د مهمو ډیپلوماتیکو اړیکو له جملې څخه شمېرل کیږي، د دواړو هېوادونو اوسنۍ اړیکې چې د تاریخي مسائلو تر اغیز لاندې راغلي دي د امریکا د متحده ایالاتو د متغیر په نظر کې نیولو او موجودیت کې، خاص اړخ پیدا کړی دی.

د جغرافیایي لانجو پرته، د دواړو هېوادونو د اړیکو د خرابوالي اساسي لامل د چین په آند او نظر چاپان د چین د مهار کولو لپاره د امریکا یوه وسیله ده، د چین او چاپان د بهرني سیاست په رڼا کې یو لړ تناقضات شتون لري دواړه هېوادونه د دوهم نړیوال جنګ راهیسې سوله یېزې اړیکې لري او د اقتصادي اړیکو د درلودلو تمایل یې زیات دی چې د اسیا پاسفیک په سیمه کې برقرار دی.

دواړه هېوادونه مخ په پراختیا او ودې نړیوال اقتصادي قدرتونه دي، د چاپان د لومړي وزیر شي جی رویوشیدا د دکتورینو پربنسټ د دوهم نړیوال جنګ راوروسته په سیمه کې د امریکا د حضوراساس کېښودل شو.

د یو شیدا د دکتورینو په اساس د شوروي او چین هېوادونو په محوریت، د کمونیزم د نفوذ شتون په سیمه کې دا لازمه ده چې د کمونیزم پر وړاندې مقاومت رامنځته او پیل شي.

څکه نو چاپان اقتصادي او مالي وړتیا ته تمرکز او د امنیت د تامین په منظور یې د امریکا سره ائتلاف اړین وباله.

دا موضوع د چاپان او امریکا د امنیت د هوکړه لیک په لاسلیک کولو سره څرګنده شوه،چې په ۱۹٦۰ میلادي کال کېو یاد هوکړه لیک لاسلیک شو.

دوهم دا چې د جاپان په اساسي قانون کې دا ماده قبوله شوه، چې د چاپان خلک د جګړې د پدیدې څخه د ګواښ،زور د وسیلو په حیث استفاده نه کوي ترڅو د نړیوالو اختلافاتو د حل په منظور ګټه ځینې واخلي.

د **۱۹۷۰** میلادي کال راهیسې چې د چین او غرب اړیکې په ښه کېدو شوې، د همدې کبله د چین او چاپان اړیکې له **۱۹۷۲** میلادي کال څخه سمون موندلی دی، چې د چین او شوروي د اړیکو د خرابوالي زیږنده هم بلل کیږي.

ځکه چین او جاپان دواړو هېوادونو د شوروي اتحاد سره د سرحدي پولو او د ځینو جزیرو د ملکیت په سر پخوانی کړکیچ درلود.(لیکوال)

دوې پېښې دي چې د **۱۹۹۰** میلادي کال راهیسې یې د جاپان د هېواد لپاره زمینه مساعده کړه چې په خپل بهرني سیاست کې بیا کتنه وکړي.

یوه موضوع د چاپان د لیبرال دیموکرات محافظه کار گوند ناکامي وه، چې په **۱۹۹۳** میلادي کال په ټاکنو کې رامنځته شوه او دوهمه پېښه د شوروي اتحاد د کمونیستي نظام ړنگېدل وو.

پورتنۍ دوې پېښې د دې لامل وگرځېدې چې جاپان د چین سرهد پخوانۍ تربگنۍ څخه لاس په سر شی ،ځکه د لیبرال دیموکرات گوند د چین سره هیڅ ډول اړیکوته علاقه نه ښکاره کوله او د شوروي اتحاد ړنگېدل د چاپان د خلکو حساسیت د شوروي اتحاد د کمونیستي مفکورې د نفوذ په وړاندې راکم کړ.

**د جاپان په وړاندې د چین اندېښنې**

**۱ـ د جاپان د مرکنټلیستي ریالیزم کړنلاره:**

د اسیا د شرق ډېری متفکرین په دې نظر دي چې د دوهم نړیوال جنگ څخه وروسته د جاپان د هېواد د امنیت تامین،جاپان ته دا موقع ورکړه چې د مرکنټلیستي ریالیزم لاره خپله کړي.

هغه کړنلارې چې د چاپان د امنیت تامین، د اقتصادي ټکنالوژیکي ودې او پراختیا لپاره د اقتصادي حاکمیت زمینه برابره کړه چې یوه برخه یې د یو شیدا د دکتورینو څخه شمېرل کېده چې د چین بازارونه یې د جاپان د اقتصادي پراختیا او ودې سبب وگرځول.

۲ـ د جاپان او امریکا دوه اړخه د همکارۍ تعهد وو، چې د توغندیو د ضد سیستم په هکله یې منعقد کړ چې د چین اندیښنه یې راوپاروله.

۳ـ د یولسم د سپتمبرد پېښې څخه وروسته د جاپان د ځواکونو ملاتړ ،چې په افغانستان کې پیل شو.

۴ـ د جاپان او امریکا مکرر تاکید د دوه اړخه امنیتي تړون په هکله چې؛ د ۱۹۹۰ لسیزې راهیسې لاسلیک شوی وو، د چین د اندېښنې سبب وو چې د تایوان په هکله یې پاملرنه ځان ته اړولې وه.

## د چین په وړاندې د جاپان مهمې اندېښنې:

۱ـ د چین د نظامي قدرت پراختیا او په ختیځې اسیا کې د چین ظهور د یوه ستر قدرت په حیث، په ۱۹۹۰ میلادي کال کې د جاپان لپاره یوه ستراتیژیکه اندېښنه وه .

لکه څنګه چې جاپان د چین د ۱۹۹۵ میلادي کال د اټومي ازمایښت څخه وروسته خپلې مرستې پر چین وځنډولې، داسې ښکاري چې د چین ا وجاپان اړیکې د اسیا په ختیځې سیمه کې د ساړه جنګ په دوران او هم په اوسني عصر کې، د یو شمېر عواملو تابع دي، چې په لاندې ډول تشریح کېږي:

الف ـ جیو پولیټیک مسائل:
مهمه مسئله د جیو پولیټک په هکله د چین او جاپان په منځ کې د سن کاکو جزیرې او هم د ډیا یا ټای جزیره چې د شرقي چین د سیند په جنوبي برخه کې واقع دي.
دواړه جزیرې (سن کاکو او دیا یا ټای)تر اوسه د خلکو د استوګنې وړ نه دي، چین د غه جزیرې د تایوان د خاروې مربوطې بولي، خو جاپان یاد ټاپوګان د اوکیناوا مربوطې سیمې او علاقې یادوي.
۲ـ تاریخي مسائل او نیشنلیزم:
ملیت خوښونه یا ملي ګرایي یا ملي حساسیت په دواړو هېوادونو کې په ذاتي او فطري ډول د دواړو هېوادونو د ختلافاتو اصلي سرچینه ده .
د چاپان حمله په چین باندې د شلمې پیړۍ په پیل کې او هم د دوهمې نړیوالې جګړې په ترڅ کې او همدا رنګه د اسیا په بر اعظم کې د رهبرۍ دعوه ،په ځانګړي ډول د اسیا په شرق کې، د نیشنلیزم مهم عوامل دي چې په دواړو هېوادونو کې د اختلاف سبب شوي دي.
الف ـ د یاسکوني د معبد کړکیچ:
یاد معبد چې په ۱۸٦۹ میلادي کال کې تاسیس شوی دی، د شلمې پېړۍ له پیل څخه د چین د حساسیت وړ ګرځېدلې دی، چې د څوارلس جنګي مجرمانو د ښخولو وروسته چې په جاپان پورې

یې اړه درلودله او د جاپان د جنګ وزیر هم په کې شامل وو، د جاپان لوړ پوړي هر وخت د احترام د ادا کولو په منظور یاد معبد ته ورځي خو د چین مقامات داسې لیدنې د قبول وړ نه بولي.

په ۲۰۰۵ میلادي کال د جاپان صدراعظم د یاد معبد د لېدلو لیوالتیا وښودله خو د چین د حکومت داعتراض سبب شوه.

ب ـ بله د اعتراض وړ موضوع چې په چین کې راپورته شوې ده په ۲۰۰۵ میلادي کال کې د هغه تاریخي درسي کتاب د نشر په اساس وه، چې په جاپان کې نشر شو.

په یاد کتاب کې د جاپان له خوا هغه ناخوالې او ظلمونه چې په خلکو باندې یې روا بللي وو هیڅ یادونه یې نه ده شوې.

ج ـ په ملل متحد کې د جاپان هغه غوښتنه چې باید د امنیت د شورا د دائمي غړیتوب ولري د چین د هېواد له خوا رد شوه،چې وروسته شل میلیونو چینایانو د لاسلیکونو په کولو سره د جاپان د دې عمل مخالفت وکړ.

۳ ـ د نولسمې پېړۍ وروسته او د دوهم نړیوال جنګ په ترځ کې جاپان په چین باندې یرغل کړی دی چې تر اوسه یې چینایي میلیونونو وګړو ته غرامت نه دی ورکړی او هم د چین څخه یې په رسمي ډول بخښنه نه ده غوښتې.

# لسم څپرکی

**لومړی مبحث:**

## د جاپان د بهرنی سیاست لنډه پېژندنه

جاپان یو مجموعه الجزایر هېواد دی چې؛ په جاپاني ژبه کې د نیپون یا نیهون په نامه یادیږي.

په ارام اقیانوس کې موقعیت لري چې په شرقي اسیا پورې تړلی هېواد دی، د نړۍ درېیم اقتصادي قدرت دی چې د کورني ناخالصه تولید د نظره د (I M F) له خوا محاسبه شوی دی او یو پاچاهي رژیم لري.

د اوبو پولې یې د چین، کوریا او روسیې سره تړل شوي دي، د دوهمې نړیوالې جګړې وروسته یې خپل بحري متصرفات د کوریا په شمول د لاسه ورکړل، اوسنۍ جغرافیایي پراختیا یې ۳۸۷۰۰۰ کیلو متره مربع ته رسیږي.

د نفوسو شمېر یو سلو اووه ویشت میلیونه دی، د هېواد مرکز یې توکیو دی، چې پنځه دېرش میلیونه نفوس لري او د نړۍ د ډېرو قیمتي مرکزونو له جملې څخه حسابیدلی شي.

جاپانیان خپل هېواد د نیپون کوکو په نامه یادوي، یوغرنی ، زلزله لرونکی او اور غورځوونکی هېواد دی.

د نیپون معنی د لمر ځای دی، یعنې جاپان د دیني اعتفاد له مخې چې د شینتو په مذهب ولاړ هېواد دی، مذهبي عقیده یې وایي چې د جاپان امبراطور د لمر یوه الهه ده،چې جاپان ته د خدای له لوري راستول شوی دی.

د شینتو مذهب د هېواد پالنې او هېواد ته د خدمت کولو احساس وخپلو پیروانو ته اساسي اصل بولي، که چېرې کوم جاپانی د خپل هېواد او امبراطور په خدمت کې پاتې راشي نو ځان وژنه ورته د شینتو د مذهب په اساس حتمي ده.

جاپان په کال کې د یو زرو پنځه سوه زلزلو شاهد وي، جاپان د ملل متحد عضوه ده د G٤ او G٨ د هېوادونو له جملې څخه دی.

د نړۍ پنځمه درجه نظامي بودجه لري، چې په ۲۰۱۱م کال کې يې شپېته ميليارده ډالره نظامي بودجه تصويب کړې وه.

څلورم صادرونکی هېواد دی چې؛ په ۲۰۱۱ م کال کې يې د صادراتو کچه اووه سوه اووه شپېته ميلیارده ډالرو ته رسېدله.

شپږم واردونکی هېواد دی چې؛ په ۲۰۱۰ م کال کې يې د وارداتو کچه شپږ سوه نهه دېرش ميلیارده ډالرو ته رسېدله.

د دوهم نړيوال جنگ څخه وروسته د اوکيناوا په جزيره کې د امريکا نظامي اډه جوړه شوه چې اوسمهال تر پنځلس زره نظامي پرسونل په کې شتون لري.

ياده نظامي اډه د جاپان د ملي امنيت او د صنعتي اقتصادي پراختيا اساسي عامل گڼل کېږي.

اته نوي عشاريه پنځه فيصده نفوس يې جاپانيان دي او نور پاتې نفوس يې د کوريا، چين او د مسلمانانو څخه تشکيل شوي دي.

درويشت فيصد خلک يې تر پنځه شپيته کلنې لوړ سن لري، چې  د نړۍ زوړ نسل په جاپان کې اوسيږي.

ژبه يې  جاپاني ده، چې ډېر لغاتونه يې د چينايي ژبې څخه اخېستل شوي دي او کوريايي ژبې ته نږديوالی لري.

د جاپان موقعيت د روسيې په مجاوريت کې په ځانگړي ډول د دوهم نړيوال جنگ وروسته اهميت پيدا کړ.

د شمالي امريکا او شرقي اسيا تر ټولو لنډه ارتباطي لاره په ارام سمندرگي کې ده، ټولې هغه بېړۍ چې د امريکا څخه د هانگ کانگ، چين او د اسيا جنوب شرق ته مسافرت کوي د جاپان له لارې تېريږي .

جاپان يو حايله سيمه ده، چې د چين، روسيې او ارام سمندرگي په منځ کې موقعيت لري، لس زره کاله مخکې په جاپان کې انسانانو ژوند درلود خو بيا هم تر اوسه په يقيني ډول معلومه شوې نه ده.

په جاپان کې د امپراطورۍ د بنسټ ایښودنې بیا تر اوسه یوازې د یوې کورنۍ امپراطورۍ حکومت کړی دی.

په **۱۹۳٦** میلادي کال د کمونېزم ضد تړون د جاپان او نازی المان ترمنځ لاسلیک شو، چې د نړیوال کمونیزم پر ضد یې تعهد کړی وو، یو کال وروسته ایټالیه هم ورسره یوځای شوه چې دروم، برلین او توکیو اتحاد یې جوړ کړ.

جاپان پرته له دې چې امریکا ته د جنگ اعلان وکړي، په هوایي جزیره کې یې پرل هاربر په فضاي اډه باندې یې بمبار وکړ چې ډېر زیات تلفات یې امریکایي لوري ته واړول او امریکا یې اړ کړه ترڅو په دوهم نړیوال جنګ کې برخه واخلي.

جاپان وروسته په سینګاپور او اندونېزیا یرغل وکړ، چې اخر د امریکا او شوروي په توافق سره د جاپان په دوو مهمو ښارونو باندې چې ناګاساکي او هېروشیما دي، د امریکا له خوا دوه اټومي بمونه وغورځول شول چې د دوه لکه شل زره جاپانیانو د آني مرګ سبب وګرځېدل وروسته یې کوریا، سینګاپور، اندونېزیا او منچوریا له جاپان څخه ونیول.

په مجموعي ډول په دوهم نړیوال جنګ کې دوه میلیونه جاپانیان ووژل شول، چې د جنګ وروسته ټول وطن ویجاړ،خلک بېکاره ،اقتصاد صفر او ټول تخریب شوي تاسیسات ورته پاتې شول.

د جکړې څخه وروسته اساسي قانون ته بدلون ورکړل شو، چې په سوله، اقتصادي ودې او دجاپان په صنعتي کولو یې تاکید وکړ، اردو یې منحله کړه،طبیعي منابع او سرچینې په جاپان کې هیڅ وجود نه لري چې د وطن په جوړولو کې یې د دوهمې نړیوالې جګړې وروسته ترې ګټه اخېستل شوې وای.

د جاپان ملکي او نظامي خلکو د جاپان په بیا جوړولو کې ونډه واخېسته، د شینټو دین یې چې دملي ګرایي اصول یې درلودل د خلکو رسمی دین نور نه وو، ډېر بااستعداده زده کوونکي یې د نړۍ پرمختللو هېوادونو ته د لوړو زده کړو لپاره ولېږل.

امریکایي نظامي اډه یې د اوکیناوا په جزیره کې ځای پر ځای کړه، په **۱۹٤۷** میلادي کال کې د جاپان اساسي قانون تصویب شو.

په ۱۹۵٦ میلادي کال د ملل متحد غړی هېواد شو، په اوس وخت کې د امریکا او چین وروسته ،دریېم اقتصادي قدرت دی د لیبرال ډیموکرات گوند یې د حکومت په سر کې دی چې د ۱۹۵۵ میلادي کال راهیسې سیاسي قدرت د یاد گوند په لاس کې دی.

د جاپان فرهنگ له زرگونو کلونو راهیسې د ودې او تکامل په حالت کې دی چې د اسیا،اروپا او شمالي امریکا د فرهنگ څخه متاثر دی.

د جاپان ادبیات د چین د ادبیاتو څخه اغیزمن دي، د بودایزم د نفوذ څخه چې د هندوستان د هېواد څخه یې ورته انتشار کړی دی، نو ځکه هندي ادبیات هم د جاپان په ادب کې په لړه اندازه شتون لري.

موسیقي یې غني او څو اړخه ده، د جاپان اصیله موسیقي او ساز د کوټو شامي په نامه یادیږي.

شامي د افغانسان د ستار د موسیقۍ د آلې سره ورته والی لري، کوتو د جاپان د موسیقۍ د سنتور آله ده.

د واورې نمانځنه چې هر کال د مشهورو هنرمندانو مجسمې د واورې څخه جوړیږي او دغه نمانځنه د ټینو د جشن په نامه یادیږي، چې هر کال هره بېړۍ په سلگونو چراغونه روښانه کوي او د ټینو په سیند کې گرځي.

د نانځکو یا ناوکیو جشن، چې د نجونو په جشن مشهور دی د نجونو د صحت او سلامتۍ په منظور نمانځل کیږي.[۱۸٤_۱۸۵]

د جاپان شعار د جاپان ملي سرود دی، چې ملي سرود یې د امبراطور فرمانروایي یا اطاعت دی، جاپان د دوهم نړویوال جنگ څخه وروسته چې اته میلیونه وکړي یې په کې وژل شوي یا زخمي او معیوب شوي دي.

[۱۸٤] نیگریش به وضعیت کلی اقتصاد جاپان،نشریه دفتر اقتصاد بین المللی ،ص،۱۸۰.
[۱۸۵] نقیب زاده،حمد،تاریخ ډیپلوماسي وروابط بین المللی،نشر قومس،تهران ، ۳۸۸، ص ،۲۲۴.

د بل پلو څخه دیارلس میلیونه یې بې کار وه،تورم خپل اوج ته رسیدلی وو،طبعي زېرمې هم موجودې نه وې خو جاپان د دې ټولو ستونزو سره اوس د نړۍ څلرویشت فیصده توکي نورو هېوادونو ته صادروي.

د جاپان خلک په حقیقت کې پس انداز نه کوي،د تورم کچه اوس صفر فیصد ته رسېدلې ده،په جاپان کې خالي کور هیڅ نه پیدا کېږي.

د ښوونکي میاشتنی معاش اووه زره پنځه سوه ډالر دی، د لومړنۍ دورې ټول ښوونکي یې ښځینه دي،ماشومان یې د رخصتیو په ورځو کې د ښوونځي لپاره ځکه ژاړي چې د ښوونکو او د درس سره علاقه لري او د ښوونکو ښه سلوک د زده کوونکو زړونه خپل کړي دي.
د جاپان ښځې د واده وروسته په اداراتو کې هیڅ کار نه کوي، د ښوونځیو له لومړي بیا تر درېیم ټولګي پورې ازموینه نه اخېستل کېږي.
ټول ښوونکي اوزده کوونکي هره ورځ د پنځلسو دقیقو لپاره د ښوونځي په پاکوالي بوخت وي.
جاپان پاکوالي ته ډېره پاملرنه کوي هر کاریګر چې د پاکوالي په هکله دنده لري ښوونه ورکول کېږي، یعنې مخکې د دندې له پیل څخه مکمل کورس ورته جوړېږي او د پاکوالي د انجیز لقب ورکول شوی دی.
معاش یې له پنځو څخه تر اتو زرو ډالرو پورې دی،جاپان طبیعي سرچینې نه لري اوسپنه،د ډبرو سکاره،فولاد ،مس ، ګاز او نفت په جاپان کې شتون نه لري.
په جاپان کې هر کال یو زرو پنځه سوه زلزلې کېدونکي دي،د هیرو شیما ایالت یې د اټومي بمبارڅخه وروسته د لسو کالو په اوږدو کې بیا ودان کړ.
په جاپان کې په ریل،هوټل او نور عمومي ځایونو کې د ګرځنده ټلیفون کارول منع دي.په کورونو کې هیڅ خدمتګاره کار نه کوي.
ښوونځي یې له لومړي بیا تر دولسم ټولګي پورې ناکامی نه لري ،د ریل پټلۍ او ګاډۍ یې د لس څخه تر پنځلس ثانیو وخت په کال کې غلطوي، چې د کال په پای کې حکومت او مسوولین د همدې څو ثانیو تاخیر له امله له ملت څخه په رسمي ډول بخښنه غواړي.
په جاپان کې تر پنځوس زره ډېر داسې خلک استوګن دي چې؛ سن یې تر سلو کالو لوړ دی.

په جاپان کې په کورونو کې د ماشومانو شمېر د سپیانو تر شمېر لږ دی، یو جاپانی شخص چې د ټیټانیک د بېړۍ په پېښه کې ژوندی پاتې شوی وو اوس ورته د بې غیرته خطاب کېږي چې ولې یې له نورو خلک سره ځان قربان نه کړ.
په دوهم نړیوال جنګ کې جاپان په چین یرغل وکړ، خو د طاغون د مرض په میکروب لړلي او ککړ کیک یې ورسره وړی وو، چې د چین د خلکو په منځ کې یې د طاغون مرض منتشر کړ.
په جاپان کې یوه جزیره د سوی یا خرګوش له نسل څخه ډکه ده، چې د انسانانو ژوند په هغه سیمه کې ناممکن دی.
په جاپان کې یو ریل ګاډی شتون لري، چې د مقناطیسي جاذبې قوې په مټ د ریل په پټلۍ حرکت کوي چې په یو ساعت کې یې ګړندیتوب پنځه سوه کیلو متره دی.
د جاپان خلک په نړۍ کې تر ټولو لږه اشتها لري او لږ خوراک کوي، د جاپان په قانون کې تر اوسه پورې د اعدام جزا شتون لري، دا په داسې حال کې ده چې د نړۍ یو سلو درې هېوادونه د اعدام جزا په خپلو قوانینو کې نه لري.
د جاپان ډېرې جادې او سړکونه هیڅ نوم نه لري، د جاپان یو میلیون خلک په یو ډول رواني ناروغۍ اخته دي، چې د خپل خوب د کوټې دروازه د څو کالو لپاره په ځان پسې تړلې ساتې چې دا مرض د هیکي کوماري په نامه یاد شوی دی،چې د ټولنیزو روغتیایي ستونزو سببونه یې برابر کړي دي.
په جاپان کې د بخښنې غوښتنې لپاره شل ډوله طریقې شتون لري، د جاپان په هغه ځای کې چې یو کال سونامي راغله یوه ډېره لرغونې کتیبه (ډبرلیک )وموندل شو، چې په هغه ډبر لیک لیکل شوي وو (په دې سیمه کې کورونه مه جوړوی.)
په جاپان کې د ځوان نسل د مرګ لامل تر ډېره حده ځان وژنه ده، په جاپان کې د جایزې ورکول یو توهین بلل کېږي.

**دوهم مبحث: د ساړه جنګ څخه وروسته د جاپان بهرنی سیاست:**

**اول: جاپان له دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته:**

د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته یوازینی عامل چې جاپان ته پاتې وو، د جاپان خپل خلک وو ځکه جاپان هیڅ ډول طبیعي زېرمې نه لري لکه نفت،ګاز، د ډېرو سکاره او معدني زېرمې.
جاپان د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د خوړلو د توکو د سخت کمښت سره مخامخ شو، شپږ میلیونه هغه جاپانی اتباع چې د جنګ له وېرې یې جاپان خوشې کړی وو بېرته راستانه شول، په

لوړه کچه تورم ،بې کاري او د فقر شتون ،دیارلس میلیونه انسانان چې د جنګ له امله مړه،ژوبل،معیوب او یا ورک شوي وو، جاپان ته په میراث پاتې شول.

د ولادت کچه لوړه وه ، ځینو عواملو د جاپان په ټولنه کې شتون درلود، چې هغه د کورنۍ ټینګ یوالی او انضباط وو،چې د ټولنې او په پایله کې د ټول جاپان د ملت د یوالی سبب شو،د زده کړې او تعلیم اړخ ته یې په ملي کچه مخه وکړه تر هغه کچې چې ځینې وخت به شاګردان او زده کړیالان د سختې ازموینې او ډېر درس ویلو له کبله مړه شول.

زده کړیالان د لوړو زده کړو په بېلابېلو رشتو کې د نړۍ مختللو هېوادنو ته، په ځانګړي ډول امریکا ته و لېږدول شول،کارګرانو چې په شرکتونو کې یې کار کاوه په لږ مزد خو د ډېر وخت لپاره په کار بوخت وو.

د جاپان د خلکو یو دود او عرف دا و، چې سنتي لباس،د نقاشي بېلابېل ډولونه د جاپان په ټولنه کې مروج شول چې د کار زمینه او فرصتونه یې رامنځته کړل.

د نفوسو د زیاتوالي سخت کنټرول د ځوان نسل په ځانګړي ډول د کارګرې طبقې د کمښت لامل شو.

د جاپان د خلکو د توکمیز او د نژاد پرستې د تعصب سره تر ۱۹۹۰ م کال پورې جاپان ته په سلګونه زره بهرني کارګران راغلل ،د جاپان خلکو ډېر اولادونه نه خوښول ځکه لږ اولادنو ته یې ښه تربیه ورکولای شوه.

د جاپان لیبرال دیموکرات ګوند د ۱۹۵۵ـ۱۹۹۹۳ م کال پورې سیاسي قدرت په لاس کې درلود.

دوهم سیاسي ګوند یې دسوسیالېست په نامه دی چې د ۱۹۴۵ م کال راهیسې یوازې په ۱۹۸۹ کال کې یو ځل سیاسي قدرت خپل کړی دی.

د یو شیدا دکتورین چې د صنعت ، سیاست او صادارتو په مورد وه ، چې پایله یې د اقتصاد پراختیا شوه او هم یې په نظامي سکتور کې د بودجې کچه تر ټولو ټېټې فیصدۍ ته راټېټه کړې وه او یوازې یې د امریکا سره د امنیتي تړون په مټ خپل امنیت په کورنۍ او بهرنۍ سطحه ساتلی وو، په دې ډول یې د بودجې لګښت د نظامي برخې څخه د هېواد د هوساینې په سکتورولګوله.

د جاپان د هغه وخت په ټولنه کې حکومت د یوې خوا د شغل او کار لپاره هغه کسان استخدامول چې د لیبرال ډیموکرات گوند له خوا ورته پیسې اومعاش ورکول کېدل ترڅو د راتلوونکو ټاکنو لپاره ورته د رایو یو مخزن ووسي،د بله اړخه لیبرال دیموکرات گوند هغو شرکتونو ته قراردادونه ورکول چې حکومت پلوي وي او خپله حکومت د اداري برخې په حیث د شغل ، کار او شرکتونو ټولې چارې کنټرولولې.[۱۸۶]

جاپان د نړۍ درېیم اقتصادي قدرت دی، همدغه اقتصادي اړخ دی چې د جاپان په بهرني سیاست کې یې د اړیکو د ټینګولو په هکله مثبت رول ادا کړی دی.

د مرکزي اسیا د هېوادونوتبارز او ازادي ، د شوروي اتحاد ویشل چې د منځنۍ اسیا د هېوادونو په ازادۍ کې یې رول درلود، د بهرني شرکتونو دپانګوالۍ لپاره وړ بستر غوره کړ،چې جاپان هم په خپل نوبت په بهرنۍ پالیسۍ کې د منځنۍ اسیا په هکله بیا کتنه وکړه

## دوهم: د جاپان او امریکا امنیتي اړیکې:

د دوهم نړیوال جنگ څخه وروسته چې سوړ جنگ پیل شو د امریکا ایډیالوژیک اختلاف د شوروي اتحاد په وړاندې شتون درلود امریکا کوښښ وکړ، هغه هېوادونه چې په دوهم نړیوال جنگ کې یې زیات زیان لیدلی وو، داسې ورغوي چې د کمونیزم د یرغل او نفوذ څخه سالم پاتې شي، لکه جرمني او د جاپان هېوادونه چې په همدې قطار کې راځي.

په ختیځې اسیا کې د کمونیزم ظهور او نفوذ د چین د انقلاب وروسته او نفوذ یې په کوریا او هند چین کې د دې لامل شول چې د جاپان د عامه افکارو په مرسته او د امریکا وېره د جاپان د بیا نظامي کېدلو څخه، امریکا د امنیتي تړون په چوکاټ کې د جاپان امنیت تضمین کړ.

د امنیت په فضا کې یې د جاپان اقتصادي ودې ته زمینه مساعده کړه، د ۱۹۵۰ میلادي کال په پیل کې د جاپان صدرا عظم یو شیدا د جاپان سلاح د بیا کتني په منظور د پولیسو د ذخیره ځواک او وروسته د مشروع دفاع تر نامه لاندې اجرایي کړه، جاپان د امریکا سره لومړنی امنیتي تړون په ۱۹۵۱

---

[۱۸۶] کارټر وفینډلی،جان م.راشنی، جهان در قرن بیست،ترجمه بهرام معلمی،چاپ شمشاد تهران،۱۳۹۰،ص،۷۷۲-۷۶۷.

میلادي کال کې لاسلیک کړ او یولس زره امریکایي عسکر په اوکیناوا جزیره کې ځای پر ځای شول.[۱۸۷]-[۱۸۸]

په یاد امنیتي تړون کې د جاپان د خلکو له خوا انتقاد ډېر وو، د نوموړو انتقاداتو د لړولو په منظور په ۱۹٦۰ میلادي کال د جاپان د وخت صدراعظم (شین سوک کی شی) د امریکا سره دوهم تړون لاسلیک کړ چې امریکا یې ملزمه کړې وه، چې د جاپان ملاتړ وکړي.

په یاده معاهده کې یې دا کلمات لرې کړل چې د اډې ځخه به امریکایان نامحدوده ګټه اخلي چې په دې سره یې د جاپان دخلکو قناعت حاصل کړ.

**درېیم: د ساړه جنګ ځخه ورسته د جاپان او امریکا په منځ کې د متقابل امنیت تړون:**

د دوه قطبي نظام د پای ته رسېدو او د شوروي اتحاد د وېشل کېدلو وروسته د ۱۹۹۰ میلادي کال په پای کې، که څه هم د ۱۹٦۰ کال تړون د جاپان او امریکا ترمنځ د ساړه جنګ په پای کې په خپل ځای پاتې وو، ځکه امریکا د اسیا پاسفیک سیمه تر ګواښ لاندې کړې وه او له بله اړخه د جاپان ځخه د امریکایي اډې وتل د نویو ګواښونو سبب کېدلی شي.

د نوموړې اډې د لګښتونو بار او بوج یې هم د جاپان په دولت اچاوه، چې د جاپان له اقتصاد سره یې همغږي نه درلوده، خو په هرصورت د امریکا نظامي اډې په جاپان کې دوام وموند چې ښه بېلګه یې د ګواښ په هکله د فارس د خلیج جګړه او د سپټمبرد یولسمې جګړه یادولای شو.

**ځلورم: د اوکیناوا جزیره او د جاپان او امریکا کړکیچ:**

دا سیمه د جاپان په جنوبي برخه کې شتون لري د ۱۹۹۰ میلادي کال ر اهیسې د جاپان د کورنیو سیاسیونو د بحث او جدال په موضوع بدله شوېده.

د ۲۰۰۱ میلادي کال راهیسې د امریکایي عسکرو شمېر پځه ویشت زرو تنو ته رسیږي چې د امریکا له نظره د اوکیناوا نظامي اډه په دوو دلیلونو اهمیت لري.

[۱۸۷] نواب صفوي،اسماعیل،جایګاه جاپان در جهان معاصر،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی وزارت امور خارجه،تهران،۱۳۸۰ ، ص،۱٦۰.

[۱۸۸] کاوا شیما،یوتاکا،تحول مهم در سیاست خارجی جاپان،ترجمه،صدر الزمان شهبازی،تهران،۱۳۸۷،س،۴۸.

اول دا چې د اسیا د ختیځ لویو ښارونو ته نږدې موقعیت لري، دوهم دا چې د هند د بحر په وروستۍ برخه کې پرته ده چې یاده لاره په جاپان پای ته رسیږي.
دا جنجال د اوکیناوا په هکله هغه وخت خپل اوج ته ورسېد ،کله چې په **۱۹۹۵** میلادي کال کې یوه امریکايي نظامي په یوې جاپانۍ نجلۍ جنسي تېری وکړ، چې دغه پېښه د جاپان د خلکو د شدید عکس العمل سبب شوه.[۱۸۹]

**پنځم: د جاپان او امریکا هغه سناریوګانې چې د امنیتي اتحاد سبب شوي دي:**

**الف ـ غیر مسلحانه بې طرفي:**

د ساړه جنګ په دوران کې د جاپان بې طرفۍ ته اشاره کوي ځکه جاپان په دې موده کې د بیا مسلح کېدلو هوډ نه درلود، د حملې او ګواښ په صورت کې باید د ملل متحد د منشور د اووم فصل په بنسټ د ملل متحد د نظامي ملاتړ څخه برخمن وي.
اوس چې سوړ جنګ پای ته رسیدلی دی اود ملل متحد د رول ستونزې د بله جانبه په اوسني وخت کې د امکانه لرې ښکاري.

ګلیسم: د فرانسوي سنت څخه متاثره اصطلح ده، چې د جاپان او امریکا د اتحاد د ختمېدو په مفهوم ده.
چې د جاپان سره وجود لري او هم د دفاعی وړتیا د تجهیز مفهوم ورسره یوځای دی، چې د اساسي قانون په نهمه ماده کې راغلي دي، په دې صورت کې د جاپان حرکت د اټومي کېدلو لورته په زیات احتمال وجود لري.
ځکه چې نور د امریکا هستوي چتر د جاپان د ساتنې لپاره د هستوي ګواښونو پر وړاندې ممکن وجود ونه لري.
نوموړی انتخاب د جاپان لپاره ډېر لګښت ته اړتیا لري او هم د ګاونډیو هېوادونو او د امریکا د عکس العمل سبب کېدلای شي.

**شپږم: د امریکایي اډې څخه پرته د جاپان او امریکا اتحاد:**

دا انتخاب هغه اعتقاد ته اشاره ده، چې په جاپان کې امریکايي اډه شتون ونه لري او د اړتیا او ګواښ په صورت کې امریکايي عسکر جاپان ته د ګواښونو د دفع کولو په منظور په عاجل ډول راشي،

[۱۸۹]کاوا شیما،یوتاکا،تحول مهم در سیاست خارجی جاپان،ترجمه صدرالزمان شهبازی،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللی وزارت خارجه،تهران، ۱۳۸۷،ص،۴۹.

چې دا اعتماد ډېر ساده فکر دی ځکه یا به د اساسي قانون نهمه ماده تعدیل کېږي او یا به د جاپان نظامي قوت په هغه اندازه لوړ ببول کېږي چې د هرډول ګواښ مقابله وکولای شي.

**اووم ـ د جاپان بهرنی سیاست د امریکا په وړاندې**؛د جاپان او امریکا د متحده ایالاتو اړیکې د چین او امریکا د اړیکو سره په اساسي شکل تفاوت لري.

## د جاپان او امریکا د اړیکو عمده برخه دوه جانبه اړیکې تشکیلوي، چې په دې اړه باید څو عوامل ذکر شي:

**الف ـ د جاپان د خلکو سنت**،د مینجي د بیا یا دولو له وخته چې د جاپان د اصلاحاتو او پرمختګ ټکی ورته ویل کېږي ،د جاپان په سیاسي تاریخ کې یوه فرهنګي مقوله ده چې د جاپان دولت د انزوا او ګوښه کېدلو په نوم اختیار کړې ده.

یعنې جاپان د لومړیو اصلاحاتو څخه وروسته د ودې او پرمختیا امر اړین وباله ، چې وروسته به د نړۍ څخه زده کړې کېږي چې څه باید وکړئ؟

**ب ـ د جاپان اقتصاد خوښوونه:**

مخکې له دې چې ایډیالوژیک او جیوپولیټیک مسائلو ته لومړیتوب ورکول شي او د ملي ارمان په حیث یې قبول کړي، د جاپان د خلکو لپاره اقتصادي وده مطرح ده او لومړیتوب ورته لري،یاد لامل د دې سبب شوی چې د چین پرخلاف،جاپان په ایډیالوژیکي او جیو پولیټکي پېښو پسې سر ونه ګرځوي.

همدا علت دی چې؛ د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د سترو ځواکونو سره په ایډیالوژیک او جیوپولیټیک کړکیچونو کې بند نه دي راغلی.

**ج ـ د امنیت د ستونزې لرې کول:**

جاپان له دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د مادي ګټو ودې ته لومړیتوب ورکوي، د امریکا متحده ایالاتو ته یې د نظامي اډې په اوکیناوا کې په ورکولو سره په رسمي ډول وکولای شول څو د امنیتي خنډونو او ګواښونو څخه ځان ګوښه وساتي چې د همدې امنیتي تړون په سبب د امریکا سره یوځای د کمونیزم په مقابل کې یې مبارزه پیل کړه.

**د ـ د سیاسي نظام جوړښت:**

د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته جاپان د خپل اساسي قانون په بنسټ هر وخت په خپله ډیموکراسي او د هغې په ارزښتونو باندې ویاړ کوي، چې د اساسي قانون مطابق د څو ګونو ګوندونو شتون ،ځواکمن پارلمان،اجرایوي قوه چې د مقننې قوې په وړاندې متعهده ده او تر ټولو مهمه دا ده چې د عامه پوهاي کچه لوړه ده، هغه عوامل دي چې د یوه اړخه د تصمیم نیولو زمینه چې د شخصي لومړیتوب په مبنا ده، تر خپل اغیز لاندې راوړی دی.

ځکه ویل کېږي چې د جاپان بهرنی سیاست پراخ نه دی، یوازې د اقتصادي ګټو په راټولولو بنسټیز شوی دی.

**اتم: د جاپان سیمه ایز خنډونه:**

جاپان د دوهم نړیوال جنګ وروسته د امریکا ستراتیژیک ملګری هېواد دی چې د جاپان د ماتې څخه وروسته دا اړیکې ټېنګې شوي دي.

چې د جاپان اشغال د امریکا له خوا د ۱۹۴۵ـ۱۹۵۲ پورې یې دوام وکړ او د امریکا ـ جاپان د امنیتي تړون په لاسلیک سره په کال ۱۹۵۱ م کال کې یې رسمي بڼه غوره کړه او په ۱۹٦۰ او ۱۹۹۰ کال کې یې یو وار بیا کتنه او ځغلنده نظر په کې واچاوه.

رابرت سکالا پنیو د امریکا جاپان اړیکې د واده سره پرتله کړې دي او زیاتوي چې (د جاپان په پانګوالې سره دامریکا اقتصاد مخ پر وده او پراختیا دی ځکه نو طلاق ورکول د تصور وړ نه ده خو چې واده د کوم خطر سره مخامخ شي.

د دوهم نړیوال جنګ راوروسته جاپان د یوې اطاعت کوونکې ښځې په څېر د امریکا اطاعت کوي او نن ورځ هم د تېر عادت په بنسټ د امریکا د بهرني سیاست د موخو، اړتیاوو او غوښتنو مطابق عمل کوي. ) .[۱۹۰]ـ

[۱۹۰] ګواهی،عبدالرحیم،سیاست خارجی جاپان درخلیج فارس،مجموعه مقالات سیمینار برسی مسائل خلیج فارس،دفترمطالعات سیاسی وبین المللي،تهران،۱۳٦۸،ص،٦ او ۵۹۵.

دجاپان له نظره د امریکا او جاپان اړیکې (آمائه) تعبیر کارول کېږي چې دا یو رواني حالت دی چې د والدینو او اولاد ترمنځ شتون لري، والدین خپلو اولادونو ته رواني تسکین او ارامتیا وربخښي او په بدل کې یې د اولاد څخه اطاعت او وفاداري غواړي.

د جاپان سیاستمداران وایي چې؛ د جاپان بهرنی سیاست د امریکا په نړیواله ستراتیژي کې د جاپان مدغم کېدل بللي دي.

معلومه ده چې؛ جاپان د داسې یو اتمسفیر څخه د خپل امنیت په ګټه کار اخیستی دی.

د جاپان سیاسي فرهنګي اړیکې د اقتصادي اړیکو تابع دي چې آن د امریکا سره د همدغه قاعدې تابع بلل کېږي چې د یاد لید لوري طراح د جاپان د وخت صدراعظم یو شیدا دی.

یو شیدا شیګارو د ۱۹۴۶ـ۱۹۵۴ میلادي کال پورې د جاپان صدرا عظم وو،چې خپله طرحه یې تر درې عنوانونو لاندې وړاندې کړه:

۱ـ سیاسي تصمیم نیول، د اقتصادي پراختیا د جذب او جلب په منظور باید وي.

۲ـ د نظامي تدارک ایجاد کول.

۳ـ د امریکا د امنیتي تړون په اتکا باندې د امنیت خوندي ساتل چې په دې ډول جاپان په بهرني او داخلي سطحه د خپل امنیت مسوولیت د امریکا په نظامي تړون پورې مربوط بولي.

یوشیدا وایي که تاسو غواړئ چې د یوې ونې تر سیوري لاندې کېنئ ، لازمه ده چې یوه ستره ونه وټاکئ چې په اسانۍ سره د هغې ونې تر سیوري لاندې ارامه اوسئ.

له همدې کبله د جاپان اقتصادي پالیسي د بهرني سیاست د ټولو لوړو او کښته حالاتو اساسي محور تشکیل کړی دی.[۱۹۱]ـ

[۱۹۱] صالحی،جواد،سیاست خارجی جاپان در خلیج فارس،فصل نامه خاور میانه،شماری هفت،تهران،۱۳۷۴،ص،٦٦.

د امریکا لومړنی هدف د جاپان د نظامي قدرت ړنګول دي او دوهم هدف یې دیموکراتیزه کول وو، چې د جاپان په بهرني سیاست کې مهم رول لري څو جاپان یو سوله خوښوونکی هېواد معرفي کړي ،چې جاپان یې د اقتصادي ازاد بازار نظام پلو ته رهنمایي کړ.

**په عمومي ډول د جاپان بهرنی سیاست د نورو سرچینو په نظر کې نیولو سره په لاندې ډول خلاصه کولای شو:**[۱۹۲]

الف ـ د سولې،ثبات او هوساینې په ټینګښت کې د جاپان فعاله ونډه.

ب ـ د اسیا پاسفیک د هېوادونو د سرنوشت په هکله د جاپان عمده رول چې تاریخي جغرافیایي او فرهنګي ګډ شراکت لري.

ج ـ د امریکا سره د ۱۹۶۰ میلادي کال امنیتي تړون ساتنه او تداوم.

د ـ د ټولو هېوادونو سره د جاپان اقتصاد محوره سیاست څخه پیروي کول.

هـ ـ د غربي هېوادونو سره د اړیکو ساتنه او پراختیا.

ح ـ په بحراني حالاتو کې خپله بې طرفي ساتل ـ[۱۹۳]

**نهم : جاپان او د فارس خلیج:**

خلیج د منځني ختیځ زړه بلل کېږي، چې په رګونو کې یې نفت جریان لري هغه نفت چې د جاپان اقتصادي ژوند ورپورې تړلی دی چې د نفتو د قیمت په بدلون سره د جاپان اقتصاد هم مستقما تړلی دی.

د جاپان اقتصادي پراختیا مستقیما په خامو موادو پورې اړه لري، ځکه جاپان خپل ۹۸ فیصده نفت ، ۹۱ فیصده ګاز او ۸۲ فیصده د ډېرو سکاره له بهر څخه واردوي، چې د فارس د خلیج هېوادونه تر ۷۰ فیصده پورې د جاپان د خامو نفتو اړتیا پوره کوي.

---

[۱۹۲] راجر،بوون،ساختار سیاسی جاپان،موسسه چاپ وانتشارات وزارت امور خارجه،تهران،۱۳۷۲،ص،۱۳۱.

[۱۹۳] حکیمی،نسرین،جاپان وستراتیژی قدرت،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللي،۱۳۶۹،فصل سوم.

د فارس خلیج د جاپان اوسني ستر مارکیټ دی ځکه په اروپا او امریکا کې اوس د جاپان کالي او توکي د خلیج په پرتله مارکېټ نه لري ځکه نو د اقتصادي پراختیا د دوران او تورم لپاره د جاپان یوه اړتیا بلل کېږي، چې د خلیج اهمیت په لاندې ټکو کې خلاصه کېږي:

**۱ـ د فارس د خلیج اهمیت دسیاسي او نظامي له نظره:**

د خلیج سیمه د جاپان له نظره یو مختلفه نژادي،فرهنگي،مذهبي ایډیالوژیکه سیمه ده چې همدا بېلتون والی د فارس په خلیج کې د بې اتفاقۍ او نه همغږۍ او په پایله کې د بې ثباتۍ اساسي دلیل دی.

**۲ـ د فارس خلیج اهمیت د اقتصادي اوسوداګرۍ له نظره:**

د جاپان او د فارس د خلیج معامله ترڅو میلیارده ډالروپورې رسیږي چې؛ دا اړیکه د نفتو، بانکداري،پانګوالي او اقتصادي کومکونو په هکله صورت مومي او د یویشتمې پېړۍ تر نیمایي پورې به د فارس د خلیج سیمه د نړۍ لپاره د انرژۍ یوه مهمه سرچینه وي.

جاپان هغه هېواد دی چې، د خپلو تولیداتو د مارکېټ او بازار په لټه کې دی او لکه څنګه چې د جاپان ځواکمن سوداګریز سیالان به د اسیا په جنوب کې شتون ولري.

د جاپان لپاره سخته شوې ده چې خپل توکي او کالي او نور تولیدات په اسانه وپلوري.

د بېلګې په ډول د چین هېواد دی چې د جاپان په پرتله اوسمهال په نړۍ کې ښه شهرت لري او تولیدات یې هم ارزانه دي.

چین د پاکستان د ګوادر د بندر په پراختیا کې کوښښ کوي او جاپان د ایران د بندرونو څخه غواړي چې یو د بل په وړاندې ګټه واخلي چې مهم بندر یې چاه بهار دی.

جاپان غواړي چې د چاه بهار د بندر له لارې خپل تولیدات افغانستان ،ایران او ترقفقازهېوادونو ورسوي.

چین او هند د سیاسي او نظامی نقطې له نظره دواړه په سیمه کې سیال هېوادونه دي.

هند یو ښه مصرف کوونکی هېواد هم دی،د جاپان او هند ګډې ګټې په سیمه کې شتون لري چې دواړه ملکونه یې سره نږدې کړي دي.

چین د جاپان او هندوستان سره یو ډول دښمني لري چې همدغه ګډې نقطه د جاپان او هند لپاره جوړوي چې ګډې ګټې ولري.

د بل پلوه د چین د سوداګرۍ د مهار لپاره جاپان دهندوستان مارکېټ ته اړتیا لري، د چاه بهار بندر چې د جاپان او هند لپاره د ګوادر بندر یو بدیل دی دواړه هېوادونه ځینې په ګډ ډول ګټه اخېستلای شي.

خو روسیه د چین د پرمختګ څخه هم په مرکزي اسیا کې په اندېښنه کې ده او کوښښ کوي چې د جاپان او هند په مټ یې مهار کړي.

د جاپان سوادګري چې د منځنۍ اسیا خوا ته د ګوادر او افغانستان څخه تېریږي په اوسنیو شرایطو کې ناامنه ده خو د چاه بهار د بندر مسیربیا د ایران له لارې د پوره امنیت درلودونکې دی.

یوازینۍ سترخنډ چې د جاپان هېواد ورسره د چاه بهار په بندر کې مخامخ کېږي د امریکا هېواد موافقه ده.

خو د امنیت په لحاظ د جاپان لپاره  د منځنۍ اسیا د هېوادونو لاره یوازینۍ پر امنه لار ده چې د چاه بهار مسیر دی که څه هم د بندر عباس او جاسک بندر هم په ایران کې د همدې موخو لپاره فعال دي.

**لسم: د اروپا په وړاندې د جاپان بهرنۍ سیاست:**

جاپان نه شي کولای چې د اروپا سره لاس یو کړی او د امریکا په خلاف ودریږي او یا برعکس د امریکا سره د اروپا په ضد دریځ خپل کړي.

خو د جاپان لپاره دا اړینه ده،چې تلاش وکړي څو امریکا او اروپا د جاپان په خلاف دریځ ونه نیسي.[۱۹٤]

سربېر پر دې چې؛ د ساړه جنګ له وخته درې اړخه ائتلاف چې د امریکا ،اروپا او جاپان په منځ کې د امنیت له نظره موجود وو،خو د جاپان بهرنۍ سیاست د اروپا په وړاندې په ټوله کې د ساړه جنګ وروسته او وړاندې،د امریکا په اړیکو پورې اړه لري.

[۱۹٤] نواب صفوی،اسماعیل،جایگاه جاپان در جهان معاصر،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللی وزارت امور خارجه،تهران ، ۱۳۸۰ ، ص،۲۰۱.

چې د دواړو اړخونو سره په کومه کچه خپلې اړیکې تامین کړي.

د ساړه جنګ وروسته اروپايي هېوادونو د جاپان سره د امریکې په مرکزیت چې امنیتي ائتلاف یې درلود ، خو اروپايي هېوادونو د جاپان څخه د دوه نړیوالو جګړو د وخته د جاپان د کړنو څخه کرکه درلوده.

خو بیا هم د جاپان چټک اقتصادي، صنعتي او د ټکنالوژیکي پراختیا په سبب، اروپايي هېوادونو د جاپان سره خپل بهرني سیاست ډېر ژر بدل کړ چې؛ دا بدلونونه د جاپان هېواد د ساړه جنګ وروسته په دوه لسیزو کې ځان ته خپل کړي وو.

**یولسم: د جاپان او اروپا اقتصادي اړیکې:**

لکه څنګه چې د اروپا د سیاست بدلون د جاپان په وړاندې ، د جاپان اقتصادي،صنعتي پرمختګ وو چې د ساړه جنګ وروسته په دوه لسیزو کې د جاپان د هېواد په نصیب شوی وو، خو دجاپان دا پرمختګ لکه امریکا چې یې د ستونزې سره مخامخ کړه د اروپا هېوادونه یې هم په دوه لسیزو کې د یو لړ خنډونو سره مخامخ کړل چې اساسي لامل یې د جاپان د سوداګرۍ د لوړ نرخ د توازن نه شتون وو.

دا په دې معنی ده چې امریکا د جاپان څخه غوښتنه درلوده، چې د امریکا څخه کرنیز توکیو او غنمو په مقابل کې جاپاني توکي امریکا ته صادر کړي او هم غوښتنه یې درلوده چې ځیني توکي باید جاپان اصلا هیڅ امریکا ته صادر نه کړي او د انصاف او قانون اصل په نظر کې ونیسي.

بله ستونزه د اروپا سره د بین المللي پېسو د واحد وه چې؛ په ۱۹۹۱ میلادي کال کې د اروپا پولي واحد په یورو بدلون وموند، خو د جاپان پیسې ین وي چې جاپان غوښتنه درلوده ټوله سوداګري په ین باندې ترسره کړي ترڅو د ین ارزښت راکم نه شي.[۱۹۵]

خو دا چې په وروستۍ لسیزه کې په بین المللي بازارونو کې سوداګریزې معاملې په یورو باندې صورت نیسي یاده موضوع د جاپان د اندېښنې وړ ګرځېدلې ده.

جاپان اوس دا احساس کړې ده، چې اروپا د جاپان رول ته چندان اهمیت نه ورکوي.

[۱۹۵] بشر دوست ، علی ومحمد داوودی،گسترش نقش رهبری جاپان در اسیا،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی وزارت امور خارجه،تهران ، ۱۳۷۲،ص،۷۵ـ۱۸۰.

**دولسم: دروسيې په وړاندې د جاپان بهرنی سیاست:**

د جاپان سیاست د روسيې په وړاندې لکه د چین سره چې جاپان بهرني سیاست لري، تل په پیل کې د یو نامعلوم او مبهم حالت سره مخ وي،د تردید او شک سره ملگری وي او په اړیکو کې یې نوسانات لیدل کیږي.

د سرحدي ستونزو سره چې دواړه هېوادونه یې لري، په اړیکو کې یې اغیز تر اوسه محسوس کیږي.

روسیه تل په دې فکر کې ده، چې یو ځواکمن جاپان داسیا په شرق او جنوب کې یو تهدید او گواښ کېدلی شي، د جیو پولیتیک له نظره د ساړه جنگ په وخت کې د روسيې د کمونیستي مفکورې د نفوذ څخه جاپان د اسیا په شرقي هېوادونو کې اندېښنه درلوده.

خو روسيې د جاپان د دولت مډل ته د یوې کوچنۍ امریکا د نظام د بدیل په سترگه کتل.

خو د ساړه جنگ وروسته دروسيې او جاپان اړیکې د امریکا په مناسباتو پورې اړه لري، چې د روسيې او امریکا اړیکې په کومه کچه کې قرار لري ، په همغه تناسب د جاپان او روسيې اړیکې هم تامین کېدلای شئ.

د دواړو هېوادونو اړیکې د ۱۹۵٦ میلادي کال د سرحدي شخړې وروسته ، نورمال وي خو دساړه جنگ وروسته د کمونیزم د مفکورې د نفوذ خطر اوس نشته او د بله اړخه د دواړو هېوادونو د مشرانو مکرر ډیپلوماتیک سفرونه د یو بل هېواد ته ، په اړیکو کې مثبت بدلون راوستی دی.

روسيې او جاپان په ۱۸۹۵ م کال کې یو هوکړه لیک لاسلیک کړی وو چې د ۱۸۷۵ میلادي کال هوکړه لیک ته یې مشروعیت ورکړ.

د یاد هوکړه لیک په بنسټ به جاپان د سخالین او کوریل په جزیرو کې هیڅ حقوق ونه لري او یادې جزیرې به په روسيې پورې مربوطې وي او په مقابل کې به جاپان د اوروپو او د شي موشو، د جزیرو ملکیت ولري.

خو د ۱۹۰۵ د سپټمبر ۵ میلادي کال د هوکړه لیک په اساس بیا د سخالین جزیره د جاپان ملکیت وپېژندل شوه.

همدا رنگه د روسيې له خوا د تېرو پنځوسو کالو راهیسې د اتودوفو،کرنا شيری،شیکوتان،او هابومای جزیرې د ملکیت په هکله کومه دعوه نه ده شوې.

د دوهم نړیوال جنگ د ختم سره د یالتیا د تړون په اساس چې په ۱۹۴۵ میلادي کال کې د روسيې ، امریکې او انگلیسان له خوا لاسلیک شو چې په یاد تړون کې داسې راغلي وو چې که چیرې روسیه د جاپان سره په جنگ کې داخله شي، د انلگیسان او امریکې له اړخه روسيې ته د کوریل جزایر ورکول کیږي.

خو جاپان وروسته دعوه وکړه چې؛ د یالتا په تړون کې جاپان شتون نه درلود، نو حقوقي بنسټ هم نه لري او د کوریل د جزیرو حقوقي دعوه یې پیل کړه چې تر اوسه دوام لري.

**دیارلسم : جاپان ، روسیه او د انرژۍ مسئله:**

د ساړه جنگ څخه وروسته د دواړو هېوادونو د اړیکې د نړدیوالي اساسي لامل د انرژي مسئله ده،چې د جاپان ضرورت و انرژۍ ته او د روسيې د ستر مقدار انرژي درلودل، دواړو هېوادونو ته دا زمینه برابره کړه چې؛ خپلې سوداگریزې اړیکې د انرژي په هکله تامین کړي.

د جاپان سره د انرژۍ د امنیت موضوع اساسي موخه وه د اپه دې معنی چې د جاپان هېواد په تېرو کلونو کې په څو واره د انرژۍ د مختلفو ډولونو د کمښت سره مخامخ شوی وو نو ځکه یې پریکړه وکړه چې د روسيې سره یو هوکړه لیک د انرژۍ د واردولو په هکله ولري.

ځکه جاپان دا اټکل کړی وو، چې روسیه کولای شي د جاپان ۳۰ فیصده گاز او ۵ فیصده نفت تامین کړي، چې د جاپان د پانگوالي لپاره یې زمینه مساعده کړه ،چې د ۱۹۹۴ م کال راهیسې په روسیه کې د انرژي د تامین په منظور پانگوالی وکړي.

**څوارلسم: جاپان د روسيې په هکله په خپل بهرني سیاست کې څو نقطې ځانگړې کړي دي.**

۱ـ د روسيې د کورنیو او بهرنیو اصلاحاتو څخه ملاتړ.

۲ـ د روسيې د فدراتیف جمهوریت سره د اړیکو ټینگوالی.

۳ـ کوښښ وشي چې په اسیا پاسفیک کې د روسيې سره یو ښه شریک ووسو.

۴ـ جاپان د روسيې د کومکونو څخه چې د (I M F) او نړيوال بانک له لارې يې کوي ملاتړ اعلان کړي.

۵ـ د دوارو هېوادونو ترمنځ د اړيکو تامين د سولې د تړون په بنسټ او د قانون او انصاف د اصل په بنيا بايد دوام ورکول شي.

**پنځلسم: جاپان او د اسه ان مجوعه:**

د جاپان د اساسي قانون د نهمې مادې مطابق چې جاپان به په امنيتي او ستراتيژيکو مسائلو کې هيڅ ډول تحرک نه کوي، جاپان له هغې ورځې راهيسې د خپل اقتصادي توان مطابق په بين ا لمللي ډگر کې د ځان لپاره يو مسير پيدا کړی.

جاپان د ساړه جنگ وروسته د څو اړخه ډيپلوماسۍ په محور راڅرخي چې د جاپان مهمې موخې د يادې ډيپلوماسۍ څخه عبارت دي له:

الف ـ د يوه عادي هېواد په حيث د ملتونو په ټولنه کې د جاپان فعال حضور.

ب ـ د امريکا د ائتلاف په شتون کې په ځانگړي ډول د يوه مستقل ډيپلوماتيک هويت درلودل.

ج ـ د نړيوالې ټولنې له خوا د ټوليز امنيت له لارې د جاپان نظامي فعاليتونو ته مشروعيت ورکول.

د ـ د هرډول ائتلاف د جوړېدلو څخه تېښته.

د اسه ان مجموعه چې په ټوله کې لس هېوادونه دي په ۱۹٦۷ ميلادي کال د اقتصادي ، فرهنگي او اجتماعي چارو په اړه سره متعهد شول.

ياد هېوادونه د اسيا د شرق او جنوب هېوادونه دي چې، عبارت دي له ، فلپين ، اندونوزيا ماليزيا،تالينډ،ويتنام،ميانمار،کمبوج،لاوس،سينگاپور او بروني څخه.

اسه آن يو بين المللي سازمان دی چې د سيمه ييزو هر ډول ستونزو په حل کې په گډه تصميم نيسي،مجموعي نفوس يې تر پنځه سوه ميليونو تنو پورې رسيږي.

د اسه ان سازمان د ملل متحد ، اوپک او (G ۸) هېوادونه دي چې په نړيواله کچه د جاپان د بهرني سياست سره موافق عمل کولای شي.[۱۹٦]

---

[۱۹٦] سازمند،ډاکټر بهاره،سياست قدرت های بزرگ موسسه فرهنگي مطالعات وتحقيقات بين المللی ابرار معاصر،تهران،۱۳۹۰،ص،۳۴۸ـ۳۵۲.

# یوولسم څپرکی

**اول مبحث:**

## د اروپايي اتحادیې بهرني سیاست [ د ساړه جنګ وروسته ]

**اول-د اروپايي اتحادیې موقعیت او قدرت:**اروپايي اتحادیې د نړۍ تر ټولو شتمن اواغیزناک هېوادونه په نړیوال نظام کې په ځان راټول کړي دي چې اوس په بین المللي ډګر کې یو اساسي رکن دی چې آن کولای شي د امریکا د متحده ایالاتو هژموني قدرت ته ستونزې جوړې کړي.[197]

د نومړې اتحادیې د قوت اساسي دلیل د اقتصادي توان موضوع ده، چې په نورو نړیوالو نهادونو کې د نفوذ څښتنان دي.

د بېلګې په ډول نړیوال بانک، د پیسو د ورکړې صندوق او د تجارت نړیوال سازمان.

د بلې خوا په امنیت شورا کې دوې دائمي چوکۍ هم د فرانسې او انګلیستان په برخه دي او د ناټو سیاسي امنیتي تړون اساسي ستون هم اروپايي اتحادیې جوړ کړی دی.

یاده اتحادیه نهه زره میلیارده ډالره کلنی کورنی ناخالص تولید لري، د نړیوالې سوداګرۍ کچه یې نهه ویشت فیصده په اختیار کې ده.

دا په داسې حال کې ده، چې امریکا یویشت فیصد،جاپان یولس فیصده او اروپايي اتحادیه د پانګونې په هکله اته سوه میلیارده ډالره بهرنۍ پانګونه لري.

نفوس یې ۵۰۷ میلیونه تنو ته رسیږي چې د چین او هند وروسته دریېم لوړ نفوس ګڼل کېږي.[198-199]

اته ویشت هېوادونه په یادې اتحادیه کې غړیتوب لري، د نړۍ پنځوس فیصده د پراختیایي پروګرامونو کومکونه د اروپا په لاس کې دي، دېرش فیصده د نړۍ سوداګري یې ځان ته اختصاص

[197] خالوزاده،سعید وداوود کیانی،اتحادیه اروپا ونظام بین الملل، پژوهش شانزده،۱۳۸۸ ،ص،۸۱.

[198] خالو زاده، سعید او داوود کیانی،همغه اثر ،ص،۸.

[199] ناګ نت،نېل،سیاست وحکومت در اتحادیه اروپا،ترجمه،محسن، میر دامادي، دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی وزارت امورخارجه،تهران،۱۳۸۸، ص، ۷۱۷.

کړې ده، څلور هېوادونه یې د جی اته صنعتي هېوادونو په جمله کې دي. انگلیستان ،فرانسه ،المان ایټالیه او نور د جي اته هېوادونو په جمله کې راځي.

د اټومي سلاح له نقطې نظره انگلیس او فرانسه د اټومي بم درلودونکي هېوادونه دي، د ناټو شپیته فیصده اردو د اروپایي هېوادونو څخه تشکیل شوې ده.

طبیعي سرچینې یې لکه نفت اوگاز د امریکا په نسبت دوه پر پنځه برخې دي، د سولې او امنیت د ساتنې د عملیاتو پنځوس فیصده بودجه اروپایي اتحادیه اختصاص ورکوي او شپیته فیصده بودجه د ملل متحد د پراختیایي پروگرامونو په اروپایي اتحادیه پورې مربوطه ده.

اروپایي اتحادیه یو مطلوب وضعیت لري، چې ځینې عوامل یې لکه نفوس،خاوره طبیعي سرچینې او اقتصادي قدرت یې په نړیواله کچه دی.

خو د سیاسي او نظامي له نقطې نظره یې حالت په نړیوال کچه مناسب نه دی، له همدې کبله چې اروپایي اتحادیه د سیاسي او نظامي کمزروتیا د جبران لپاره په گډه امینتي بهرني سیاست کې انعکاس ورکوي.

**الف ـ نفوس او خاوره:**په ټوله کې اته ویشت هېوادونه په اروپایي اتحادیه کې شامل دي، چې مجموعي نفوس یې پنځه سوه اوو میلیونو ته رسیږي ،مساحت یې **۴۳۲۴۷۸۲** کیلومتره مربع دی، چې د روسیې، امریکې او چین څخه وروسته په څلورمه گټگورۍ کې راځي.

**ب ـ طبیعي سرچینې:**

طبیعي زېرمې عبارت دي له؛ د ډبرو سکاره ، گاز،نفت، اوسپنه،یوارنیم ، مس،رویي،مالگه او د اوبو برق، کرنیزه ځمکه او کبان.

جزیرې ،شبه جزیرې،کوچني او ستر خلیجونه چې د سیمې او نړۍ په کچه اهمیت لري،دوه مهم تنگي چې د بېړیو د تگ راتگ لپاره نړیوال جیو پولیټیک ارزښت لري، یاد مسیرونه په هسپانیه کې د جبل الطارق په نامه دي او دوهم مسیر د مانش په نوم په انگلیستان کې موقعیت لري.

چې د بېړیو په تگ راتگ یا بندیز کې ستراتیژیک اهمیت لري، جزیرې یې د مالټا کرېټ،سردینیا په مدیترانه کې موقعیت لري ، د ډینمارک جزیرې د بالټیک په بحیره کې شتون لري او د ایسلینډ

جزيرې د اطلس په اقيانوس کې واقع دي چې په هوايي نړيوالو ليکو باندې د نظارت له نقطې نظره د اهميت وړ دي او د بحري بېړۍ چلولو په صنعت کې اقتصادي رول لري.

د سترو سيندونو درلودل چې د يوې خوا يې د بېړۍ چلولو قابليت لري او د بله اړخه د مسافرو په انتقال کې اقتصادي ستره ونډه لري،په ټوله اروپا کې د ارزښت وړ دي ياد سيندونه عبارت دي له،ډانيوب،راين،ډين رو،ډينيستر.

د سواحلو، ناهمواروځمکو، د اوبو شبکې، د خاورې نوعيت،د جوی او اقليمي وضعيت ، د انساني عواملو په څنګ کې لکه نژادي،توکميز،ژبني او مذهبي تنوع درلودل اروپا ته ځانګړې خصوصيت ورکړی دی.

**ج ـ اقتصادي توان:**

اقتصاد د ملي اقتدار يو مهم اړخ دی، اروپايي اتحاديه ، جاپان،امريکا او د جنوب شرقي اسيا سيمه چې د اسه ان په نامه يادېږي د اقتصادي قوت مرکزونه دي.

د (G۷) د هېوادونو څلور غړي د اروپايي اتحادېې د جملې څخه دي، چې عبارت دي له؛انګليستان،فرانسه،المان او ايټاليه.

**اروپايي اتحاديه په لاندې سازمانونو کې غړيتوب لري:**

نړيوال بانک،د پيسو نړيوال وجهي صندوق،د اقتصادي همکاريو سازمان او د سوداګرۍ نړيوال سازمان.

**د ـ سياسي قدرت:**

اروپايي اتحاديه په امنيت شورا کې دوې دائمي چوکۍ لري، چې په فرانسه او برتانيه پورې تړاو لري.

اروپايي اتحاديه په سياسي ډګر کې د لږ وحدت څخه برخمنه ده او په سياسي امنيتي او دفاعي ډګر کې د ملي سياستونو څخه پيروي کوي،هر هېواد يې په سياسي ډګر کې د خپلو ملي ګټو په تلاش کې دی .

**هـ ـ نظامي قدرت:**

اروپايي اتحاديه د جوړښت له وخته ترا وسه هيڅ وخت يو نظامي نړيوال قدرت نه دی مطرح شوی، چې دا کمزورتيا د بالکان او کوژو په بحران کې په عملي ډول ښکاره شوه.

که څه هم فرانسه او انګليستان د اټومي وسلې څخه برخمن دي، خو د يوه نړيوال نظامي قدرت په حيث نه پيژندل کيږي.

اروپايي اتحاديه په نړيوالو چارو کې شتون لري ، خو اغيز يې د نظامي نقطې نظره محسوس نه دی.

ځينې پلټوونکې په دې اند دي چې يو هېواد د دې لپاره چې نړيوال نظامي قدرت حساب شي نو لازمه ده چې؛ په هر وخت کې جنګ ته چمتو وي،چې هر ډول جګړه اوسي.

د ناټو شپېته فيصده سرتېري د اروپايي هېوادونو څخه جوړ دي، خو بيا هم اروپايي اتحاديه کوم منظمه ،مستقله اردو او نظامي توان نه لري،نه نظامي شورا لري او نه نظامي تسليحاتي سياست لري.

د اروپايي اتحاديې هېوادونه د دفاعي امنيتي ملحوظاتو په منظور کافي بودجه نه لري.

فرانسه او انګليستان د دفاعي او امنيتي بودجې تر پنځه څلوېښت فيصده تامينوي، اوس چې انګليستان اروپايي اتحاديه پرېښوده معلومه نه ده چې؛ انګليستان به د اروپايي اتحاديي امنيتي بودجې ته خپل برخه ورکړي او که نه؟

د اروپايي اتحاديې امنيتي دفاعي سکتور لس زره ټانګونه،دوه زره پنځه سوه جنګي الوتکې چې په دوه وروستيو لسيزو کې محاسبه شوي دي، هر اروپايي هېواد دځان لپاره خپل دفاعي پروګرام مخ ته بيايي.

د نړيوالو په نظر اروپايي اتحاديه يو مدني قوت دی، تر دې چې يو نظامي قدرت وي، د دې لپاره چې اروپايي اتحاديه په يوه نړيوال ستر قدرت بدل شي بايد د ټولو قدرتونو په منځ کې تعادل او توازن راپيدا کړي.[۲۰۰]

---

[۲۰۰] مجيدی،داکتر،فراض،محمود،علی رضا،وند،ياسر نورعلی،سياست خارجی،امنيتي ودفاعی اتحاديه اروپا پس از جنګ سرد انتشارات خرسندی،تهران،۱۳۹۲،ص،۲۷ـ۳۵.

د اروپایي اتحادیي بنسټ اته شپېته کاله مخکې د اروپا د ډبرو سکرو او فولادو ټولنې په ۱۹۵۱ میلادي کال کې کېښود چې د شپږو هېوادونو له خوا تاسیس شوه، هغه هېوادونه عبارت دي له:

فرانسه،ایټالیه،بلژیک،هالنډ،لوکزامبورک چې په فاریس کې یې غونډه وکړه اساسي موخه یې د سکرو او فولادو د تولید او پالیسۍ همغږۍ کول وو.

د روم د تړون لاسلیک او د اروپا اقتصادي ټولنه،د اروپا د اټومي انرژۍ ټولنه د مارچ په پنځویشتمه په ۱۹۵۷ میلادي کال یو ستر خوځښت د اروپا د وحدت او یو والي په لور وو، چې موخه یې د یوه ګډ مارکیټ پیدا کول او د ګډ اقتصادي سیاست رامنځته کول او پېداښت وو.

د دریو ټولنو د تړون د لاسلیک په اساس په بروکسل کې په ۱۹٦۵ میلادي کال او اروپایي ټولنه یې جوړه کړه چې موخه یې سیاسي وحدت وو.[۲۰۱]

د ۱۹۹۰ لسیزې په پیل کې د برلین دیوال د ړنګېدلو سره د اروپا وېش په شرق او غرب باندې ختم شو او د اروپا همغږي رامځته شوه چې د اروپا هویت یې بیا ځل راژوندي کړ.

د ۱۹۹۱م کال په ډسمبر کې د ماستریخت د تړون په لاسلیک سره اروپایي اتحادیه تشکیل شوه او د اروپایي ټولنې ځای یې ونیوه چې موخه یې د اروپا لپاره یو واحد بهرنی سیاست او په سیاسي اقتصادي چارو کې مرسته وه.

اروپایي اتحادیه د اروپایي شورا ترنظارت لاندې فعالیت کوي، چې د هېوادونو د مشرانو څخه جوړه شوې ده ،چې د ماستریخت تړون د اروپایي اتحادیي د تاسیس او جوړښت تړون دی.

یاد تړون په ۱۹۹۱ م کال کې د ډسمبر په میاشت کې تصویب او په ۱۹۹۲ میلادي کال د فبروري په میاشت کی لاسلیک شو چې بلاخره د ۱۹۹۵ م کال راهیسې عملا فعالیت کوي.

د ۱۹۹۵ د جنوري په میاشت کې اتریش، فنلینډ او سویډن هېوادونو د ماستریخت تړون ته ور شامل شول.
په ۲۰۰۴ م کال د مې په میاشت د ختیځې اروپا او جنوبي اروپا لسو نورو هېوادونو هم د اروپایي اتحادیي غړیتوب قبول کړ چې یاد هېوادونه عبارت دي له؛

[۲۰۱] خالو زاه، سعید و داوود کیانی،اتحادیه اروپایی ونظام بین الملل، پژوهش شانزده،تهران،۱۳۸۷،ص،۷۹ـ ۱۲۸.

پولینډ،مجارستان،چیک،سلوانیا،قبرس،سلواکي،ستوني،لستوني،لیتوانیا او مالټ څخه.
بلغاریا او رومانیا په ۲۰۰۷ میلادي کال کې غړیتوب حاصل کړ چې اوس فعلا په مجموعي ډول ۲۸ هېوادونه د اروپایي اتحایي غړیتوب لري.
په یاده اتحادیه کې درې ستر هېوادونه بېلابېلې پالیسی لري، چې دا هېوادونه عبارت دي له؛انگیستان،فرانسه او جرمني.
انگلیستان د دوهم نړیوال جنگ وروسته د وینسټون چرچیل د طرحې مطابق خپل بهرنی سیاست د اروپایي اتحادیي سره همغږی کړی نه دی.
ځکه چې د امریکا د متحده ایالاتو ستراتیژیک ملگری دی خپل بهرنی سیاست د امریکا د سیاست سره همغږی ساتي چې ښه واضح بېلگه یې په ۲۰۰۳ میلادي کال کې د امریکا یرغل په عراق باندې یادولای شوچې انگلیستان یې د فرانسې او المان په خلاف ملاتړ او ملگرتیا وکړه.
فرانسې د انگلیستان برخلاف خپل غږ د بروکسل د تریبیون څخه وچت کړ او د اروپایي اتحادیي سره سیاسي چلند کوي،او د اروپایي اتحادیي تصمیم ډېر وخت د منلو وړ نه بولي.
د بله اړخه فرانسې د شرقي اروپا د هېوادونو د غړیتوب سره په اروپایي اتحادیه کې مخالفت ښودلی دی، ځکه د شرقي اروپا هېوادونه د امریکا د شتون سره موافق دي، ترڅو د روسیې له نفوذ څخه مخه ونسي.
خو دا عمل د اروپایي اتحادیي د اجماع د کمزورتیا سبب شوې دی ،بېلگه یې د پولینډ ، چک او د بالټیک د هېوادونو ملاتړ دی چې د امریکا د یرغل څخه یې د عراق په وړاندې وکړ.
دا په داسې حال کې ده چې فرانسې او المان د یاد یرغل مخالفت کړی وو ځکه نو فرانسې د اروپایي اتحادیي د پراختیا سر د شرقي اروپا هېوادونو ته مخالفت ښکاره کړی دی.

**دوهم ـ د اروپایي اتحادیي بهرنی او امنیتي گډ سیاست:**

له ساړه جنگ څخه وروسته د ماستریخت په ناسته کې په ۱۹۹۲ میلادي کال اروپا یو بهرني او امنیتي گډ سیاست طرحه کړ چې د اروپا د درې اړخه بنسټونو څخه یې یو بنسټ جوړ کړ.

د یاد تړون شرحه د امستردام په تړون کې (۱۹۹۷ م) او د نیس په تړون کې په (۲۰۰۰م) کال کې په مفصل ډول راغلې دي.

اروپایي شورا په ۱۹۹۳د اکتوبر په ۲۹ په خپله ناسته کې د خپلو هېوادونو د ملي گټو نوملړ چمتو کړ چې په لاندې ډول دی:

الف ـ د اروپا ټینګښت او ثبات.

ب ـ د منځني ختيځ مسائل.

ج ـ د جنوبي افريقا مسائل.

هـ ـ د پخوانۍ يوګوسلاويا مسائل.

د ـ د روسيې مسائل.[۲۰۲]

تر ۱۹۹۵ ميلادي کال پورې اروپايي اتحاديي يو سلو شپږ اعلامې صادرې کړې، په اروپايي اتحاديې کې د بېلابېلو دليلونو په بنسټ ايجابوي جې د بهرني سياست د همغږۍ په هکله د نظرياتو تبادله صورت ونه نيسي.

د بېلګې په ډول په بهرني سياست کې د امريکا او انګليستان خصوصي اړيکې، د جرمني د تحرک نشتوالی، د فرانسې او المان او بلژيک مخالفت ،د عراق د يرغل په هکله د امريکا او انګليس د بهرني سياست سره، د انکليس سياست د چين او هانګ ګانګ په هکله، د جرمني سياست د شرقي اروپاد د هېوادونو په هکله چې د ناټو غړيتوب يې خپل کړی وو، د فرانسې سياست د عربي هېوادونو او د شمالي افريقا د هېوادونو په هکله،پورتني ذکر شوي عوامل د اروپايي اتحاديي د بهرني سياست د همغږۍ د نه موجوديت اساسي عوامل دي.

د بالکان په بحران کې د لومړي ځل لپاره د اروپايي اتحاديي نظامي کمزورتيا احساس شوه چې په ۱۹۹۵ لسيزه کې واقع شوې وه او په عملي ډول د اروپا ګډ بهرنی او امنيتي سياست د اکتوبر په مياشت کې په ۱۹۹۷ ميلادي کال کې تصويب شو چې د ماستريخت د تړون مطابق اجرايي شکل يې ځان ته غوره کړ.

[۲۰۲] ستويانف،ستويان،سياست خارجی وامنيتی مشترک اتحاديه اروبا، فرصت يا تهديد،ترجمه،شانی،هرمزيد، پژوهش هژده،۱۳۸۸،ص،۱۱۹ـ۱۳٦.وص ۱۲۳.

خو په **۱۹۹۹** میلادي کال کې په عملي ډول استفاده ځینې وشوه، چې د نظامي عملیاتو د مخنیوي یا د جګړو په مدیریت کې ګټه ځینې واخېستل شي.[۲۰۳]

د امنیتې بهرني سیاست په چوکاټ کې ملي مسلح قوتونه د ملي قوماندې او امر لاندې راوستل کیږي.

د امستردام تړون(۱۹۹۷) او د نیست تړون(۲۰۰۰) میلادي کال په تصویب سره د اروپایي اتحادیي د ګډ بهرني امنیتي سیاست په ترسره کولو تاکید شوی دی.

د امستر دام په کنفرانس کې چې په **۱۹۹۷** کال کې جوړ شو، د درې هېوادونو په منځ کې د نظر اختلاف منځته راغی، چې هغه هېوادونه عبارت دي له؛ انګلیس،المان او فرانسي څخه ، چې وروسته په یوه واحده فیصله موافق شول چې اروپا په بین المللي کچه باید خپل واحد هویت تثبیت او وساتي چې بلاخر د فرانسې او المان نظرتایید شو چې د اروپا په بهرني سیاست کې د دولتونو ترمنځ کړنلاره د تایید وړ وګرځېده او د وزیرانو د شورا رول یې څنډې ته کړ.

**درېیم: د اروپایي اتحادیي په بهرني سیاست باندې اغیزناک عناصر:**

د جیمز روزنا متغیر په دې هکله په ښه ډول د تطبیق وړ نه دی له هغې جملې څخه د شخص او د رول متغیرات د تطبیق وړ نه دي ځکه چې د یوې خوا یو شخص د نوموړې اتحادیې په راس کې قرار نه لري.

ځکه نو دقدرت اړخونه،د تصمیم نېونې مهم ارګانونه،نهادونه او په نړیوال کچه کې یې مشخص موقعیت په نظر کې نیول شوی دی.

**دوهم مبحث:**

**لومړی: د اروپایي اتحادیي په بهرني سیاست باندې اغیز لرونکي هېوادونه**

د اروپایي شورا، پارلمان،کمېسیون او د وزیرانو شورا د هغه مربع اضلاع دي، چې د تصمیم نېوونکو نهادونو په جمله کې راځي، په لومړۍ درجه اروپایي شورا او وروسته له هغه د وزیرانو شورا ده چې په بهرني سیاست کې رول لري.

د اروپایي اتحادیې شورا اصلي او عمده د سیاسي تصمیم نېونې او د قانون جوړونې نهاد دی او تصمیمونه یې په دوو سطحو نېول کیږي.

[۲۰۳] خالوزاده،سعید،سیاست خارجی اتحادیه اروپا،هویت،امنیت وسیاست، به کوشش سید عبدالعلی قوام و داوود کیانی،تهران،۱۳۸۹،ص ۱۱۶،۱۱۷.

**الف ـ د اروپايي اتحاديې د شورا مشران:**

د اروپا شورا د هغو هېوادونو د مشرانو څخه جوړه ده، چې په اتحاديه کې غړيتوب لري مهم او وروستی تصميم نېونکی نهاد دی، هغه موضوعات چې د وزيرانو په شورا کې د حل وړتيا ونه لري ،په همدغه د مشرانو په شورا کې حل اوفصل کېږي.

د لوړو سياستونو ليکې او د اتحاديې سياسي رهبري يې په لاس کې ده،دا شورا په **۱۹۷۴** ميلادي کال کې تاسيس شوې ده.

**ب ـ د وزيرانو شورا او تشکيلات:**

ياده شورا د اروپايي اتحاديې د هېوادونو د بهرنيو چارو د وزيرانو څخه تشکيل شوې ده، هر شپږ مياشتې وروسته يوه جلسه لري، د جلسې رياست په دوري شکل دی، چې د مربوطه هېواد د بهرنيو چارو وزير يې رياست کوي.[۲۰٤]

شورا هغه وړانديزونه چې ورته رسيدلي وي همغه بررسي او څېړنه يې کوي، که چېرې يې تصويب کړي د اروپايي اتحاديې لپاره د قوانينو حثيت غوره کوي.

شورا د بهرني سياست د اجرا مرجع ده چې د اروپايي پارلمان سره د مشورې وروسته د بين المللي سازمانونو سره تړونونو او هوکړه ليکونه لاسليک کولای شي.[۲۰۵]

**ج ـ د شورا عمومي منشي او د بهرني امنيتي سياست عالي استازی:** د اروپايي اتحاديې مشرانو په **۱۹۹۷** ميلادي کال د امستر دام په تړون کې د بهرني او امنيتي سياست د لا ښه انسجام په خاطر يو ستر استازی د بهرني امنيتي ګډ سياست په هکله قبول کړی دی او د لومړي ځل لپاره يې په **۱۹۱۹** ميلادي کال کې خاور سولانا د لومړني عمومي منشي او ستر استازی وټاکه.

[۲۰٤] ناګنت،نيل،سياست وحکومت در اتحاديه اروپا،ترجمه محسن ميردامادی،دفتر مطالعات سياسی وبين المللل وزارت امور خارجه، تهران،۱۳۸۸،ص،۲۱۷.

[۲۰۵] خالوزاده،سعيد،همغه اثر،۱۳۸۳،ص،٦٦.

د نوموړي پست دنده دا ده، چې د بهرني امنیتي سیاست انسجام او پیاوړي کول، د لازمه تصمیمونو نیول او د تصمیمونو په ترسره کولو کې د همغږۍ رامنځته کېدل دي.[۲۰۶]

نوموړی پست لپاره شخص  د پنځو کالو لپاره ټاکل کېږي.

**د ـ اروپايي کمېسیون:**

په ۱۹۶۷ میلادي کال کې درې نهادونه وو چې؛ د اروپايي کمېسیون بنسټ یې کېښود، د اروپايي اتحادیې د اقتصادي مرستو برخلاف،پارلمان او اروپايي کمېسیون په بهرني امنیتي ګډ سیاست کوم اغیز نه لري.

کمېسیون په جلسو کې برخه اخلي، د طرحې وړاندیز کولای شي او د بهرني امنیتي ګډ سیاست د اجرا کولو په منظور بودجه ورته تخصیص کېږي.[۲۰۷]

په عمومي ډول اروپايي کمېسیون د بهرني امنیتي ګډ سیاست په هکله په لاندې ساحاتو کې مداخله کولای شي:

الف ـ د ابتکار حق.

ب ـ خبرې اترې او د درېیم هېواد سره د هوکړه لیک لاسلیک کول.

ج ـ د بودجې تخصیص.

د ـ اجرایي صلاحیت.[۲۰۸]

اروپايي پارلمان د مقننه قوې رول لري، د تقنین اختیار د ماستریخت ، امستردام او نیس د تړونونو په بنسټ اروپايي پارلمان ته ورکول شوی دی.

[۲۰۶] کیاني،داوود،سیاست خارجی روسیه در خاور میانه،فصلنامه راهبردی،شمار چهل هفت،۱۳۸۷،ص،۳۶۳ـ۳۸۰.

[۲۰۷] ستویانوف،ستویان،سیاست خارجی وا منیتی مشترک اتحادیه اروپا،فرست یاتهدید،ترجمه شانی هرمزی،پژوهش هژده،۱۳۸۸،ص،۱۱۹ـ۱۳۶.

[۲۰۸] مجیدی،محمد رضا،ثمودی،علی رضا،یاسر نور علی،سیاست خارجی،امنیتی ودفاعی اتحادیه اروپا پس از جنگ سرد،مطبعه خرسندی،تهران،۱۳۹۲،ص،۸۴ـ۸۵.

بل اختیار د اروپایي پارلمان عبارت دی له هغه نظارت څخه چې، په بهرني سیاست باندې ترسره کیږي.[۲۰۹]

د یورو د پیسو واحد سیستم چې په **۱۹۹۹** میلادي کال د اروپایي اتحادیې له خوا ومنل شو او په رسمي ډول یې د یورو چلند په مارکیټ کې له **۲۰۰۲** میلادي کال راهیسې په رسمي ډول جریان ته واچاوه،کرنیز او د کښت کروندې واحد سیاست،دفاعي ګډ سیاست او د اروپایي اردو تشکیل او جوړښت، ټولنیز ګډ سیاست، ټولنیز ګډ منشور او اساسي حقوق، ګډ ښاري مفهوم،د بهرني مالیاتو ګډ سیاست له هغو اساسي طرحو څخه دي چې د اروپایي اتحادیې له خوا وړاندې کیږي.

**دوهم: د اروپایي اتحادیې او د د انګلیس دریځ:**

انګلیستان په یوه جزیزه کې موقعیت لري، خاص رسم رواج،اداب،سنت،عرف او فرهنګ لري، چې په پېړیو سره یې دا خوښه کړې ده چې د اروپا سر په څنګ کې ووسیږي.

خو په داخل د اروپا کې نه غواړي چې خپل ټول سیاست د اروپایي نورو هېوادونو سره ګډ کړي، برتانیه عقیده لري چې؛ متحده پاتې شي او ټولې ګټې د ځان لپاره تخصیص کړي.

برتانیې اعلان کړی دی، چې په څلورو محورونو کې چې د انګلیستان په حاکمیت پورې اړه لري، د اروپا سره همغږي ونه اوسي.[۲۱۰]

الف ـ بهرني سیاست.

ب ـ د بشر حقوق.

ج ـ ټولنیز قوانین.

د ـ مالیاتي چارې.

نو ځکه انکلیس د اروپا سره په ګډ بهرني امنیتي سیاست موافقه نه ده، په امنیتي او نظامي اړخ کې انګلیستان تر اوسه ځان په امریکا پورې تړلی بولي او ناټو د اروپا د امینت په تامین کې ملزم بولي.

---

[۲۰۹] سازمند،بهاره،همغه اثر، ص، ۸۳.

[۲۱۰] کاردان، عباس،کتاب اروپا،ویژه مسائل انګلیستان،موسسه فرهنګی وتحقیقات بین المللي ابرار معاصر، تهران،۱۳۸٦،ص،۲۰۴.

د انګلیستان داخلېدل د عراق جنګ ته د امریکا سره یوځای په حقیقت کې د اروپا د ګډ امنیتي بهرني سیاست کمزورتیا په ډاګه کوي، انګلیستان د عراق جنګ ته د امریکا سره په همکارۍ اروپایي اتحادیې ته وښودله چې؛ په امنیتي اړخ کې د اروپا سره یوځای نه ده.

**د انګلیستان ډیپلوماسي دوه اساسي رکنونه لري:**

۱ ـ د اروپا په امنیت کې د امریکا مداخله.

۲ـ د امریکا سره د انګلیستان نږدې اړیکې ساتل.

انګلیستان عقیده لري چې؛ دا امریکا وه چې د اقتصادي او نظامي قدرت لرلو په مټ یې په دوو نړیوالو جګړو کې او هم د ساړه جنګ وروسته کامیابي په نصیب شوه، چې دا وړتیا په اروپایي هېوادونو کې هیڅ شتون نه لري .

د امریکا پوټنشیل د اروپا په امنیت کې ستر رول لري، د اروپا او امریکا اړیکې باید د ناټو له لوري تامین.

دوهم رکن عبارت دی له؛ د انګلیستان او امریکا اړیکې چې تاریخي ریښې لري چې به ځانګړي ډول د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته لکه د روز ویلت او چرچل د مک میلان او کینډي ، کالاهان او کارتر، د کارتر او تاچر نږدې اړیکې چې موجودې وې په نړیواله کچه یې اغیزناک اثرات درلودلي دي، **انګلیستان د اروپا د اتحاد او یوالي سره تر ټولو هېوادونو ډېر مخالف هېواد دی.**

یوازې د انګلیستان د ملي ګټو د تامین په صورت کې د اروپا سره همغږی شوی دی او بس، د نورو اروپایي هېوادونو په ملي ګټو پسې ډېرنه ګرځي.

**دریم: د اروپا د بهرني امینتي ګډ سیاست په وړاندې د فرانسې سیاسي دریځ :**

د ساړه جنګ په دوران کې فرانسې مسقل بهرنی امنیتي سیاست درلود، خو په اوس وخت کې د ساړه جنګ څخه وروسته دغه ستونزه شتون لري، چې فرانسه د امریکا په شتون کې یو مستقل او ازاد بهرنی امنیتي سیاست ولري.

د فرانسې په نظر اروپا باید داسې ځای اوسي، چې د فرانسې مخکینی عظمت او دبدبه ژوندۍ کړی شي چې؛ د فرانسې د ملي قدرت ژوندي کول دي.

په همدې لحاظ فرانسې په خپل سپین کتاب کې چې د فرانسې د نظامي دکتورینو انعکاس ورکوونکی دی لیکلي دي چې؛ د اروپایي بهرني امنیتي ګډ سیاست په هکله باید اروپایي او غیر اروپایي مسائل سره بېل شي.

اروپایي مسائل باید د ګډ امنیتي بهرني سیاست په چوکاټ کې حل شي، خو د غیر اروپایي مسائلو په هکله فرانسه مایله ده چې؛ د فرانسې د وسایلو او امکاناتو څخه په ګټې اخیستنې سره لکه په امنیت شورا کې دائمي چوکۍ درلودل ، د افریقایي هېوادونو سره اړیکې او د اټومي اسلحې د استعمال څخه ډډه کول چې د فرانسې خپله لاره او سیاست تعقیب کړي.

د اروپایې اتحادیې ټول تصمیمونه باید د اجماع له لارې ونیول شي، فرانسه د انګلیستان له نظر سره مخالفت لري ،چې امریکا د اروپا په امنیت کې اړین او حتمي جز دی او اساسي رول لري.

فرانسه عقیده لرې چې هیڅ ضمانت شتون نه لري چې په راتلوونکي کې به امریکا د اروپا سره وفادار پاتې کېږي.

فرانسه د ځینو افریقایي هېوادونو سره ښې اړیکې لري چې ممکنه نه ده د اروپا د بهرني امنیتي سیاست سره ورباندې معامله وکړي.

د بېلګې په ډول نایجریا،منځنی ختیځ (سوریه، اردن مصر)د ختیځې اسیا هېوادونه د بېلګې په ډول کوریا او ویتنام.

**څلورم: د اروپا د ګډ امنیتي بهرني سیاست په وړاندې د جرمني سیاسي دریځ:**

د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د جرمني بهرنی سیاست د هغه تعهد په اساس چې جرمني به د څو اړخه سره خپل بهرني سیاست دومداره ساتي او د بله جانبه دې شک تل شتون درلود چې جرمني به یو ځل بیا یو نظامي ستر قدرت جوړ شي.

په دې چارچوب کې د اروپايي اتحادیې ، ملل متحد ا وناټو هغه دري گوني نهادونه دي چې د جرمني په بهرني سیاست کې رول لري د جرمني د بهرني سیاست د درک لپاره باید د المان جغرافيايي موقعيت هم مطالعه او وپېژندل شي.

اډ نایر د جرمني د موقعیت په نظر کې نیولوسره د ۱۹۴۰ میلادي کال څخه بیا تر ۱۹۵۰ میلادي لسیزې پورې د المان د بهرني سیاست د اجرا کولو په منظور دوه انتخابه وړاندې کړي دي:

**۱- انتخاب:**

د امریکا سره نږدې مرسته کول، چې په حقیقت کې المان د امریکا سره په نږدې اړیکو او همکاري کولو سره له یوه لوري د المان په بیا جوړونه کې کار کولی شي.

دوهم اړخ د دواړو جرمني هېوادونو د یوځای کېدلو او وحدت په هکله ډېر اغیزناک ثابت کېدلای شي.

**۲- انتخاب:**

د فرانسې او المان د یوځای کېدلو په اساس د ټولې اروپا د گډون او همغږۍ لاره ده ،درېیمه لاره ویل برانټ وړاندې کړې وه، چې د المان بهرنی سیاست د ختیځې اروپاد هېوادونو او شوروي اتحاد له لارې مخکې لاړ شي.

دا درې گونې لارې د بېلابېلو سیاستمدارانو په پالیسو او ستراتیژیو کې بدلون لري، د شوروي اتحاد په ړنگېدلو او د نوي بین المللي نظام په راتلو سره المان کوښښ کوي، چې اروپايي اتحادیې ته د شرق اړخ ته پراختیا ورکړي چې د المان اقتصادي گټې یې ایجابوي.

دوهم د ساړه جنگ وروسته جرمني فکر کوي چې د اروپايي اتحادیې له لارې المان یو ځل بیا د پخواني شان او شوکت او برم لاسته راوړلای شي .

نو ځکه جرمني غواړي چې د اروپا ځینو ساحاتو کې خپل کوښښونه سره گډ او همغږي کړي لکه د اوبو، هوا د تغیر سیاست،قضایي پولیسو پلي کېدل او بهرنی امنیتي گډ سیاست. نن د اروپا ټولو مشرانو د اروپا د وحدت او یوالي غږ په شوک او مینې سره پورته کړی دی، خو هر هېواد یې د خپلو کوچنیو گټو لپاره په اتحادیه کې په ناندرو وهلو باندې بوخت دي او هره لاسته راوړنه چې ولري، په خپل اړوند هېواد کې یې د ځان نوښت بولي، نه د ټولې اروپايي اتحادیې.

د اروپايي اتحاديې سره د يوه قمار په سترگه گوري، خو حقيقت دا دی چې د اروپايي اتحاديې ټول هېوادونه د خپلو ملي گټو په نظر کې نيولوسره د اروپا د اتحاد غوښتونکي دي.

که چېرې په هره طرحه کې د يو هېواد ملي گټې تامين نه شي،هيڅکله به د اروپايي اتحاديې د يوالي او د گډ امنيتي بهرني سياست ملاتړ ونه کړي.

د بهرني امنيتي سياست ځينې کوښښونه د نورو بهرنيو هېوادونو سره د تړون تر شعاع لاندې راغلي دي.

د بېلگې په ډول د انگيستان نږدې اړيکې د امريکا سره چې په مقابل کې يې د فرانسې پخوانۍ دښمني له امريکا سره يادولای شو ، چې فرانسې د ناټو له تړون څخه تر ۱۹۹۷ ميلادي کال پورې شتون نه درلود ،يا د فرانسې پخوانۍ مستعمرې چې په جنوبي مديترانه کې يې موقعيت درلود، يا د هسپانيې په تړاو د لاتينې امريکا د هېوادونو سره، د پرتگال پخوانۍ مداخله په افريقايي ملکونو کې، دا ټول موضوعات د اروپا په بهرني امنيتي سياست باندې ستره اغيزه اچولې ده.

امريکا د اروپا د بهرني امنيتي سياست په هکله په ځانگړي ډول د نظامي برخې سره په درې شرطونو موافقه ده.

الف ـ د امريکا او اروپا نه بېلوالی.

ب ـ د اروپايي هېوادونو سره د تبعيض نه ښکاره کول، چې د اروپايي اتحاديې غړيتوب نه لري د بېلگې په ډول د ترکيې هېواد.

ج ـ د ناټو د تړون سره بايد موازي کومه بله کړنلاره طرحه نه شي.

معلومه ده چې؛ امريکا به تر هغه وخته د اروپايي اتحاديې د بهرني امنيتي سياست سره موافقه ولري چې ياد سياست د ناټو په چوکاټ کې طرحه او عملي شي.[۲۱۱]

---

[۲۱۱] مجيدی،محمد رضا،ثمودي،علي رضا،نورعلي وند، ياسر،سياست خارجي امنيتي ودفاعی اتحاديه اروپا پس از جنگ سرد،مطعه،خورسندی،تهران،۱۳۹۲،ص،۱۸۱ـ۱۹۷.

د امریکا د دفاع وزارت په خپله امنیتي ستراتیژي کې د اروپا په هکله لیکلي دي، د اروپا د امنیتي سازمانونو ساتنه او اغیزمنتیا په ځانګړي ډول ناټو، د امریکا لپاره یوه وسیله ده،چې د اروپا په امنیت کې د رهبرۍ او نفوذ رول ولري.

امریکا د ځان لپاره د اروپا په چارو کې ناټو یوه وسیله بولي، چې امریکا د اروپا په امنیت او نفوذ کې اغیز ناکه ده.

نن ورځ یویشت هېوادونه د ناټو او د اروپا د امنیتي دفاعي سیاست غړي دي، همدغه مسئله یاد هېوادونه د یوه واحد سیاست په همغږۍ کې په تشویش کې کړي دي، نو ځکه دواړه سازمانونه د یو او بل په رقابت بوخت دي.

**پنځه: د اروپا په بهرني دفاعي ګډ سیاست کې د روسیې نقش:**

د جغرافیي موقعیت نږدیوالی، دوه اړخه اقتصاي اړتیا، د استوګنې او چاپیریال تخریبي اثرات او تشویش،سازمان شوي جرمونه او اروپایي هېوادونو ته د د روسیې د وګړو ګډوالي له ډېره وخته د روسیې او اروپایي اتحادیې په اړیکو تاکید کړی دی.[212]

د اروپایي شورا د ۱۹۹۵ کال تصمیم د روسیې د اړیکو په وړاندې لومړنی تلاش دی، چې د اروپایي اتحادیې ستراتیژي د روسیې سره، په راتلوونکو اړیکو لیکل شوی ده.

داسې ذکر شوي دي چې؛ د ډیموکراتیکې روسیې او اروپایې اتحادیې نېکې اړیکې د اروپا د ثبات او ټینګښت لپاره اړینې دي.

د اروپا ستراتیژي په روسیه کې په اروپایي شورا کې په ۱۹۹۹ میلادي کال کې تصویب شوه، چې ځلور د عمل ساحات یې په کښې ذکر کړي دي( د ډیموکراسۍ ټینګښت،د قانون حاکمیت او د روسیې د عمومي نهادونو ادغام د اروپا په اقتصادي او ټولنیزو نهادونو کې،ثبات،امنیت او په اروپا کې ننګونې او خنډونه،له دې جملې څخه هغه ګډې ننګونې او خنډونه عبارت د انرژۍ امنیت،اټومي امنیت،غیر قانوني کډوالي او نور.

[212] وحید،مجید،درګردش سیاست ګزاري خارجی،بر اساس منافع ملي برروی سیاست های اروپای جنرال دو ګل،مجله انش کده حقوق وعلومی سیاسي،شماره ۶۱،،ص ص،۲۸۷ـ ۱۳۸۲،۳۱۰

په اوسني وخت کې مسکو کوښښ کوي، چې د اروپايي اتحاديې له هر هېواد سره په يوازيني ډول خپلې اړيکې ټينګې کړي په ځانګړي ډول د فرانسې، المان، ايټاليه او انګليستان سره چې دوه اړخه اړيکې يې د روسيې سره ټينګې کړي دي چې د اروپايي اتحاديې د ګډې ستراتيېژۍ سره په تضاد کې ده.[۲۱۳]

**شپږم: د ساړه جنګ څخه وروسته د ناټو دريځ:**

۱ـ د بين المللي سولې او امنيت ساتنه.

**۲**ـ د ناټو دغړو هېوادونو د امنيت په خاطر د جغرافيايې قلمرو څخه د باندې د نظامي عملياتو ترسره کول،

**۳**ـ د ټوليزې دفاع او ساتنې اصل.[۲۱٤]

زبيګنو بريژنسکي د امريکا يو ستراتيژيست عقيده لري ؛ کمونيزم چې د دين ضد مفکوره لري او د مسلمانانو عقيدتي دښمن دی، بايد يو شين کمربند(جهادي قوتونو)د شوروي په مقابل کې تشکيل شي او همدا رنګه د طالبانو وجود د شوروي د ړنګېدو په مقايسه مهم دی. او د بلې خوا د مرکزي اروپا د هېوادونو ازادي ورکول او د ساړه جنګ پای ته رسېدل، موږ ته ډېر حياتي ارزښت لري، نسبت دې ته چې يو شمېر احساساتي مسلمانان په افغانستان کې د مجاهدينو په نوم شتون ولري.

ياد ستراتيژيست دا نظريه هغه وخت ورکړې، چې د شوروي اتحاد څلوېښتم اردوپه افغانستان باندې يرغل وکړ.

امريکا او غربي اروپا د کمونيزم د هژموني څخه د خلاصون په هدف د افغانستان د مسلمان ولس د کمونيزم په مقابل کې يو ډېپ جوړ کړ.

[۲۱۳] ايزدي،پيروز،نګاه فرانسه به سياست خارجي وامنيتي مشترک ، محمود اعظی وپيروزايزدي که مشترک تدوين نموده، سياست خارجي وامنيتي مشترک اتحاديه اروپا،پژوهش کده تحقيقات ومطالعات ستراتيژيک،پژوهش هژده،تهران،۱۳۸۷،ص،۳۹.

[۲۱٤] سياست خارجي امنيتي ودفاعي اتحاديه اروپا بس از جنګ سرد،ص،۱۳۵.

د مارکسیزم لیننیزم د نظریې په چوکاټ کې اصلا بې طرفي هغه لاره او طریقه وه، چې د دولتونو د امپرالیستي نظام او بلاک څخه پرهیز وګړي او یوه وسیله وګرځي ترڅو د جنګ څخه پرهیز وکړي او سوله اختیار کړي.[۲۱۵]

شوروي په عمومي ډول د بې طرفۍ د سیاست موافق وو، چې ځینو هېوادونو په وړاندې يې بې طرف بلل لکه د سکانډېناوي هیوادونه، دبالکان هېوادونه،جاپان،فلپین، د شرقي اسیا هېوادونه او د لاتیني امریکا هېوادونه.

امریکا د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته په درې دلیله علاقه نه درلوده، چې د بې طرفۍ د ستراتیژۍ سره چې د دولتونو له خوا تعقیب کېدله خوښه کړي:

۱ـ شوروي د هغو دولتونو سیاست چې د غرب او د امریکا متعهد وي او بې طرفي يې تعقیب کوله چې د نظامي له نقطې نظره بې طرفي وه د شوروي له خوا استقبال کېده.

خو امریکا هغه د بې طرفۍ ستراتیژي چې د قدرت معادله يې د شوروي په ګټه بدلون ورکاوه د امریکا له خوا نه استقبالېده.

۲ – دا چې امریکا د دوهم نړیوال جنګ څخه وروسته د مجموعي امنیت تر نامه لاندې د دوه اړخه یاڅو اړخه د بېلا بېلو هېوادونو سره قرار دادونه منعقد کول، په حقیقت کې دا هېوادونه د امریکا د نفوذ له ساحې څخه بهر کېدل،امریکا اجازه نه درلوده چې د یادو شویو هېوادونو سره دفاعي امنیتي تړون لاسلیک کړي.

یو بې طرفه دولت نه باید د نظامي ائتلافونو سره یوځای شي،نه باید نظامي اډې نورو هېوادونو ته په اختیار کې ورکړي ځینې وخت د یادې ستراتیژۍ څخه د نور دولتونو د تجاوز او تیري عملیاتو د محدودولو په منظور ګټه اخیستل کیږي.

[۲۱۵] قوام،سیدعبدالعلی،۱۳۹۴،همغه اثر،ص،۱۶۱.

# دوولسم څپرکی

## د ساړه جنګ څخه ورسته د المان دفاعي امنيتي سياست

د المان د يووالي سره جوخت، د دوه قطبي سيستم د وېشلو او د ساړه جنګ څخه وروسته بدلونونه،د المان په بهرني امنيتي سياست کې يو لړتغيرات او بدلونونه وارد شول او د المان د اقتصادي توان ، نفوس او جيو پوليتيک جغرافيايي موقعيت په نظر کې نيولو سره د المان لپاره په اقتصادي ، سياسي،دفاعي او امنيتي ډګر کې په سيمه ييز او نړيواله کچه،د فعال رول زمينه برابره کړه.

د يوې فرضې په حيث ويلای شو، چې د ساړه جنګ څخه وروسته په سيمه ييزه او نړيواله کچه د بدلونونو د راتللو په نظر کې نيولو سره ( د بالکان بحران، په کويټ د عراق يرغل، د ۲۰۰۱ د سپتمبر د يولسمې بحران) المان اړ کړ چې په خپل سياسي ، امنيتي ،دفاعي او بهرني سياست کې بدلون راوړي، څو په سيمه ييز او نړيوال سياست کې فعاله ونډه واخلي ترڅو د نړيوالې سولې او امنيت د تامين لپاره ګټور ثابت شي.

اساسي پوښتنه دا ده، چې د ساړه جنګ وروسته د المان په دفاعي امنيتي بهرني سياست کې کوم بدلونونه وارد شوي دي؟

او د فرعي سوال په صفت ويلای شو د ساړه جنګ څخه وروسته ، کومو عناصرود المان په بهرني امنيتي دفاعي سياست کې ، ډېر اغيز درلودلای دی؟

له يوې خوا د المان هېواد د جيوپوليتيک، جيو ستراتيژيک او جيو ايکانوميک ،موقعيت له نظره په نظامي تړونونو کې او له بله اړخه په سيمه ييزو او نړيوالو سازمانونو کې ستر رول او نقش لري.

د المان د اساسي قانون ۲۴ ماده حکم کوي چې المان بايد په ټوليز امنيتي سيستم کې فعاله برخه ولري ترڅو په اروپا او نړيواله کچه اوږد مهاله سوله ييز نظم تامين شي.

هغه څه چې د المان د يوالي وروسته په۱۹۹۹ م کال ، د ناټو په يرغل کې د المان برخه اخيستل ياديږي، هغه د صربستان په ضد پلان و، چې موخه يې د نړيوالې سولې تامينول وو.

المان د ساړه جنګ وروسته په اروپايي اتحاديه، ناټو او د ملل متحد په سازمان کې چې سيمه يېز او بين المللي سازمانونه دي، خپل سوله يېز دين ادا کړی دی .

چې له امله يې المان اقتصادي توان او د جيوپوليټيک موقعيت په نظر کې نيولو سره ياد سياست خپل کړی دی.

هغه کورني عناصر چې د المان په دفاعي امنيتي سياست باندې اغيز ناک دي، له جملې څخه يې د دوو عناصرو نومونو د اخېستلو وړ دي.

هغه دوه عناصر چې د المان په بهرني امنيتي دفاعي سياست کې ډېر اغيز لري ،په لاندې ډول دي:

۱ـ د ډېر مسووليت اصل.

۲ـ ستراتيژيک فرهنګ.

**۱ ـ د ډېر مسووليت اصل:**

که څه هم المان د ساړه جنګ وروسته د ناټو ،اروپايي اتحادیې او د ملل متحد په چوکاټ کې خپل امنيتي دفاعي سياست ټاکي، خو په ورته وخت کې المان د يوه نوي او تازه دريځ په لټه کې دی.

که څه هم د ساړه جنګ څخه وروسته د المان بهرنی سياست په درې ستونه او بنسټه ولاړ دی چې عبارت دي له؛فرااتلانتيکي ميلان يعنې د امريکا د متحده ايالاتو سره همغږي لري،د اروپايي اتحادیې سره همغږي ، دشرقي هېوادونو لور ته ميلان .

خو بيا هم يو تازه اصل ته المان ځانګړې پاملرنه کړې ده، چې د ډېر مسووليت اصل دی چې تلاش او کوښښ کېږي څو المان په نړيوال قدرت بدل شي.

د دوه مفهومونو په نظر کې نيول سره چې د ډېر قدرت او ډېر مسووليت مفهوم دی، په دې اړه مهم اصل دی.

د المان بهرنی سياست يو سلسله زياتې وسيلې لري، چې د خپل بهرني سياست د پلي کولو لپاره يې په کار اچوي.

د بېلګې په ډول ډیپلوماسي او بهرني کومکونه چې د فرهنګي سیاست څخه يې بيا د نظامي ځواک تر کارولو پورې اختيار کړی دی، څو په نړیواله سوله او امنيت کې خپل رول ولوبوي.

په افغانستان کې د جرمني ځواکونو شتون يې يوه بېلګه ده، د نړۍ په بحراني ساحاتو کې د المان د نظامي ځواکونو شتون چې ښې بېلګې يې عبارت دي له، په ۲۰۱۱ م کال کې په لبيا کې،په ۲۰۱۳م کال په مالي کې د فرانسې سره د کومک په منظور او په ۲۰۱٦م کال په سوريه کې د داعش په خلاف د يادولو وړ دي.

المان په پورتينو نظامي ماموريتونو سربېره د پرمختللې سلاح د صادرونکو هېوادونو په ليکه کې هم شمېرل کېږي.

د المان د اردو رول د ساړه جنګ په دوران کې يو دفاعي نقش وو، چې دغرب او شرق په کړکيچ کې بوخت وو،د جنګ څخه د مخنيوي او د بهرنۍ مداخلې صلاحيت يې نه درلود.

خو دالمان د ديوال د ړنګېدلو سره، شرايطو په چټک ډول بدلون وموند، د المان د اردو ګډون په نړيوالو عملياتو کې المان ته دا حق ورکوي چې د ډېر مسووليت دنده په غاړه واخلي.

ځکه څو لسيزې د امريکا او ناټو له خوا يو مصرف کوونکی هېواد ګڼل کېده، چې امينت يې په نورو ځواکونو پورې تړی وو.

چې اوس يې الماني سياسيون د دغه هېواد د اردو په بين المللي قضاياو کې يو رکن ګڼي.

**۲ـ ستراتيژيک فرهنګ:**

د المان ستراتيژيک فرهنګ د دوهم نړيوال جنګ څخه وروسته د دوه فکره مکتب څخه اخېستل شوی دی(نور هيڅکله جنګ نه)او (په يوازې ډول هيڅکله جنګ نه)ياد فرهنګ د يو سلسله باورونو ليدلورونو او د رويې ټولګه ده، چې د نظامي ځواک او د قهرۍ قوې څخه د ګټې اخېستنې په هکله وه.

که څه هم المان ته د دوهم نړيوال جنګ وروسته د يوه مدني ځواک په سترګه کتل کېدل ،يعنې په نړيوال ډګر کې به نور د سردرد جوړونکې هېواد نه وي، چې دغه ډول تفکر ته د دوهم نړيوال جنګ څخه وروسته د المان په بهرني سياست کې ځای ورکړل شوی وو.

د ساړه جنګ وروسته د نړیوال تروریزم،د ټولیزې وژنې وړتیا لرونکې اسلحې پیداښت او د ګډوالۍ بحران، درې پدیدې وې چې د اروپا امنیت ته ستر ګواښ دي.

ځکه د نړیوالو شخصیتونو د المان څخه غوښتنه دا وه، چې په نړیوال او بین المللي ډګر کې نظامي کومک وکړي همدا مسئله د دې لامل شوه چې د (هیڅکه جنګ نه او هیڅکله یوازې جنګ نه )د مفاهیمو سره د نظر اختلاف په څرګند ډول ښکاره شو.

د اکراین،عراق او سوریې د پېښو په هکله د المان بهرنی سیاست ،د دفاعي سیاست څخه چې د المان ستراتیژیک فرهنګ دی ، د نظامي جګړې خوا ته حرکت وکړ.

**اول : هغه بهرني عناصر چې د المان په امنیتي دفاعي سیاست اغیز لري:**

د دوه قطبي نظام ړنګېدل د المان په دفاعي امنیتي سیاست کې د بدلون زمینه مساعده کړه ،چې د المان د اقتصادي توان او جیوپولیټیک موقعیت لومړنی مساعد کوونکی لامل بلل کیږي، چې المان یې د خپلو ملي ګټو او موخو ته د نږدې کېدلو لپاره هڅه کوي.

د بالکان بحران د (کوژو جګړه)د عراق یرغل په کویټ او د ۲۰۰۱ میلادي کال د سپټمبر د یولسمې بحران د نورو بهرنیو عناصرو په شمول د المان په بهرني امنیتي دفاعي سیاست کې اغیز درلودلی دی چې المان ته یې په پای کې د ډېر مسوولیت او د ستراتیژیک فرهنګ په نظر کې نیولو سره، په نړیواله سوله او امنیت کې په نظامي شکل ونډه اخېستې ده.

المان د خپل اساسي قانون د څلور ویشتمې مادې په تسجیل سره ، خپل بهرنی سیاست د نړۍ د پېښو موافق چمتو کړ.

د بالکان د کوژو په بحران کې المان وښودله چې؛ نور د ساړه جنګ د دوران په وخت کې چې یوازې المان اقتصادي رول درلود،نور د قهریه قوې څخه کار اخېستل غواړي.

د منځني ختیځ د کډوالو په بحران کې؛ د افریقا د شمال جنجال،د ښي لاسو ګوندونو پراختیا، د اکراین بحران او د کریمیا د شبه جزیرې چې د اروپا په امنیتي بحران کې یې رول لرلی دی ، دا

خپله هم د المان لپاره د سر درد جوړونکی حالت دی او د المان اړیکې له روسیې سره اغیزمنې کولای شي.[۲۱٦-۲۱۷]

المان په پرمختیایي ډول د نړیوالې سولې ،امنیت،دیموکراسي او بشری حقوقو په هکله همکاري کوي چې د فقر په راکمولو او د ډیموکراسۍ په تقویه کولو کې مهم رول لري.

المان د اروپایي اتحادیې د بنسټ ایښودونکو هیوادونو له جملې څخه دی او د اروپایي اتحادیې د یووالي سره سخت ملاتړی دی.

المان په ناټو کې په ۱۹۵۵ میلادي کال غړیتوب واخیست، په ملل متحد کې یې په ۱۹۷۳ م کال غړیتوب ترلاسه کړ.

په اروپایي اتحادیې کې پنځه سوه اته میلیونه نفوس ژوند کوي چې اته ویشت هیوادونه تشکیلوي.

یاد هیوادونه په ۲۴ بېلابېلو ژبو خبرې کوي او په څلور میلیونه کیلو متره مربع مساحت کې ژوند کوي.

غیر خالص کورنی تولید یې تر امریکازیات دی چې ۹۲،۱۳ بیلیونه یورو ته رسیږي.

د نړۍ ۴،۱۵ فیصده صادرات او ۴،۱٦ فیصده واردات یې په لاس کې دي.

المان د اروپایي اتحادیې د یوه اساسي هیواد په حیث، غواړي چې په یوه تازه نقش کې څرګند شي.

د المان مخالفت د امریکا د یرغل سره چې په عراق یې وکړ او د بلې خوا په نړیواله کچه د المان څو اړخه سیاست چې د ۱۹۹۵ م کال راهیسې یې له امله دواړه جرمني هیوادونه متحد شول د المان په بهرني سیاست کې د امریکا ستر او ځانګړی ځای شته.

---

[۲۱٦] کیوان حسینی،سید اصغر وسید محمد علوی زاده ، مقدمه برروند تحول ومطالعات امنیتی از جنگ جهانی دوم تا جهان بعد از یازده سپتمبر،تهران،مرکز مطالعات راه بردی ډیپلوماسی دفاعی،۱۳۹۲،ص،۹۹-۱۰۲.

[۲۱۷] هرسیج،حسن ومریم سفیدی،سیاست خارجی المان در دو بحران افغانستان وعراق،فصلنامه مطالعات خاور میانه،سال شانزده ، شماره یک،۱۳۸۸.

**دوهم : د المان د بهرني سیاست دېرش ځانګړتیاوې .**

۱ـ د المان د ډیپلوماتانوډېر عمر د صادراتو په ډېرولو کې تېر شو.

۲ـ اته وېشت کاله د جرمني ډیپلوماتانو د برلین د دیوال په ړنګېدلو کې تېر کړل.

۳ـ د المان د بهرني سیاست موخې د المان د خلکو د شتمنۍ ډېروالی دی.

۴ـ د بهرني سیاست میلان د خلکو د غوښتنو په اساس دی.

۵ـ د نړۍ ځلورم اقتصاد او ۰،۵ فیصده د تورم نرخ لري، چې معنی یې دا ده د نرخونو اندازه ثابته او تر ټولو په ټیټه کچه قرار لري او د بېکارۍ فیصدي یې ډېره لږ ده.

٦ـ ۴۱ فیصده تولیدات یې صادرېږي.

۷ـ په نړۍ کې تر ټولو ستر د پانګې صادرونکی هېواد دی.

۸ـ په لوړه کچه سوداګریز هېواد دی، په کال کې ۲۵۸ میلیارده ډالره سوداګري لري.

۹ـ د سړي سر کلني عواید یې ۴۸،۵ ډالره دی.

۱۰ـ ۷۰ فیصده صادرات یې اروپایې هېوادونو ته ،۵،٦ فیصده امریکاته او۵،۵ فیصده چین ته صادروي.

۱۱ـ کورني ناخالص تولیدات یې ۳۹۱۱ میلیارده ډالره دي.

۱۲ـ ۴۴ میلیارده ډالره نظامي بودجه لري چې تر عربستان لږ ده.

۱۳ـ ۱۵۰۰ میلیارده ډالر صادرات لري.

۱۴ـ په نړیواله کچه د چاپیریال ساتنې شپږمه درجه هېواد دی.

۱۵ـ ۲۷ فیصده برېښنا یې د انرژۍ د نورو سرچینوڅخه تامینیږي.

۱٦ـ په پوره اندازه د کار نېرو یا بشري سرچینې لري،٦۸ فیصده د کار نېرو یې په خدماتو کې مصروفه ده ، ۳۰ فیصده په صنعت او دوه فیصده په کرنه کې مصروف ده.

۱۷ـ ۸۲ میلیونه نفوس لري او ۴۳ میلیونه د کار نېرو او ۸ میلیونه بهرني وګړي لري.

۱۸ـ د اروپايي اتحاديې سیاست ته ژمن دی.

۱۹ـ ۱۸۰ تنه زره اردو لري، په بهرنیو هېوادونو کې یې اردو یوازې د سولې د ساتندوی په حیث اوسیږي.

۲۰ـ د جرمني په ٦۰ ښارونو کې د بهرنیو چارو د وزیر له خوا جلسې جوړیږي او د سیمې د خلکو څخه د مشورو په ترڅ کې لارښوونه ترلاسه کیږي.

۲۱ـ د بهرني سیاست د متخصیصینواو مسوولینو په ګډون مناظره او جلسې جوړوي چې د زده کړې او ټرینینګ په منظور دغه چارې ترسره کیږي.

۲۲ـ د سرحداتو بهر د المان هېواد نظامي مداخله نه شي کولای، چې دا د المان د خلکو پریکړه ده.

۲۳ـ پارلمان یې اساسي نهاد دی، چې بهرنی سیاست غوره کوی او په هکله یې تصمیم نیسي.

۲۴ـ د امریکا، چین او روسیې د خاصې پاملرنې سره، المان ټول تمرکز په اروپايي اتحاديې باندې کړی دی.

۲۵ـ د حقوقي له لارې د سیمه ییزو او نړیوالو کړکیچونو حل غواړي.

۲٦ـ قوانینو او بین المللي سازمانونو ته احترام لري.

۲۷ـ د ټولو هېوادنو سره د همغږۍ او اجماع د رامنځته کولو طرفدار دی.

۲۸ـ د نورو هېوادونو په کورنیو چارو کې هیڅ ډول لاسوهنه نه کوي.

۲۹ـ د تولیداتو یو ښه صنعتي مډل یې رامنځته کړی دی.

۳۰ـ په دائمي ډول همغږي او اجماع ، د حکومت سره، خصوصي سکټور او ګوندونو سره لري.

المان د امریکې د نړدې متحدینو ،د قوي اقتصاد لرونکي او په اروپایي اتحادیې باندې اغیز لرونکی هېواد.

**دریېیم : د المان د بهرني سیاست اساسي اصول په لاندې ډول دي:**

۱ـ د اروپایي هېوادونو سره همغږي، چې د اروپا د خنډونو په مقابل کې ځواب ورکونکی دی.

۲ـ د غرب لیبرالیستي ارزښتونه چې د سولې په چوکاټ کې تعریف شوي دي، په دې معنی چې المان دځینو بحرانونو په وخت کې دا توان لري چې د خلع سلاح او د حاکمیت په چارو کې اقدام وکړي.

د بشر د حقوقو مدافع دی، د ډیمو کراسۍ طرفداره او د خطرونو په لږولو کې ځانګړی رول لري، د هر قوم نژاد، جنس،مذهب او تفکر درلودونکو ته په یو ډول احترام لري.

**۳ـ د فرا اتلانتیک اړیکې:**

د المان د بهرني سیاست اساسي جوړښت، د امریکا سره اړیکې تشکیلوي، دا په داسې حال کې ده چې المان د اروپایي اتحادیې اساسي غړی هم دی.

امریکا د المان مهم ملګری هېواد دی، چې د سولې،ثبات،ټېنګښت ، امنیت ، ډیموکراسي ، عدالت، دبشر حقوق ، د اقتصاد بازار هغه ساحات دي چې جرمني په ژور ډول د امریکاسره موافق او هم نظره دی.

# دیارلسم څپرکی

## د فرانسې خارجي سياست

په وروستۍ لسیزه کې د فرانسې د بهرني سياست ځینې اصول شته، چې د فرانسوي سیاسیونو له خوا ورباندې توافق شوی دی چې په لاندې ډول دي:

### ۱ـ نړیوال رسالت:

د فرانسې سیاسیون باورمند دي چې یو نړیوال رسالت لري چې د فرانسې د ۱۷۸۹ میلادي کال انقلاب چې سیاسي او فرهنګي پیغام یې نړۍ ته درلود، ځکه نو د همدغه انقلاب په مټ ځینې پیغامونه نړیوالو ته لري دبېلګې په ډول:

دبشر د حقوقو اعلامیه او د ډیموکراتیکو نهادونو ایجاد چې فرانسه یې یو تمدن جوړونکی هېواد د ۱۷۸۹ م راهیسې نړیوالو ته معرفي کړې ده ځکه نو د فرانسې خلک د نړیوالو په وړاندې یو رسالت لري چې د فرانسې د انقلاب ارزښتونه د فرانسې په مشرۍ نړیوالوته وړاندې کړي.

### ۲ـ په نړیوال نظام کې د فرانسې د موقف لوړوالی:

فرانسه کوښښ کوي چې خپل موقف په بین المللي سطحه لوړ کړي چې دا کار د فرانسې د غړیتوب له لارې چې د امنیت په شورا کې یې لري باید استفاده وکړي.

د خپلو هغو اړیکو له لارې چې د عربي هېوادونو سره یې لري، او یایې د خپلو پخوانیو عربي مستعمراتو سره اړیکې شته ،په هستوي سلاح اتکا،د بشر د حقوقو څخه دفاع، ټول هغه وسایل دي چې فرانسه د نړۍ د ابر ځواکونو په جمله کې حسابولی شي.

خو نن ورځ فرانسه د وسایلو او اهدافو د نه همغږۍ له امله د ختڼ سره مخامخ ده.

په همدې علت نن فرانسه یوازې غواړي چې د اروپایي اتحادیې له لارې خپلو موخو ته ورسیږي،چې البته په دې هکله د یو لړ ستونزو سره مخامخ ده لکه د اروپایي اتحایې پراختیا د شرقي اروپا هېوادونو اړخ ته چې فرانسه ورسره موافقه نه ده، چې اروپایي اتحادیه د شرقي اروپا د هېوادونو اړخ ته پراختیا ومومي.

د المان بارز رول په اروپايي اتحاديه کې ، په ځانګړې ډول د شرقي اروپا په هېوادونو کې او د ۲۰۰۵ م کال د اساسي قانون په ريفرنډم کې د فرانسې د دولت ماته، هغه ستونزې دي چې د فرانسې د ابر ځواکۍ په مخ کې ډب دي.

**۳ـ څو اړخ لرونکی سیاست:**

د فرانسې سیاسیون باوري دي چې دبین المللي ستونزو په وړاندې،په یوازې ډول مبارزه کول کومه مثبته پایله نه شي درلودلای، باید څو اړخه سیاست د څو هېوادونو له خوا ولوبول شي.

چې یوازینې لار په دې ترڅ کې د ملل متحد د امنیت د شورا د لوري اقدام کول دي چې اغیزناک ثابت کېږي.

**۴ـ د نړیوال نظام د څو قطبي کېدلو اړتیا:**

بین المللي نظام باید د سوداګریزو مرکزونو اختلافونه په رسمیت وپیژني ،باید چې سیمه یېز او اقتصادي قطبونو ته هم احترام ولري داسې نه، چې یو نظام یوازې یو سوداګریز مرکز ته پراختیا ورکړي.

دبېلګې په ډول د اقتصادي قطبونو په حیث لکه امریکا، اروپایي اتحادیه ، چین ،هند او د اسه ان هېوادونه یادولای شو چې په بین المللي نظام کې د یوه مستقل سوداګریز مرکز په حیث خپل رول ولوبوي.

**د منځني ختیځ د هېوادونو په وړاندې د فرانسې بهرنی سیاست:**

لکه څنګه چې د منځني ختیځ، د اروپایي اتحادیې په ګاونډیتوب کې موقعیت لري د منځني ختیځ سیاسي بدلونونه په اروپا باندې مستقیا اغیز لري.

طبیعي ده چې فرانسه د یادې سیمې بدلونونو ته ځانګړې پاملرنه کوي له همدې کبله ده چې د ځینو مسائیلو په هکله چې په منځني ختیځ کې پېښېږي، فرانسې له ځانه حساسیت ښودلی دی.

لکه د انرژي تامين،د انرژي امنيت،دسلاح دپلورلو لپاره د مارکېټ پيدا کول، فرهنګي نفوذ او هم په فرانسه کې د لس فيصده مسلمانانو شتون،فرانسه اړ کړې ده چې د منځني ختيځ جيو پوليټيک بدلونونو ته حساسه اوسي.

د عربو او اسرائيلو دشپږ ورځنۍ جګړې په دوام، جنرال دو ګل د فرانسې د وخت جمهور رييس د منځني ختيځ په سياست کې يو اساسي بدلون راوست، په هغه مقطعه کې چې فرانسې د الجزايز د هېواد د استقلال وروسته کوم تشويش نه درلود،يعني عربو د فرانسې سره کوم اختلاف نه درلود، فرانسه و عربي هېوادونو ته د يوې انرژۍ د سرچينې او دسلاح د مارکېټ په سترګه کتل.

د عربو په آند فرانسه په هغه وخت کې د اسرائيلو پلوي ښکارېده ، فرانسې خپلې اړيکې د افريقا د شمالي هېوادونو او هم د خليج د فارس د هېوادونو سره ټېنګې کړې.

فرانسه د اسرائيلو د سياسي ثبات غوښتونکې ده خو د فلسطين د دولت د تشکيل سره هم موافق هېواد دی او يو نرم سياست په دې هکله لري.

په منځني ختيځ کې هر وخت د بحران او بې ثباتۍ غوښتونکی هېواد نه دی چې بېلګه يې د عراق د ۲۰۰۳ م کال د امريکا د يرغل سره د فرانسې مخالفت وو او د ايران د اقتصادي تحريم طرفداري يې کړې ده دا په داسې حال کې ده چې امريکا د ايران د نظامي يرغل غوښتونکې ده خو فرانسه په سيمه کې د تشدد د کمولو په لټه کې ده.

خو دسرکوزي سياست چې د فرانسې د وخت رېيس جمهور وو ،امريکا ته دنږديوالي پاليسي او د اسلامي ارزښتونو په خلاف يې دريځ درلود،د منځني ختيځ په هکله يې داسې نظر درلود چې د نړيوالو ګواښونو دپېداېښت او ازماېښت ځای دی.

تروريزم، بنسټ پالنه ،کورني کړکيچونه، د هستوي سلاح پراختيا، د منځني ختيځ د ګواښونو له جملې څخه دي.

د يهوديانو د دريځ څخه يې هم ملاتړ کاوه په همدې اساس هغه ٦۰۰ زره يهوديان چې په فرانسه کې مېشت دي د سرکوزي څخه ملاتړ کوي.

د سرکوزي پالیسي د اسلامي ارزښتونو په وړاندې هر وخت منفي وه چې څو بېلګې یې په لاندې ډول د یادولو وړ دي:
۱ـ د مسلمانو ښځو د چادرې ا وحجاب د اغوستلو خلاف وو.
۲ـ د الجزایز د فوځ دیرغل سره ځکه موافق وو ترڅو په الجزایر کې اسلام خوښوونکي غورځنګ، سیاسي قدرت ترلاسه نه کړي.
۳ـ هغه ګډوال چې د افریقا په شمالي مسلمانانو یې اړه درلوده، فرانسې ته یې ګډوالي منع کړه.
۴ـ د ترکیې د شمولیت سره په اروپایي اتحادیه کې مخالف وو.
له همدې کبله سرکوزی یې د اسلام څخه په وېره تورن کړ،د فرانسې اوسنی جمهور ریېس امانویل مکرون چې په اروپایي اتحادیه کې د فرانسې د شتون سخت طرفدار دی، د المان سره دفرانسې د نېکې دوستې او اړیکو طرفدار شخص دی.
په روسیې باندې د تحریم او قیوداتو د وضعې سره موافق دی تر هغه وخته چې روسیې خپل چلند ته بدلون نه وي ورکړی.
مکرون نظر لري، چې روسیه ټول بین المللي قوانین تر پښو لاندې کوي چې ښه بېلګه یې د کریمیا ضمیمه کول د مسکو سره دي اوهمدارنګه د اوکراین بحران یې بله بېلګه ده.
د سوریې د جمهور ریېس بشار الاسد د محاکمې سره موافق دی.
د ناټو دنظامي بودجې په هکله وایي چې تر ۲۰۲۵ م کال پورې به فرانسه خپل دوه فیصده د ناخالصو تولیداتو عواید ناټو ته ورکوي.
د فرانسې د مسلمانانو تر څار لاندې نیول یې، ځکه خوښ دي، چې د بنسټ پالنې په مخنیوي کې یې اړین بللی دی.

**د فرانسې بهرنی سیاست په دوو برخو کې د تشریح وړ دی:**

۱ـ د اټوم بم ترجوړولو پورې داسرائیلو د دولت تاسیس.
۲ـ په عراق باندې د امریکا د ۲۰۰۳ م کال یرغل.

**۱ـ فرا نسه او د صیهونیستي رژیم ټېنګښت:**

فرانسه له ۱۹۴۸ـ۱۹۷۰ م کال پورې د اسرائیلو د دولت د تاسیس څخه پیل بیا د اسرائیلو د اټوم بم ترجوړولو پورې، د اسرائیلو د دولت سره مرسته کوله، داسرائیلو د دولت په ټېنګښت کې په لومړیو شلو کلونو کې ځانګړی رول درلود او د امریکا د سیاست سره یې په همغږي فعالیت کاوه.

چې دا حقيقت روښانه کوي چې په هغه وخت کې فرانسه د امريکا د بهرني سياست تر اغيز لاندې راغلې وه.

د همدغه سياست په وجه فرانسې نه شواى کولاى چې د مديترانې د حوزې هېوادونو په منځ کې همغږي رامنځته کړي.

فرانسې د مديتراني د حوزې د هېوادونو دفرهنگ په نامه دا فعاليت له هغه وخته په ياد مورد کې درلود، چې د فرانسې تر ملاتړ لاندې و، تر اوسه يې فرانسوي ژبې او زده کړو لپاره زمينه مساعده کړې ده چې د فرهنگ د نفوذ يوه لاره ده چې په لاندې هېوادونو کې د فرانسې له خوا همدغه پاليسي د پلي کېدو په حال کې ده، دبېلگې په ډول سوريه، لبنان،مراکش،مصر،الجزاير او تيونس.

فرانسه د اروپايي اتحاديې د سياست څخه په منځني ختيځ کې ملاتړ کوي، چې دامريکا سياست څخه پيروي او د اسرائيلو د دولت ملاتړ دی چې دا مسئله د دې لامل شوې چې دمنځني ختيځ عربي هېوادونه دفرانسې سره منفي عکس العمل وښيي.

د دوهم نړيوال جنگ وروسته په عربي هېوادونو کې د امريکا نفوذ تر هغې کچې ډېر وو چې فرانسې هيڅ ونه کولاى شول چې يو ستراتيژيک عربي هېواد پيدا کړي او د فرانسې هغه شعار په منځني ختيځ کې هيڅ عملي نه شو چې ويل يې (ورورولي،برابروالي،ازادي).

**۲ـ د فرانسه موقف او د امريکا يرغل په ۲۰۰۳ م کال د عراق په وړاندې:**

دفرانسې دوخت جمهور رييس ژاک شېراک د جمهوري رياست په دوره کې(۱۹۹۵ـ۲۰۰۷) د فلسطيني دولت د تشکيل طرفداره وو همدغه دريځ وو چې فرانسې د عراق په يرغل کې د انگليستان او امريکا د اسرار سره، گډون ونه کړ.

فرانسې،المان او روسيې په گډه دعراق حمله په ملل متحد کې وغندله چې د امريکا د قهر سبب شوه.

فرانسه د سايکس ـ پيکو د تړون د وارثانو له جملې څخه ده.

د سایکس ـ پیکو تړون یو مخفي او پټ لاسلیک شوی هوکړه لیک وو چې په ۱۹۱٦ م کال کې د فرانسې او انګلیسان له خوا د کوچنۍ اسیا د هېوادونو په هکله چې په عثماني ترکیه پورې یې اړه درلوده، لاسلیک کړ.

د منځني ختیځ ، شمالي افریقا هېوادونه په کې شامل وو چې د فرانسې، انګلیستان او روسیې ترمنځ ووېشل شول یاد هېوادونه عبارت دي له سوریه،عراق،لبنان،فلسطین،مصر اودعربو متحده ایالات.

د لومړي نړیوال جنګ څخه وروسته د ګډو ګټو سره انګلیستان دفرانسې دقدرت د کنټرول په لټه کې وو، د انګلیسان او فرانسې اړیکې د ۱۸۱۵ م کال راهیسې هر وخت لوړې او ژورې درلودې د فرانسې د ناپیلیون بناپارت د ماتې وروسته چې د واټر لو په جنګ کې یې ماتې وخوړه،چې د ناپیلیون او انګلیسیانو جګړه وه،ناپیلیون یې تبعید کړ او فرانسه اړه شوه چې خساره هم ورکړي،په پایله کې بریتانویانو د درې کالو لپاره په فرانسه کې اوسیدل او دفرانسې قدرت یې کنټرول کولو څو پرمختیا ونه کړي.

وروسته له ۱۸۳۰ م کال څخه فرانسې یو ځل بیا له لاسه ورکړی قدرت بېرته ترلاسه کړ، ترڅو چې په ۱۸٦٢ میلادي کال فرانسې په مکسیکو یرغل وکړ او انګلیس یې یو وار بیا په تشویش کې کړ.

خو په ۱۸۷۰ م کال کې یې د پروس هېواد څخه ماتې وخوړه چې په پایله کې برتانیه په اروپا کې لومړی قدرت او فرانسې دوهم ځای خپل کړ.

له ۱۸۷۰ـ۱۹۱۴ میلادي کال پورې چې لومړی نړیوال جنګ پیل کېده، برتانیې او فرانسې د یو بل په وړاندې خاص منفي دریځ نه درلود په لومړي نړیوال جنګ کې برتانیه او فرانسه د المان په وړاندې جبهه ونېوله.

د لومړي نړیوال جنګ وروسته فرانسې د المان څخه ډېر زیاته خساره غوښته خو برتانیې په المان باندې د زیات فشار راوړلو طرفداره نه وه.

په حقیقت کې برتانیه هر وخت د المان څخه دیوې وسیلې په حیث د فرانسې په وړاندې ګټه اخېسته اود فرانسې د ډېرې ځواکمنتیا طرفداره نه وو.

د لومړي او دوهم نړیوالو جنگونو په ترڅ کې برتانیه او فرانسه دواړو د کمونیزم په خلاف دریځ خپل کړی وو، د ازاد اقتصادي سیستم او لیبرالیزم ، خصوصي سکتور ملاتړي وو،یعنې د المان او د کمونیزم په هکله، برتانیه د المان د کنټرول او یا د فرانسې د قدرت د مهار په لټه کې وو.

انگلیس او فرانسې په هرډول شرایطو کې د یو بل په خلاف دریځ ته تمایل ښودلی دی دا ځکه چې برتانیه هر وخت خپل هېواد لومړنی ابر ځواک په اروپا کې بللی او نورو هېوادونو ته یې دا حق نه دی ورکړی چې یو ابر ځواک شي.

په دوهم نړیوال جنگ کې چې برتانیه او فرانسه دواړه د شوروي اتحاد سره متفق وو ، د فرانسې پاچاهان او کورنۍ یې ، د فرانسې د اشغال په وخت کې چې د المان له خوا اشغال شوې وه ، انگلیستان ته وتښتېدل.

د شوروي اتحاد تر پاشل کېدلو پورې په ۱۹۹۲ م کال ، برتانیه او فرانسه د امریکا سره د شوروی اتحاد په ضد متحد شول.

د اروپا اقتصادي ټولنه چې د شپږو اروپایي هېوادونو څخه په ۱۹۵٦ م کال تشکیله شوه،برتانیې او فرانسې هم په کې غړیتوب درلودچې په حقیقت کې د اروپایي اتحادیې بنسټ یې کېښود.

په ۱۹۹۳ م کال کې د ماسټریخت د تړون په اساس اروپایي اتحادیه هم تشکیله شوه چې اوس ۲۸ غړي لري او ۱۷ غړي یې گډ پولي واحد لري چې یورو نومېږي.

خو برتانیه د یورو پیسې تراوسه نه دي منلي او سترلنگ پاونډ یې د پیسو تجارتي واحد دی همدغه مسئله د برتانیې او فرانسې د کړکیچونو له مسئلو څخه ده.

برتانیه د اروپایي اردو د تشکیلېدو سره ځکه مخالفت ښکار ه کوي چې د ناټو د کمزروتیا سبب کېږي،د امریکا درول د کمېدلو او په پایله کې د المان او فرانسې د اقتدار سبب کېږي چې په طبیعي ډول د امریکا رول په اروپا کې راښکته کېږي.

خو دسویس کانال په جنگ کې بیا انگلیستان او فرانسه د اسرائیلو په همغږۍ سره په ۱۹۵٦ م کال کې په یوه همغږۍ سره په مصر د کمانډویي سرتېرو له خوا په سویس کانال باندې یرغل وکړ،چې اسرائیلو په یاده جگړه کې دسینا دښته له مخکې اشغال کړې وه.

د یرغل علت دا وو چې د مصر د وخت د جمهور رییس جمال عبدالناصر په امر ، دسویس کانال ملي اعلان کړ، برتانیې او فرانسې ته یې نوره اجازه نه ورکوله چې د سویس په کانال کې مداخله وکړي او عایدات یې خپلو مربوطه هېوادونو ته ولېږدوي خو، د برتانیې او فرانسې دا یرغل د ملل متحد، امریکا او شوروي اتحاد له خوا وغندل شو د برتانیې او فرانسې سرتېري یې د سیویس کانال څخه ووېستل.

په ۱۹۴۰ م کال کې فرانسه د نازي هټلر له خوا اشغال شوه او د مارشال پتین له خوا د مخاصمې د ترک هوکړه لیک لاسلیک شو او تر ۱۹۴۴ م کال پورې فرانسه د هټلر د ځواکونو په لاس کې وه.

د فرانسې وروستۍ مستعمره د الجزایر هېواد وو چې د دوهم نړیوال جنگ څخه وروسته یې په ۱۹۶۱ م کال کې یې خپله ازادي د فرانسې څخه واخېسته.[۲۱۸]

**د فرانسې بهرنی سیاست د امریکا په وړاندې:**

فرانسه هر وخت امریکا ته لکه دچین هېواد،د یو ستراتیژیک ملگري په سترگه گوري خو د فرانسې هېواد په خپله هم ځینې معیارونه لري چې د فرانسې دولت یې د ابر ځواک خوا ته ډاډمن کړی، نو له همدې امله فرانسه تل د امریکا د یو قطبي کېدلو سره مخالف دریځ لري.

فرانسه د خپل ۱۷۸۹ م کال د لوی انقلاب په مټ دا ویاړ ځان ته ورکوي چې دلیبرالیزم د فلسفې نوښتگر هېواد دی.

د همدې انقلاب زېږنده وه چې په امریکا او ټوله اروپا کې یې د انگلیستان د ابر ځواکۍ په وړاندې مقاومت وښود او د یادو هېوادونو سیاسي رژیمونه یې د استبدادۍ او مطلقه پاچاهۍ څخه د دیموکراسۍ لور ته رهنمایي کړل.

د امریکا او فرانسې اړیکې د ۱۷۷۶ م کال راهیسې چې امریکا خپله ازادي د برتانیه څخه واخېسته، فرانسې د امریکا سره نېکې اړیکې درلودلې دي.

فرانسې د امریکا سره په ۱۷۸۷ م کال چې دامریکې د استقلال څخه پوره لس کال تېرېږي یو تړون لاسلیک کړ چې د امریکې د انقلاب له جنگ څخه به ملاتړ کوي.

---

[۲۱۸] جعفري،عباس،گېتا شناسی نوین کشورها،چاپ سوم،انتشارات ، گېتاشناسي،تهران،۱۳۸۷،ص،۹۹.

چې ښه بېلګه يې د ازادۍ د مجسمې د ډالۍ ورکول وو چې تر اوسه په امريکا کې د ازادۍ د سمبول په حيث شتون لري،چې په ۱۸۸٦ م کال کې يې د امريکا داستقلال د سل کلنېزې نمانځنې په مراسمو کې ياد هېواد ته ډالۍ کړه.

د امريکا د ازادۍ د سمبول مجسمه د نيو يارک ښار د ازادۍ په جزيره کې اېښودل شوې ده، د مسو په مټ ملمح کاري شوي چې ۴٦ متره لوړوالی لرى او د يوه فرانسوي انجينر په واسطه د لسو کالو په اږدو کې له ۱۸۷۵ م ـ ۱۸۸۵ م کال پورې جوړه شوې ده.

ديادې مجسمې په نقشه او جوړولو کې د فرانسې د ايفل برج د جوړونکي انجينر همکاري هم ورسره وه.

د مانش تونل چې د انګليستان او فرانسې ترمنځ د بحر تر ځمکې لاندې جوړ شوی دی، چې دوه پنځوس کيلو متره اوږوالی لري او په ۱۹۹۴ م کال ګټې اخيستنې ته چمتو شو، د ياد تونل د جوړېدو لګښت لس ميليارده ډالر دی.

جبل الطارق چې د طارق د غره په نامه مشهور دی دا مسير يا د بېړيو د تګ راتګ لنډه لاره چې د مديترانې بحر د اطلس د بحر سره نښلوي ، اسپانيه او مراکش يې سره وصل کړي دي،۱۳ کيلو متره عرض لري او دنړۍ نيمې بحري بېړۍ د جبل الطارق له لارې څخه تېرېږي.

په ۱۷۱۳ م کال کې د جبل الطارق دسيمې ملکيت د تل لپاره برتانيه ته ورکړل شو خو د هسپانيه دولت تر اوسه پورې د جبل الطارق د ملکيت دعوا لري.

جبل الطارق د مراکش هېواد چې په افريقا کې دی، د هسپانيې د هېواد سره چې په اروپا کې موقعيت لري، سره نښلوي.

عرض يې ۱۳ کيلو متره ،عمق يې له ۳۰۰ څخه تر ۴۰۰ مترو پورې رسېږي.

مهمه خبره دا ده، کله چې برتانيه د اروپايي اتحاديې څخه بېله شوه د جبل الطارق په سر دعوه يو ځل بيا تازه شوه.

# څوارلسم څپرکی

## په اسلامي نړۍ کې خارجی سیاست

د اسلام پیغمبر حضرت محمد ص د اسلام د دعوت په منظور د ایتالیه د بېزانس ښار ، ایران،مصر او حبشې ته خپل استازي ولیږدول ترڅو د یادو هېوادونو د امپراطور یا پاچاه ته د اسلام د دعوت بلنه ورکړي.

لارښوونه داسې وه چې پیغام وړونکی باید نېغ په نېغه لیک د پاچاه یا امپراطور په لاس کې ورکړي.

د حبشې امپراطور د اسلام دعوت ومانه ، دمصر پاچاه هم بلنې ته لبیکووایه،د بېزانس پاچاه ځواب ورکړ چې زما ملت اسلام نه قبلوي، د فارس امپراطور دعوت لیک څیرئ کړ او استازی یې وشاړه.

د یاد دعوت څخه دا ثابته شوه چې په اسلام کې د ډیپلوماسۍ اصل د یوه پرنسیپ په حیث قبوله شوې ده، ترڅو د اسلام د دین دعوت په ټول بشریت کې خپور شي چې وروسته د اسلام په پراختیا سره تلپاتې سیاسي ډیپلوماتیکې نمایندګۍ جوړې شوې.

چې سترې دندې یې د اسلامي جګړې څخه مخنیوی ، د سولې خبرې اترې او د دښمنۍ څخه نفرت ، د جنګي اسیرانو تبادله،د غرامت او فدیې په هکله د تړونونو انعقاد او د دوستۍ تړونونه شامل وو.[۲۱۹]

د ډیپلوماتیک هېئت مصونیت حضرت محمد ( ص ) په وخت کې تضمین شوی اصل وو، چې استازی به یې بېرته مصئون رخصت کاوه، آن تر دې چې یوه ورځ د حضرت محمد (ص ) حضور ته د مسلمة الکذاب استازی راغی چې په درواغو یې د نبوت دعوه کړې وه، او د حضرت محمد (ص ) څخه یې د نبوت د منلو غوښتنه کړې وه.

خو حضرت محمد ص بېرته رخصت کړ او ورته یې وویل چې؛ (باید ووژل شئ، خو قاصد یې بېرته لاړه شه.)[۲۲۰]

[۲۱۹] خدروی مجید۔هربرت ج ۔لیبسنی،حقوق در اسلام(حقوق در خارو میانه)،ترجمه،زین العابدین رهنما،ص،۳۹۷.

[۲۲۰] ابن اسحاق،پشین،نصف دوهم،ص،۱۰۵۹ همچنین تاریخ طبری،پشین،ج چهار،ص،۱۲۷۳.

د اسلام په لومړیو کې د ډیپلوماتیکو اصولو احترام په دې معنی وو، چې په اسلام کې بین المللي حقوقو ته درنښت شته.

هر اسلامي هېواد په خپل بهرني سیاست کې د اسلام دعوت،د دوستۍ د معاهداتو انعقاد،د جنګ څخه د سولې په منظور خبرې اترې،د اسلامي موخو څخه وه، چې په بهرني سیاست کې د ملي ګتو په حیث څارل کېده.

محمد حسن الشیبانی (۷۴۹ـ۸۰۴)میلادي کال د لومړي ځل لپاره د سیر الکبیر په نامه کتاب ولیکه چې؛ د اسلامي دولت کړنې یې په بین المللي چارو کې تشریح کړي دي ، لومړنی کتاب دی چې په اسلامي نړۍ کې د بین المللي حقوقو په هکله کښل شوی دی.

سویسي اسلام پوه مارسل یوازار عقیده لري چې؛ (که چېرې د بین المللي حقوقو د تاسیس فلسفه دا وي چې د ملتونو په منځ کې اړیکې راشي او د انسانانو په منځ کې د مساوات، ورورګلوۍ او د زورمندانو د ظلم څخه مخنیوی،مقصد وي باید ووایم چې؛ د اسلام پیغمبر د بین المللي حقوقو د بنسټ اېښودونکی دی.)[۲۲۱]

**هغه اغېز ناک عوامل چې د تړون د له منځه وړلو سبب کېږي**

**۱ـ د اتحاد د موخو عملي کېدل:**

هغه اهداف دي چې د اتحاد د تشکیل سبب او تړون پرې شوی وو.

**۲ـ د موخو نه عملي کېدل:**

په یوه اتحاد یا تړون کې ځینې ستونزې د موخو په عملي کېدلو کې پیدا کېږي او یاهم مناسب وسایل او امکانات نه میسر کېږي چې د اتحاد یا تړون د انحلال سبب کېږي.

د بېلګې په ډول ، مصر او سوریې په ۱۹۵۸ میلادي کال کې د متحده عربو د جمهوري په چوکاټ کې اتحاد جوړ کړی وو چې د کورنیو او سیمه ییزو ستونزو له امله په ۱۹۶۱ میلادي کال کې یاد اتحاد له منځه لاړ او منحل شو.

[۲۲۱] بیګدلی،داکتر محمد رضا،اسلام وحقوق بین الملل،انتشارات کنج دانش،تهران،۱۳۹۳،۲۳ـ۲۵.

د فرانسې او چکوسلواکیا په منځ کې د متقابلې او دوه اړخیزې دفاع اتحاد جوړ او تړون لاسلیک شو چې په ۱۹۳۸ م کال کې د مونیخ د تړون د انعقاد له امله عملا له منځه لاړ.

ځکه د المان د یرغل په واسطه چکوسلواکیا د اروپا د جغرافیې څخه ووته او فرانسې هم د خپل اتحاد په چوکاټ کې هیڅ ونه شوای کولای.

**۳ـ د متعاهدینو په منځ کې اختلاف:**

ځینې وخت د متعاهدینو په منځ کې اختلاف، د اتحاد او تړون د انحلال سبب کیږي، په ۱۹۵۰ م کال کې د چین او روسیې اتحاد منځ ته راغی،چې وروسته د کمونېزم د نړۍ د رهبرۍ په سر یې اختلاف پیدا شو او هم یې د کمونیزم د ایډیالوژۍ د تفسیر په سر اختلاف رامنځته شو او همدا رانګه د سرحدي پولو د ارضي اختلاف له امله یاد اتحاد منحل شو.

**۴ـ دوه هدفه یا دوه منظوره اتحاد:**

ځینې وخت یو دولت چې د اوسني وضعیت د سیاست څخه رضایت ولري، د یوه تجدید نظر یا د بیا کتنې د سیاست د ملاتړي دولت سره اتحاد وکړي.

که څه هم دا ډول اتحاد بل ډول برېښي، خو د لومړني دولت هدف دا دی چې؛ په راتلوونکي کې د تجدید نظرطلبه دولت، اتحاد د بل دولت سره مخنیوی وکړي، چې هغه دولت هم تجدید نظر طلبه سیاست ولري،ترڅو لومړني هېواد ته کوم راتلونکی ګواښ متوجه نه کړي.

د بېلګې په ډول المان د نولسمې پېړۍ په وروستیو کې داسې دولت وو، چې د موجوده وضعیت څخه راضي وو او بهرنی سیاست یې د موجوده وضعې په ساتنې استوار وو.

د المان د وخت جمهور رییس بسمارک چې کوم اتحادونه جوړ کړل، ټول د همدغه هدف د تحقق په منظور وو.

په ۱۸۸۷ م کال کې چې درې ګوني اتحاد صورت وموند، المان اعلان وکړ که چېرې د ایټالیې او فرانسې په منځ کې جګړه ونښته او فرانسې په تریپولي او مراکش کې د پراختیا غوښتنې سیاست غوره کړي، د ایټالیې څخه به ملاتړ وکړي.

په دوهم قدم کې به ایټالیه د فرانسې په ضد یرغل پیل کړي او د المان د ملاتړ څخه به برخمن شي.
**عقیم اتحاد؛**
دا ډول اتحاد ممکن د خبرو اترو یا د څو دولتونو د خپلو ګډو موخو د څار په منظور د مذاکرې له لارې اتحاد تشکیلوي.[۲۲۲]
**۵ـ د اتحاد د اهدافو څخه شاته تګ:**
ممکنه ده هغه اتحاد او تړون چې د اوسني وضعیت د ساتنې د سیاست په منظور جوړ شوی وي، د ګډو ګټو په نظر کې د نه نیولو سره او د لومړنیو اهدافو څخه مخ اړول،خپل استحکام له لاسه ورکړی او اختلاف یې د انحلال سبب کیږي.
د بېلګې په ډول څلور ګونی اتحاد، په ۱۸۱۴ م کال کې د فرانسې د استبدادي سیاست په اثر د اصلي مسیر څخه منحرف شو او د روسیې او برتانیې د تعارض په سبب په نږدې ختیځ کې وپاشل شو.
**٦ـ د نویو شخصیتونو منځ ته راتګ:**
ځینې وخت په یوه هېواد کې د انقلاب ، کودتاه یا بل بنیادي بدلون په اثر چې د یوه هېواد ملي ګټې بدلون مومي، یا په بهرني سیاست کې یې په بشپړ ډول بدلون راځي، د یاد هېواد ستراتیژي په بشپړ ډول بدلون مومي.
د بېلګې په ډول د ۱۳۵۷ هـ ش کال په ایران کې اسلامي انقلاب چې مخکې له انقلاب څخه یې د ایران سره ستراتیژیک تړون درلود، د انقلاب په راوستلوسره یادې ستراتیژۍ د دولت په سطحه په بشپړ ډول بدلون وموند.
**۷ـ د یوه متعهد د اهدافو عملي کېدل:**
لکه څنګه چې د یوه متعهد اهداف تحقق ومومي ، د یادې عضوې همکاري نه کول ، په طبعي ډول د اتحاد د انحلال سبب ګرځي.

د شوروي اتحاد او المان د ۱۹۳۹ م کال د تعارض نه کولو تړون لاسلیک شو، چې د یاد تړون څخه د هټلر هدف په شرق او غرب کې په یوه وخت د یرغل او جنګ څخه انصراف وو،وروسته چې المان په روسیې باندې یرغل وکړ اتحاد او تړون له منځه لاړ.

---

[۲۲۲] قوام،داکتر سید عبدالعلی،اصول سیاست خارجی وسیاست بین المللي،۱۳۹۴،ص،۱۹۴.

**۸ـ د یوه متعهد د اهدافو نه عملي کېدل:**

که چېرې یو دولت او هېواد متوجه شي چې د تړون په لاسلیک کولو کې یې ګټې او منافعې نه تامینیږي خپله همکاري له اتحاد سره کموي.

د بېلګې په ډول ، د سیټو پیمان په ۱۹۴۵ م کا ل کې تاسیس شو چې غړي یې عبارت وو له امریکا ، پاکستان ، تایلینډ ، فلپین ، استرالیا ، نیوزلینډ ، برتانیه ، فرانسه ، کمبوج ، لاوس او جنوبي ویتنام چې یو ډول ټولیزه دفاع بلل کېدله.

کله چې په ۱۹۷۱ م کال کې د هندوستان او پاکستان جنګ پیل شو ، پاکستان دغربي هېوادونو د نظامي کومک څخه بې برخې پاتې شو ،نو په ۱۹۷۲ میلادي کال کې د سېټو د پیمان څخه بهر لاړ.

د ویتنام په سقوط سره او د هندوـ چین د دولتونو د تګ سره یاد پیمان منحل شو.[۲۲۳]:

پای

[۲۲۳] جیمز باربر او مایکل سمت،مهیت سیاست گزاری خارجی در دنیا وابستگی متقابل کشورها،ترجمه،داکتر حسین سیف زاده،نشرقومس،تهران،۱۳۸۸،ص،۱۷ـ۱۸.

## اخځلیکونه (ماخذونه)


۱. سورت الانفال،ایت شمېره ۴٦
۲. سورت الانفال،ایت نمبر ٦۰
۳. ارسطو،سیاست،ترجمه،حمید عنایت،موسسه انتشارات امیر کبیر،تهران،۱۳۸٦
٤. افلاطون،جمهوریت،ترجمه،فواد روحانی،شرکت انتشارات علمی وفرهنگی،تهران،۱۳۸٦
۵. ابو الحمد،عبدالحمید،مبانی سیاست،چاپخانه حیدری، تهران،۱۳۸۴ج -۸
٦. ابن اسحاق،پشین،نصف دوهم،ص،۱۰۵۹ همچنین تاریخ طبری،پشین،ج چهار
۷. بیگدلی،داکتر محمد رضا،اسلام وحقوق بین الملل،انتشارات کنج دانش،تهران،۱۳۹۳
۸. باربر،جیمز، سمت،مایکل،ماهیت سیاست گذاری خارجی در دنیا وابستگی متقابل کشورها،ترجمه،داکتر سید حسین سیف زاده،تهران،۱۳۸۸
۹. بایرناس،جان،تاریخ جامع ادیان،ژباړه علی اصغر حکمت،انتشارات رسالت، تهران،۱۳۸٦
۱۰. بهاره،سازمند،سیاست خارجی قدرتهای بزرگ،موسسه فرهنگی مطالعات وتحقیقات بین المللی ابرار معاصر،تهران،۱۳۹۲،ص ۲۰.
۱۱. بشر دوست ، علی ومحمد داوودی،گسترش نقش رهبری جاپان در اسیا،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی وزارت امور خارجه،تهران ، ۱۳۷۲
۱۲. بزرگ مهري،مجید،تاریخ روابط بین المللی،تهران،۱۳۸۵.
۱۳. تواب صفوي،اسماعیل،جایکاه جاپان در جهان معاصر،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی وزارت امور خارجه،تهران،۱۳۸۰
۱٤. جعفری لنگرودي،،داکتر محمد جعفر،ترمینولوژی حقوق،فرهنگ فارسی
۱۵. جورج آنری،سوتر،اتحاد نامطئن روابط سیاسی ستراتیژیک فرانسه والمان(۱۹۵۴ـ۱۹۹٦)،انتشارات فایارد،فاریس،۱۹۹٦.
۱٦. جعفري والدانی،اصغر،اسرائیل وحوزه دریا سرخ،فصلنامه مطالعات خاوری میانه،سال پنج،شماره شانزده،۱۳۷۷
۱۷. جعفري،عباس،گیتا شناسی نوین کشورها،چاپ سوم،انتشارات ، گیتاشناسي،تهران،۱۳۸۷

۱۸. حقیقت،سید صادق،مبانی اصول واهداف سیاست خارجی دولت اسلامی،قم،پژوهش گاه علوم وفرهنگ اسلامی،۱۳۸۵
۱۹. حکیمی،نسرین،جاپان وستراتیژی قدرت،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللي،۱۳٦۹،فصل سوم.
۲۰. حسن مفیدی،احمدی،روابط انگلستان وامریکا،فرصت ها چالش ها و ابهام ها ، شبکه مطالعات سیاستگزاری عمومی،تهران،۱۳۹۵
۲۱. حسین،بشریه،مبانی علم سیاست نظری،تهران،۱۳۸٦
۲۲. حسین حمیدی،نیا،ایالات متحده امریکا،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی،تهران،۱۳۸۲،چاپ اول
۲۳. خلجی،عباس،مقاله های علمی سیاست دفاعی،۱۳۸۲
۲٤. خدروی مجید۔ هربرت ج ۔ لیبسنی،حقوق در اسلام(حقوق در خارو میانه)،ترجمه،زین العابدین رهنما
۲۵. خالو زاه، سعید و داوود کیانی،اتحادیه اروپایی ونظام بین الملل، پژوهش شانزده،تهران،۱۳۸۷
۲٦. خالوزاده،سعید،سیاست خارجی اتحادیه اروپا،هویت،امنیت وسیاست، به کوشش سید عبدالعلی قوام و داوود کیانی،تهران،۱۳۸۹
۲۷. خالوزاده،سعید وداوود کیانی،اتحادیه اروپا ونظام بین الملل، پژوهش شانزده،۱۳۸۸،ص،۸۱.
۲۸. دو ورژه،مورس،اصول علم سیاست،ترجمه،ابو الفضل قاضی،تهران،فرانکلین،شرکت سهامی کتابهای جیبی، ۱۴۹
۲۹. دهشیار،حسین،سیاست خارجی وستراتیژی کلان امریکا،تهران قومس،۱۳۸٦
۳۰. دار بی شرپان،جمهوریت سیاسي جمهوري خلک چین،ترجمه عباس،هدایت وزیر،اموزش انقلابی اسلامی،تهران،۱۳٦۸
۳۱. ډونالډ،پاین،موساد د اسرائیلو څارگره اداره،ژباړه ن نیازی،ختیځ خپرندویه ټولنه،ننگرهار،۱۳۹۳

۳۲. دو ورژه،موریس،اصول عمل سیاست،ترجمه داکتر سید ابو الفضل قاضی،موسسه انتشارات امیر کبیر،تهران،۱۳۹۵

۳۳. رابرت،دال،تجزیه وتحلیل سیاست،ترجمه،حسین ظفر یان،نشر مترجم،تهران،۱۳٦۴

۳٤. رودی،کارلټون،کلایمر واندرسن،توتون جیمز وکریستول،کارل کوسیمی،اشنای با سیاست،ترجمه وناشر بهرام ملکوتی،تهران ۱۳۴۸،

۳۵. روشن دل،جلیل،امنیت ملی ونظام بین المللی،تهران،۱۳۷۴

۳٦. ر.ک.هالستي،کی جی،مبانی تحلیل سیاست بین الملل،جلد چهارم،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللي،تهران،۱۳۸۳

۳۷. ر.ک.جی،مورگنټا،سیاست در میان ملت ها، ترجمه،حمیرا مشیر زاده،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی ، تهران،۱۳۷٦

۳۸. ر.ک،افلاطون،جمهور،ترجمه،فواد روحانی

۳۹. کاظمی علی اصغر،پایان سیاست واپسین اسطوره،چاپ اول،انتشارات قمس،تهران،۱۳۸۱

٤۰. رابرت،شوزینگر،ډيپلوماسي امریکا در قرن بیستم،ترجمه حمید رفیعی مهر ابادی،دفتر مطالعات سیاسي وبین المللي،تهران،۱۳۷۹،چاپ اول

٤۱. راجر،بوون،ساختار سیاسی جاپان،موسسه چاپ وانتشارات وزارت امور خارجه،تهران،۱۳۷۲

٤۲. روشن دل،جلیل،امنیت ملي ونظام بین المللی،تهران،۱۳۷۴

٤۳. زابلی،زلمی،د نړۍ ستر ادیان،مطبعه سید،کابل،۱۳۹٦

٤٤. زارعی،اصغر،دکتورین امنیت ملي امریکا وامنیت جهان سازی،درکتاب امریکا ۷ (ویژه دکتورین امینت ملي امریکا)،تهران موسسه فرهنگی مطالعات وتحقیقات بین المللی تهران،۱۳۸۴

٤۵. زیبایی،مهدی وعبدالحی،اسماعیل،براورد ستراتیژیک اسرائیل،انتشارات موسسه فرهنگی مطالعات وتحقیقاتي بین المللی ابرار معاصر،تهران،۳۸۱،جلد اول

٤٦. سیف زاده،حسین،اصول روابط بین المللی چاپ سوم،نشر میزان تهران،۱۳۹۵.

٤٧. سیاست خارجی امریکا در جنگ عراق و ایران،شماره پانزده وشانزده ، ١٣٧٥،بازبینی شده در ٢٠٠٢م،
٤٨. سیف زاده،سید حسن،تحول در مفهوم منافع ملی وجایگزینی آن با مصالح متقابل بشری در تحول مفاهیم، دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی، تهران،١٣٧٠
٤٩. سازمند،ډاکټر بهاره،سیاست خارجی قدرت های بزرگ،موسسه فرهنگی،مطالعات وتحقیقات بین المللي ابرار معاصر،تهران،١٣٩٢
٥٠. شاهنده ،بهزاد،انقلاب چین،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللي وزارت امور خارجه،تهران، ١٣٧٠
٥١. ستویانوف،ستویان،سیاست خارجی وا منیتی مشترک اتحادیه اروپا،فرست یاتهدید،ترجمه شانی هرمزی،پژوهش هژده،١٣٨٨
٥٢. سریع القلم،محمود،عقل وتوسعه یافته گی،تهران،نشر سفیر،١٣٧٢
٥٣. صالحی،جواد،سیاست خارجی جاپان در خلیج فارس،فصل نامه خاور میانه،شماری هفت،تهران،١٣٧۴
٥٤. طارم سری،مسعود،عبدالرحمن عالم وبهرام مستقیمی، چین سیاست خارجی وروابط با ایران،چاپ سوم،دفتر مطالعات سیاسی وبین المللي ، تهران،١٣٧٠
٥٥. طلوعی،محمود،فرهنگ جامعه سیاسی،تهران،١٣٧٧،ص ٥٧٨.
٥٦. علی بابایی،غلام رضا،فرهنگ سیاسی،نشر اشیان،تهران،١٣٨٢
٥٧. عبدالرشیدی،علی اکبر،جنبش عدم تعهد،نشر سروش،تهران،١٣٦٥
٥٨. عاشوری،داریوش،دانش نامه سیاسی،نشرات مروارید،تهران،١٣٨٣
٥٩. عاشوری داریوش،فرهنگ سیاسي،تهران،انتشارات مروارید،چاپ هشتم،١٣٥۴
٦٠. عبدالرحمن،حمید عبدالرحمن،نفوذ اسرائیل در افریقا وبازتاب آن بر امنیت ملي ارا،ترجمه،سید نعمت الله
٦١. عبدالحی،محمد مجید،تعریف سیاست،اثر افتاب، تهران،١٣٨٨
٦٢. عالم،عبدالرحمن،بنیاد های علم سیاست،نشر نی،تهران،١٣٩٠
٦٣. فرهنگستان زبان وادب فارسی،١٣٩١
٦٤. فرانک ال،شوئل،امریکا چگونه امریکا شد،ترجمه ،ابراهیم صدقیان،انتشارات امیر کبیر،تهران،١٣٨٣،چاپ سوم

٦٥. فرهنگی مطالعات و تحقیقات بین المللی ابرار معاصر ،تهران،۱۳۸۴
٦٦. قرضاوی،یوسف،باید ونباید های دین وسیاست،ترجمه،عبدالعزیز سلیمی،نشر احسان،تهران،۱۳۹۴.
٦٧. هیوود،اندرو،سیاست،ترجمه عبدالرحمن عالم،نشر نی،تهران،۱۳۹۳
٦٨. قادري،فصل نامه ،مطالعات افریقا،سال هشت ، شماره هفت،۱۳۸۲.
٦٩. فیچر،اپرینگ،علم سیاست،ترجمه،محمود کتابی،انتشارات دانشگاه پهلوی،۱۳۵۵
۷۰. قوام،سید عبدالعلي،اصول سیاست خارجی وسیاست بین الملل،تهران،۱۳۷۵
۷۱. گریگوری،الیوت،فرهنگ اندیشه انتقادی،ازروشنگری تا پسا مودرنیتی،ترجمه،پیام یزدان جو،چاپ نخست،تهران،۱۳۹۱.
۷۲. کولایی،الهه وعلي رضا نوري،عملگراي پوتین وتغیر درسیاست خارجی روسیه،فصلنامه سیاست،دوره چهل،شماره دو،۱۳۸۹
۷۳. کیانی،داوود،جهت گیری سیاست خارجی روسیه در برابر ناټو،مرکز تحقیقات ستراتیژیک ،مجموعه تشخیص مصلحت نظام،۳۸٦،
۷٤. کاظمي،علی اصغر،پایان سیاست ووایسین اسطوره،چاپ اول،انتشارات قومس،تهران،۱۳۸۱
۷۵. گریفیتیس،مارتین،دانش نامه روابط بین الملل،وسیاست جهان،ترجمه،علی رضا طیب، ،نشرات نی،جلد اول،تهران، ۱۳۸۸
۷٦. گوهری مقدم،ابو زر،سیاست خارجی امریکا،تهران،مرکز اسناد اسلامي انقلاب
۷۷. کاظمي،علي اصغر،پایان سیاست واپسین اسطوره،چاپ اول،تهران،۱۳۸۱
۷۸. قند بر لو،عبدالله،مناسبات اقتصادي امریکا وچین واثار ان برامنیت ملی ایران،مطالعات رهبردی،تهران،۱۳۸۹
۷۹. کاوا شیما،یوتاکا،تحول مهم در سیاست خارجی جاپان،ترجمه،صدر الزمان شهبازی،تهران،۱۳۸۷،
۸۰. گواهی،عبدالرحیم،سیاست خارجی جاپان درخلیج فارس،مجموعه مقالات سیمینار برسی مسائل خلیج فارس،دفترمطالعات سیاسی وبین المللي،تهران،۱۳٦۸

۸۱. کارټر وفینډلي،جان م.راشني، جهان در قرن بیست،ترجمه بهرام معلمی،چاپ شمشاد تهران، ۱۳۹۰

۸۲. کیاني،داوود،سیاست خارجی روسیه در خاور میانه،فصلنامه راهبردی،شمار چهل هفت،۱۳۸۷ [۱]

۸۳. کاردان، عباس،کتاب اروپا،ویژه مسائل انگلیستان،موسسه فرهنگی وتحقیقات بین المللي ابرار معاصر، تهران،۱۳۸٦

۸٤. قوام،سیدعبدالعلی،اصول سیاست خارجی وسیاست بین المللی،چاپ گلها،تهران،۱۳۹۴

۸۵. کواکبی،سید عبدالرحمن،طبیعیت استبداد،ترجمه عبدالحسین میرزای قاجار،نقد وتصحیح محمد جواد صاحبی،مرکز انتشارات دفتر تبلیغاتی اسلامی حوزه علمیه قم،۱۳٦۳

۸٦. لاسکی، ژ،هارولد،مقدمه بر سیاست،ترجمه منوچهر صفا،شرکت سهامی کتابهای جي بی،۱۳۴۷

۸۷. ملک آیور،ر. م،جامعه وحکومت،ترجمه ابراهیم علی کنی،ترجمه ونشر کتاب بنگاه،۱۳۴۴

۸۸. کاظمی،علی اصغر،روابط بین المللی در تیوری وعمل،تهران،قومس،۱۳۷۲

۸۹. مسوولیت دولت ها در برابر تجاوز ونقض اصول حقوق بین الملل در تحلیل بر جنگ عراق وایران،چاپ اول ،تهران،اداره کل حقوف وزارت امور خارجه،۱۳٦۷.

۹۰. مرگ افشاگر رسوای واټر ګېټ ،کتاب مشهور

۹۱. ماهو وماوستها او (جمهوري حلق چین وارزیابی تاریخی سوسیالیزم.

۹۲. نقیب زاده،حمد،تاریخ ډیپلوماسي وروابط بین المللی،نشر قومس،تهران ، ۳۸۸،

۹۳. مجیدی،محمد رضا،محمودي،علي رضا،نورعلي وند، یاسر،سیاست خارجي امنیتي ودفاعی اتحادیه اروپا پس از جنگ سرد،مطعه،خورسندی،تهران،۱۳۹۲

۹٤. ملکي، محمد رضا،روابط ترکیه واسرائیل واثارآن در اسیا مرکزی وقفقاز،فصلنامه مطالعات اسیا مرکزی وقفقاز،شماره چهل هفت،۱۳۷۷.

